# د
# علي محمد مخلص
# دیوان

سمونه او څېړنه

## ډاکټر پرویز مهجور خویشکے

سریزه

## پروفیسر ډاکټر راج ولي شاه خټک

پښتو اکیډیمي پېښور یونیورسټي

د

# علي محمد مخلص

## ديوان

سمونه او څېړنه

ډاکټر پرويز مهجور خويشکی

سريزه

پروفيسر ډاکټر راج ولي شاه خټک

پښتو اکيډيمي پېښور يونيورسټي

د پښتو اکېډیمۍ د مطبوعاتو سلسله نمبر ۵۴۴

| | | |
|---|---|---|
| د کتاب نوم | : | د علي محمد مخلص دیوان |
| سمونه او څېړنه | : | ډاکټر پروېز مهجور خوېشکی |
| کتابت | : | لطف الله |
| پروف | : | مؤلف |
| چاپ | : | ملت پرنټرز لاهور |
| خورنکی | : | ډائرېکټر پښتو اکېډیمي پېښور یونیورسټي |
| بیعه | : | ۳۹۰ روپۍ |

د محمد جاوېد خلیل په اهتمام په ملت ایجوکېشنل پرنټرز
لاهور کښې چاپ شو او د پښتو اکېډیمۍ پېښور یونیورسټۍ
له خوا خور شو.

ISBN 969 – 418 – 016 - 3

# مننه

پښتو اکېډيمي پېښور يونيورستي ددې کتاب
د اشاعــت د اخــراجاتو په لــړ کــښې د
پاکستان اکادمي ادبيات اسلام آباد
او د پېښور يونيورستۍ د مالي
مرستې مننه کوي.

بِسۡمِ اللهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ ط

# سريزه

دَ علي محمد مخلص دا ديوان په وروستيو کلونو کې دَ پښتو اکېډيمۍ له خوا دَ پښتو دَ لوستونکيو په خدمت کښې وړاندې کولے شي. دَدې نه وړاندې دَ مخلص ديوان چرې چاپ شوے نۀ دے. دَدې سبب شايد دا دې چې دَدې ديوان نسخې بېخې ناياب دي. يوه قلمي نسخه ئې دَ انګلستان په برټش ميوزيم لنډن کښې موجود ده. چې دَ هغې نه دَ پښتو اکېډيمۍ دَ مائکروفلم په صورت کښې يو نقل تر لاسه کړے شو. او دَ اکېډيمۍ په کتبخانه کښې تر اوسه موجود دے. دَ مائکروفلم څخه يوه ټائپ شوې نسخه مرتب کړے شوې ده. ولې تر اوسه پورې پرې دَ کار او څېړنې څۀ تابيانۀ وه شوې.

علي محمد مخلص دَ روښاني ادبي تحريک يو ځلنده نوم دے. دَ کلام نه ئې دَ پراخې مطالعې او دَ ژور علميت اندازه کېږي. دَ عرفان و تصوف ډېرې باريکې نقطې ئې بيان کړې دي. په روښاني شاعرانو کښې دَ ځانګړي اسلوب خاوند دے. خو يوا ځې دَ شعري اظهار تر حده نۀ دَ تصوف فلسفه ئې هم هغه ده. کومه چې دَ بايزيد روښان ده. او نورو روښاني شاعرانو خپل خپل رنګ کښې بيان کړې ده.

علي محمد مخلص که هر څو دَ خپل انداز يو پوخ او فنکار صوفي شاعر دے کلام ئې په فني معيار پوره دَ خپل وخت دَ ادبي روايت په تول پوره دے. نو دَ هغې باوجود تر زمانو زمانو دَ ګمنامۍ په تيرو کښې پاتې شوے دے. دَدې اسباب چې هر څۀ وو. ولې هغه رنګ څرګند شوے نۀ دے. څومره چې نور روښاني شاعران ذکر

شوي او پېژندلے شوي دي . په روښاني شاعرانو کښې تر اوسه پورې دَ معلوم پښتو ادبي تاريخ تر مخه ورومبے صاحب ديوان شاعر ارزاني دے . مرزا خان انصاري، دولت لوانے، واصل، کريم داد او ځيني نور هم دي . او مخلص په دوئ کښې دَ ستر علمي شاعرۍ خاوند دے . معلوم نهٔ دہ . چې خوشحال خان خټک ته ئې ديوان نهٔ دے رسيدلے . او يا تر هغه وخته مخلص مرتب شوے يا خطي کړے شوے نهٔ وو . کنې پکار وه . چې خوشحال بابا ئې ذکر کړے وے . خوشحال بابا دَ مرزا خان انصاري دَ معياري شاعرۍ تعريف کړے .

دَ چانه په پښتو کښې ماميزان ليدلے نهٔ دے
مرزا په دا ژبان کښې ويل کړي دي تللي

دَ تنقيد په يو نظم کښې هم خوشحال بابا دَ ارزاني مرزا خان انصاري او دَ واصل ذکر کوي . خو دَ مخلص نوم پکښې نشته . يا شايد په دغه وخت کښې مخلص دومره شهرت نهٔ وو موندلے . يا کيدے شي چې په دغه مصرعه کښې خوشحال "که دا نور وو" کښې دهٔ ته اشاره کړې وي . خو معلومه نهٔ ده .

که دولت وو که واصل وو که دا نور وو

خوشحال بابا په يو نظم کښې د دغه عصر دَ شاعرانو ذکر داسې کړے دے .

چې لاف وهي دَ شعر — نن په دا دور دي ډېر
خدائے دې نهٔ کا چې به وائم — حال دَ دويو تېر و بېر
څوک پاوے څوک نيم پاوے دے — قلندر پکښې نيم سېر
زمونږ په حساب دے — هيڅ مې نهٔ دے واصل هم
بل دولت فقير درې پاوه — زهٔ ترې څو سر شاهي تېر

چې په سرائے کښې به پيدا شي
پس له قرنه پوره سېر

مخلص دَ خوشحال بابا همعصر هم دے. ولې بيا هم دَ مخلص ذکر نهٔ کول دا ښکاره کوي. چې شايد کلام ئې دَ خوشحال بابا دَ نظر نهٔ وو تېر شوے. کنې دَ ډېر فلسفيانه رنګ دَ اسلامي تصوّف دَ فلسفې دَ وحدت الوجود دَ خپل رنګ پېروکار او مبلغ شاعر مخلص دَ خپل کلام له رنګه دَ هېر پېدلو نهٔ ښکاري.

دَ خوشحال بابا پس ته اشرف خان هجري دَ پښتنو شاعرانو ذکر په يوه اوږده قصيده کښې کړے دے.

دَ مردانو براڼۍ علم و هنر دے
آرائش دَ ګلرخانو په زېور دے

---

شاعران دَ پښتنو ګويا څهره دي
دَ مرزا شعر شمله بلکې افسر دے

اشرف هجري په دغه قصيده کښې دَ خوشحال خان، دَ خپلو وروڼو، دَ مرزا، قلندر او رحمٰن بابا ذکر کړے دے. خو دَ مخلص ذکر پکښې نشته. داسې ښکاري چې تر دغه وخته څوک دَ مخلص دَ شاعرانه استعداد څخه نهٔ وو خبر شوي. زما په يادو کښې يواځې دَ يو روښاني شاعر دولت لواڼي دا شعر راځي چې:

بې مرزا بې ارزاني بې مخلص ياره
بل شاعر برابر نهٔ دے پښتون ستا يو

دَ مخلص دَ خپل عصر په شاعرانو کښې دا ګمنامي يواځې تر دغه عصره محدوده نهٔ ښکاري. په راتلونکي وخت کښې هم دَ مخلص دَ شاعرانه کمال څخه خلق خبر نهٔ شول. سبب ئې دا دے. چې دَ مخلص دَ ديوان قلمي نسخې دَ نورو شاعرانو په شان ډېرې نهٔ دي. بلکې دَ مخلص ديوان دلته بېخي ناياب دے. تر اوسه پورې ئې په

پاکستان، افغانستان یا هندوستان کښې دَ قلمي دیوان درک نهٔ دے موندے شوے. په برټش میوزیم لنډن کښې یواځنۍ قلمي نسخه موندلې شوې ده. مرحوم مولانا عبدالقادر چې په پښتو ژبه کوم نور احسانونه کړي دي. یو احسان ئې دا هم دے. چې ددې عالم او صوفي شاعر دَ دیوان نقل ئې دَ برټش میوزیم لنډن نه دَ مائکروفلم په صورت کښې دَ پښتنو دپاره ترلاسه کړے دے. او دَ پښتو اکېډیمۍ په لائبرېرۍ کښې محفوظ دے.

ډاکټر پروین مهجور دَ پښتو اکېډیمۍ یو عالم فاضل او فعال غړے دے. دَ ریسرچ افسر په حیث په پښتو اکېډیمۍ کښې کار کوي. هرکله چې ښاغلے ډاکټر مهجور دَ کلاسیکي ادب ماهر دے. او بیا په تېره تېره په روښانیانو کښې دَ کمال دَ درجې مطالعه لري. بلکې نن سبا په روښانیانو کښې دَ اتهارټي حېثیت لري. دَ پښتو اکېډیمۍ له خوا ښاغلي ډاکټر مهجور ته دَ مخلص دَ دیوان دَ ترتیب، تدوین او دَ څېړنې کار حواله کړے شو. ډاکټر صیب مذکور په یوه سپېڅلي جذبه او ډېر محنت دغه کار ترسره کړو. او دَ مخلص دیوان ئې سره دَ عالمانه تحقیق و تبصرې دَ کرانو پښتنو دپاره مرتب کړو. زهٔ ډاکټر پروین مهجور ته په دې ستره علمي کارنامه اومبارکي وایم. او منته ئې کووم چې په ټاکلي وخت کښې ئې دا تحقیقي منصوبه زما دَ خواهش مطابق ترسره کړه. او دا دیوان ئې دَ تیرې نه رڼا ته سره دَ روښانۍ رڼا را اوویستو.

زهٔ دَ پېښور یونیورسټۍ دَ ښاغلي وائس چانسلر پروفیسر سید ذوالفقار حسین ګیلانی شکریه ادا کووم. چې دَ پښتو دَ تحقیقي منصوبو سره خصوصي دلچسپي لري. او دَ هغوي په مرسته دا کتاب دَ اشاعت تر مرحلې ورسید و. زهٔ دَ یونیورسټۍ دَ ټریژرار حافظ ثناء الله هم ممنون یم چې دَ یونیورسټۍ له اړخه ئې دَ کتاب دَ اشاعت دَ مالي اخراجاتو په ضمن کښې کومک وکړو. او دَ یونیورسټۍ دَ تحقیقي ګرانټ څخه ئې دَ کتاب

په چاپ کولو کښې خپلې ذمه وارۍ ترسره کړې.

دَ پښتو اکېډيمۍ دَ مطبوعاتو دَ څانګې مشر ښاغلے محمد جاوېد خليل زما دَ شکريې مستحق دے. چې دَ ديوان دَ طباعت او اشاعت په لړ کښې ئې په کاميابۍ خپل زيار باسلے دے. ښاغلے لطف الله خوشنويس هم دَ ستايينې وړ دے. چې سرۀ دَ رنځورۍ ئې په مينه ددې کتابت اوکړو. ښاغلے سرفراز مروت او دَ اکېډيمۍ هغه ټول ملګرې چې ددې ديوان دَ ترتيب په کار کښې ئې کار لړلے دے. دَ منني مستحق دي. په آخر کښې دَ ملت ايجوکېشنل پرنټرز لاهور دَ مالک ښاغلي عنايت الله ګران دَ زړۀ نه شکريه کوم چې دَ اکېډيمۍ دَ مطبوعاتو دَ اشاعت سرۀ خصوصي مينه لري. او دا ديوان ئې دَ طباعت په کالو ښائسته کړو.

دَ ګرانو لوستونکيو پښتنو په خدمت کښې دَ يو سوغات په توګه دا ديوان وړاندې کولے شي. اميد کېدے شي. چې پښتانۀ به ئې په مينه ولولي. او دَ خپلو سپېڅليو رائے څينې به اکېډيمۍ خبر کړي.

پروفيسر ډاکټر راج ولي شاه خټک
ډائرېکټر
پښتو اکېډمي، پېښور يونيورسټي

# مننه

دَ علي محمد مخلص دَ دیوان دَ غونډونې، سمون او څېړنې په لړ کښې زهٔ دَ ټولو نه اول دَ پښتو اکېډیمۍ دَ ډائرېکټر ښاغلي ډاکټر راج ولي شاه خټک صاحب دَ زړهٔ له اخلاصه مننه کوم چې ماته ئې دَ یوې اهمې او زړې قلمي نسخې دَ غونډونې، سمون او په لمغې دَ څېړنې کار راوُسپارلو پرته دَ خپل فرض سرته دَ رسولو نه ځ زما دَ خوښې او طبعې یو کار هم دُ.

دې پراجیکټ په را حوالو کولو کښې کومو علمي او ادبي شخصیتو چې دَ یو اهم محرک حیثیت لرلو یعني ښاغلے حبیب الله رفیع صاحب او ښاغلے زلمے هیوادمل صاحبا دَ هغوي ذکر او مننه کول ما دپاره دَ یو فرض هومره لازمیا لري دَ دوي سره سره چې دَ کومې بلې اهمې شخصیت نوم اخیستل ما دپاره لازمي وي هغه میا تقویم الحق کاکاخیل صاحب دے (الله دې مغفرت نصیب کړي) دوي ددې پراجیکټ یو سمدستي سوب وګرځید.

ددغو درنو او قدرمنو شخصیتو نه پرته چې دَ بل کوم ضروري شخصیت نوم اخیستل ضروري دي هغه ډاکټر مرزا محمد صاحب (لیکچرر عربي ډیپارټمنټ پښور یونیورسټي) دے. چا چې ددې نسخې دَ حدیثونو عربي مقولو او دَ مشکلو ټکو دَ عربي درستوُلو په لړ کښې ما سره ډېر زیار دباسلو.

زموږ دَ پښتو اکېډیمۍ دَ کتابتون مشر ښاغلے سرفراز صاحب هم دَ ډېرې مننې ور دے چا چې ما دپاره دَ پروجېکټر دَ نسخې دَ مائیکرو فلم او دَ نورو ډېرو کتابونو لاس ته

د راوړلو په لړ کښې غټه ستونځه وزغمله۔

زه د پښتو اکېډېمۍ د ټایپسټ محمد انور خان صاحب د مخلص د همغه نیمګړي دیوان نه کوم چې هغوئ د مائیکرو فلم نه ټائپ کړې وُ۔ د استفادې په لړ کښې هم ډېره ډېره مننه کوم۔

زه د هغو ټولو خپرونکارانو هم د زړه په احترام مننه کوم چا چې د مخلص په ژوند او فکر څه نه څه لیکل کړي دي او ما ترې ګټه اخیستې ده۔

زه د پښتو اکېډېمۍ د مشر کاتب ښاغلي لطف الله صاحب هم د زړه له اخلاصه مننه کوم چا چې ددې دیوان کتابت په ډېره مینه او خوارۍ سره وکړو ۔ زه د قاضي حنیف الله حنیف ، محمد رسول او په تېره تېره د ارشاد خان کاتب هم د زړه له اخلاصه مننه کوم چا چې ددې دیوان سره یوه زیاتې ستونځه وزغمله ۔

په آخر کښې زه د پښتو اکېډېمۍ د پبلیکېشن افسر جاوید خلیل صاحب هم ډېر مشکور یم چې هغوئ ددې کتاب په چاپولو کښې د زړه مینه څرګنده کړه او د یو ښه ملګري احساس ئې راکړو۔

ډاکټر پروېز مهجور خویشکی

# دا دیوان

دَ علي محمد مخلص دَ دیوان دا قلمي نسخه دَ پښتو اکېډیمۍ سره دَ یو مایکرو فلم په صورت کښې پرته ده. ددې نسخې اصل دَ لندن په برټش میوزیم کښې پروت دے. دا مایکرو فلم دَ اکېډیمۍ دَ کتابتون په رجسټر کښې په ۸۲ نمبر خوندي دے او ددې دَ خوندي کېدو تاریخ ۱۹۶۱ء دَ مارچ دویم دے۔

تر اوسه څېړنې په توله نړۍ کښې دَ مخلص دَ دیوان ایکي یوه دا نسخه ده دَ مخلص دَ دیوان دا متن که هر کله دَ یوې نسخې نه تیار شوے دے۔ خو سره ددې زما په یقین دا به تر ډېره حده دَ ډېرو غلطیو او کمیو نه پاک وي۔

ما چې دَ مخلص دَ دیوان کوم متن تیار کړو دا ما دَ پروجېکټر په ذریعه درغه یاد شوي مایکرو فلم نه رانقل کړو۔ زما دَ نقل نه مخکښې ددې مایکرو فلم ورومبے نقل دَ پښتو اکېډیمۍ ټایپسټ محمد انور خان صاحب دَ ډاکټر عظیم شاه خیال بخاري (مرحوم) صاحب او د میا سناء الدین کاکاخېل صاحب په مرسته دَ ۱۹۶۹ء دَ مارچ په شلم تاریخ تیار کړے وُ کوم چې دَ پښتو اکېډیمۍ په کتابتون کښې په ق ۱۲۲۶ نمبر خوندي دے خو دا نقل نیمګړے دے مخکښې ۱۵۸ مخونه یې ورک شوي دي۔

ما دَ علي محمد مخلص دَ دیوان ټول متن اېغ په نېغه دَ مایکرو فلم نه دَ را نقل کولو نه وروستو ددې په سمونه او څېړنه کار شروع کړو۔

ترکومه چې ددئ نسخې دَغزلو دَ الفبائي ترتيب تعلق دے نو دا دَ مخکښې نه دَ روښاني الفبا سره سم په ترتيب دَ زړو نسخو دَ متنونو دَ سمون دَ قاعدې له مخه دغه سمون ما ځپل ځائے وساتلو.

مخلص زمونږ په روښاني او کلاسيکي شاعرانو کښې دَ يوې لوړې فکري او علمي رتبې شاعر دے. مخلص دَ غزل شاعر دے. ددهٔ شاعرۍ دَ يو څو رباعيانو نه پرته ټوله غزليه شاعري ده دَ نورو روښاني شاعرانو په پرتله مخلص دَ خپل هر غزل يو سرخط ټاکي او دغه سرخطونه اکثر دَ وحدت الوجودي فلسفې په رڼا کښې دَ قرآن دَمطلوبه ايتونو، حديثونو او دَ تصوفي مقولو لنډ لنډ عبارتونه دي. ددې عبارتونو ژبه اکثر فارسي او کله کله عربي دي ما دغه ايتونو، حديثونو او مقولو دَ سمون او حوالو سره سره دَ هغو پښتو ژباړه هم کړې ده. دې نه پرته چې شاعر په متن کښې کومو ايتونو ته تلميحي اشارې کړې دي. ما هغه هم په حاشيه کښې دقرآن پاک دَ سورت پوره ايت نمبر او حوالې سره سره دَ هغو پښتو ژباړه هم کړې ده.

ډاکټر پرويز مهجور خويشکے

# علي محمّد مخلص

## ژوند، فکر او فن

د علي محمد مخلص په حقله تر اوسه پورې چې زمونږ د اکثرو مشرانو کومه رایې وه هغه دا وه چې دے د ارزاني خوېشکي ورور ملاعلي دے - ددې ملا علي ذکر په وړومبي ځل اخون درویزه بابا کړے دے. په تذکرة الابرار والاشرار کښې ليکي.

"ارزانی شاعر انکه ایشان سه برادران بودند از افغانان خویشکی یکی ملا ارزانی نام دوم ملا عمر سیوم ملا علی از جانب هند در رسیدند" [۱]

صديق الله رښتين صاحب "د پښتو د ادب تاريخ" کښې د علي محمد مخلص په پېژندګلو داسې کوي -

"علي محمد مخلص د ميا روښان مريد او خليفه وُ - د درويزه په قول د ارزاني شاعر ورور دے [۲]"

---

[۱] اخون درويزه - تذکرة الابرار والاشرار

[۲] صديق الله رښتين د پښتو د ادب تاريخ مخ ۳۷

ښاغلي همېش خلیل صاحب په "ورکه خزانه" کښې دده په باره کښې داسې لیکي -

"دارزاني دوه روڼه هم وو چې علي محمد مخلص او ملاعمر نومېده [1]"

عبدالله بختاني صاحب په "پښتانه شعراء" کښې دده په حق کښې داسې لیکي:

"علي محمّد مخلص د روښاني دبلې د مشهور شخصیت ارزاني ورور ؤ - دبرهان زوے دخوېشکي قبیلې څخه دے [2]"

قاضي عبدالحليم اثر صاحب هم مُلا علي ، علي محمد مخلّص کښې څو هغوي دده د نوم اصل شکل محمد علي ښئي -

"یو محـمد علي ؤ چې اخون درویزه ورته ملا علي وائي د ارزاني رور دے او د محـمد برهان الدین خوېشکي زوے دے - دوي درې روڼه وو - محمد عزیز ارزاني، محمد علي مخلّص ، محمد عمر خوېشکي [3]"

خو د قاضي اثر صاحب دا تصحیح صحیح نهٔ ده ځکه چې علي محمد مخلّص خپله خپل نوم "علي محمد" ښئي -

---

[1] همېش خلیل - ورکه خزانه (اول ټوک) مخ ۳۸۸

[2] عبدالله بختاني پښتانهٔ شعراء (څلورم ټوک) مخ ٦

[3] قاضي عبدالحلیم اثر د پښتو ژبې څوانے ادب تاریخ (ناچاپ) مخ ۱۰

د مولی ثنـا بې حـــد ه
دا بې شـمـاره لا تعـد ه
انبیـاؤ پوره نـهٔ کـړه
شــه خاموش عــلي محمده

د تهولو نه اول په کال ۱۹۸۲ء کښې صدیق الله رښتین صاحب په "روښانه ستوري" کښې د پښتو شاعر علي محمد مخلص د مُلا علی په ځائے د حالنامې مؤلف علي محمد مخلص سره په یو شخصیت یاد کړل[1]

په زلمیو محققینو کښې ډاکټر راج ولي شاه خټک صاحب " د پښتو ادبي تحریکونه" (چاپ ۱۹۸۹ء) کښې دا شک ښکاره کړو چې ګوندې د پښتو شاعر علي محمد مخلص او د حالنامې مولف علي محمد مخلص دواړه یو دي او دے دا ورنګاني ورور ملا علي نهٔ دے[2]

زلمي هیواد مل صاحب هم په خپل کتاب " په هند کښې د پښتو ژبې...... (چاپ ۱۳۷۳هش/۱۹۹۴ء) کښې دا دواړه نومونه د دغه یو مذکوره شخصیت ښودلي دي[3]

نو دې درې واړو محققینو څهٔ دلیل یا دا جواز نهٔ دے وړاندې کړے چې د پښتو شاعر علي محمد مخلص او د حالنامې مؤلف علي محمد مخلص څنګه دواړه

---

[1] صدیق الله رښتین ـ روښانه ستوري مخ ۸۰

[2] ډاکټر راج ولي شاه خټک ـ د پښتو ادبي تحریکونه مخ ۱۱۸

[3] زلمے هیواد مل ـ په هند کښې د پښتو ژبې ایجاد او ودې پړاوونه مخ ۱۵۷، ۱۵۵

یو دي ؟ او دا چې د ے ختګه د ارزاني خوېشکي ورور ملا علي نهٔ دے.

دریم زلمے محقق او نقاد ډاکټر یار محمد مغموم صاحب د ے چې په خپله "پي - ایچ - ډي مقاله کښې یې ډیر په واضح او مدلل ډول دا داڼې سره دوباره ښکاره کړې ده چې د پښتو شاعر علي محمد مخلص د حالنامې مؤلف علي محمد مخلص نهٔ دے . د دې لړ کښې زهٔ د هغهٔ دوه قوي دلیلونه وړاندې کوم.

ډاکټر صاحب لیکي چې -

(۱) مرزا خان انصاري غونډې اوچت شاعر د مخلص د شاعرۍ صفت کړے دے نو داسې شاعر د حالنامې مؤلف ختګه کېدے شي چې د مرزا خان انصاري نه ډیر روستو دے او په کال ۱۰۶۹/۱۶۵۹ع کښې لا ژوندے وو -

(۲) دوېم دلیل یې دا دے چې د پښتو شاعر علي محمد مخلص د پیر روښان همعصر او بغیر د څهٔ واسطې مرید ښکاري - د دې لړ کښې ډاکټر صاحب د دلیل په توګه دا شعرونه وړاندې کړي دي -

ه

دا مخلص د حق په دا د ډیر هوسېږم
چې مرید یې د بایزید مسکین روښان کړم
کهٔ طالب د معرفت یې لهٔ ما واوره
میا روښان لره ورځه د دین سلطان دے
د نبي وارث مې بیاموندهٔ مخلصه
په تحقیق روښان صاحب زهٔ یې نفریم[۱]

---

[۱] ډاکټر یار محمد مغموم "The Rowshintes and Pashto Leterature" مخ ۳۷۷

ډاکټر صاحب ددې شعرونو په بنیاد دا رایٔ ورانډې کوي چې دې کښې مخلص خپل پیر بایزید روښان د حال په زمانه کښې یاد وي نو په دې اساس دهغه دا خیال دے چې د پښتو شاعر علي محمد مخلص کله د ارزاني ورور ملا علي نه هم دے نو دا د پیر روښان څوک بل هم عصر مخلص شاعر دے او دا د حالنامې علي محمّد مخلص نشي کېدے۔

د ډاکټر یار محمد مغموم صاحب ددې دلیلونو سره زه د ډېرې احترام سره خپل اختلاف ښکاره وم . ترکومه چې د دوهمې دلیل خبره ده چې د مرزا خان انصاري غونډې دا وچتې مرتبې صوفي او شاعر څنګه دحالنامې د مؤلف دعلي محمد مخلص دشاعرۍ صفت کولے شي ؟ او فرض کړه که ئې کړے وي نو دا عـلي محمّد مخلص بیا د مرزا خان انصاري همعصر یا مخکښې تېر شوے شاعر ښکاري -

د مرزا خان انصاري دغه شعرونه اکثر نور محققین هم په دې خیال او معنیٰ سره وړاندې کوي خو زما په خیال د مرزا خان په شعرونو کښې د مخلص ددغه ذکر د شاعـر مخلص د یادونې سره هیڅ تعلق نشته . مرزا خان دا علي محمد مخلص نه یادوي بلکې دا مخلص هغه مخلص دے څوک چې دیوې تصوفي اصطلاح له مخه د وحدت په مقام چې د فنا مقام دے او "سر بالله" هم ورته وایٔ . مشرف شوے وي .

"اصطلاحات صوفیه" کښې لیکي -

---

"The Rawshintes and Pashto leterature" د ډاکټر یار محمد مغموم

مخ ۳۶۷ نه تر ۳۷۷ پورې

" چې مخلص هغه کامل مرد وي چې الله تعالیٰ په خپل توفیق سره دشرکت اوجمله گنا هونو نه پاک کړے وي او اخلاص ددغه بندګ په زړهٔ کښې الله تعالیٰ دیو راز په صورت کښې داخل کړے وي.

اخلاص د فنا نه پس حاصلیږي دادخدا ئے په هغهٔ ډیرزو شي چې پېړ محبوب شي [۱] "

دمرزا خان انصاري هغه شعرونه چې دمخلص ذکرپکښې شوے دے او محققین ترېې دا مراد اخلي چې دا شاعر علي محمد مخلص یادوي دادي . سه

ا ے مرزا له پاکو پاکه وښاوایه
د مخلص کلام خالص دے معتبر شو
چې بېرنګ يې د باور په سترګو ګوري
د مخلص له دِله محوه کل اروړشو

خو کله څنګه چې ما

ووئيل چې پهٔ دې شعرونو کښې د"مخلص" نه مراد علي محمد مخلص نهٔ دے بلکې هغه کامل مرد او ولي ترې نه مراد دے کوم چې وړاندې ذکر شو .

مرزا خان نهٔ صرف دا مخلص پهٔ دغه دوو شعرونو کښې یاد کړے دے بلکې دغه مخلص يې پهٔ خپله شاعري کښې ډېرځایه یاد کړے دے . بله خبره داده چې مرزا خان خپله ددغې مرتبې دعوې دار هم دے . دې

---

[۱] شاه محمد عبدالصمد . اصطلاحات صوفیه مخ ۱۲۸

لږ کښې مزید وائي . ھ

دغمان له بېگانګي به فارغ شي
هر مخلص چې په دا هسې حال محرم کړم
د مخلص په برخه سخ دے تل تر تله
چې پوازې خپل اخلاص ئې غمګسار شي
په ظاهر باطن په دواړو رسیده وي
چې مخلص د مسکینانو په قطار شي
بېرنګي د بېرنګۍ په ننداره کا
واوجوته په اوبه کوري مخلص
پر بنده د څښتن هسې عنایت دے
چې د دهٔ دیدن په دهٔ کوري مخلص
وحدت ځائے د مخلصانو
خاصان نهٔ دي بې عزته
چې د دین د دنیا بار له سره واخلي
مخلصان به سکونت لره هاله چې

ترکومه چې د ډاکټر یار محمد مغموم صاحب د دویم دلیل اساس دے یعنې دا چې د پښتو شاعر علي محمد مخلص خپل پیر (بایزید روښان) داسې یادوي لکه چې دواړه همعصر وي او دا مخلص هیچرې هاغه مخلص نهٔ شي کېدے څوک چې د حالنامې مؤلف دے . ځکه چې هغه د پیر روښان د ژوند د زمانې نه ډېر لرې دے . نو دغه ډېر لرې د حالنامې علي محمد مخلص هم خپل پیر پیر روښان داسې یادوي لکه چې د هغهٔ د ژوند په زمانه کښې وي

او دهغه اېغ په نبغه خليفه دي لکه چې وائي -

ع

رومريد پير روشان شو بجان
تا ز بيماری دل يا بی امان[1]

پند مخلص بشنوا ے مرد سعيد
شو مريد شهباز بايزيد[2]

پيش پير روشان بيا گرعاقلے
حق تعالیٰ را بيابی زاين ولی[3]

هادی و مهدی ويست در راه حق
کامل واکمل بداں او را[4]

رومريد پير روشان شو بجان
تاکند عارف ترا بر ذات هان[5]

حضرت شيخ عبدالحليم بابا ( دکاکا صاحبؒ زوے ) دحضرت شيخ رحمکارؒ د
مريد انو په لړکښې ليکي -

" اگرچه وه دوردراز علاقوں مثلاً ہندوستان وغيره ميں ہوتے تو حضرت شيخ صاحب

---

[1] علي محمد مخلص حالنامه مخ ۲۷۲
[2] " " " مخ ۳۷۲
[3] " " " مخ ۳۷۲
[4] " " " مخ ۸۵
[5] " " " مخ ۹۹

کے باطنی توجہ سے ان کو فیض پہنچتا اور وہ اس فیض سے مستفید ہوجاتے
اور ان کو فائدہ پہنچتا اور ان کے وفات کے بعد بھی بہت سے لوگوں
نے ان سے فیض حاصل کیا ہے اور پا رہے ہیں۔ بعض کو خواب میں بعض
کو مزار کے حاضری کے وقت اور بعض نیند میں بھی اور حضور میں بھی فیض
حاصل کر رہے تھے[1]

پهٔ روښاني مسلک کښې ددې قاعدې خاصه پابندي ده چې
يو سالک کله پهٔ دې طريقه کښې شاملېږي او هغه بيعت اخلي نو پهٔ دې
طريقه سره به اخلي.

"تر و خليفه لاس دې ونيسي پهٔ دواړه لاسونه اول دې
د طالب نوم زده کړي تر و خليفه دې هم هسې ووائي
چې دا لاس د ميا لاس دے طالب دې هم هسې ووائي
او پير مې مياں دے[2]."

دا خبره د زمانې پهٔ حواله د لرې او نږدې نهٔ ده دا د بيعت يو
راز دے. د حالنامې مؤلف کهٔ د پير روښان د زمانې نه هر څو مره لرې
دے نو هغه د پير روښان مريد او پير روښان د هغهٔ پير دے.

دولت لوانړے چې هر څوک دا عقيده لري چې دے د حالنامې د مؤلف همعصر

---

[1] عبدالحليم شيخ - مقامات قطبيه و مقالات قدسيه مخ ۳۸۔
اردو ترجمه له عبدالرزاق کوثر

[2] پروفيسر مجبور خويشکے دا ارزاني خويشکي کليات (پي - ايچ - ډي) مقاله
ناچاپ مخ ۵۵۔

و - لکه څنګه چې حالنامه ییکي -

" ودر ان نبرد اکثر یاران خوب بکار آمدند و تترخان وخلیل تغائی مرزا خان جیو وبعضی زخمی شده درمیان شهدا افتادند مثل دولت پسر دادو که الحال بر منصب خلافت سرفراز گشته و به خطاب فقیر ملقب شده "[1]

ترجمه :- او په هغه جنګ کښې اکثر یاران پکار راغلل (یعني شهیدان شول) لکه تترخان خلیل تغائي او مرزا خان جیو بعضې زخمي شول او د شهیدانو په منځ کښې پرېوتي وو لکه د مثال په توګه د دادو زوے دولت چې اوس او س د خلافت په منصب سرفراز شوے دے او د فقیر په خطاب نمانځلے شوے دے .

نو د پښتو شاعر علی محمّد مخلّص هم دغه دولت لوانے دیوخېل دوست او هم صحبت په حیث داسې ذکر کوي . ے

د دولت ولي صحبت پوټوے دولت دے
د مستو په دین مست شم بې صهبا
دا مخلّص يې له صحبته فائده مند شه
بنه یاران د دین او تاد دي نقبا

نو دې دلیل نه دا حقیقت څرګند شو چې د حالنامې مؤلف مخلّص هم او د پښتو شاعر مخلّص هم د دولت لواڼي همعصر او دوستان دي نو دا په حقیقت کښې دوه نه بلکې يو شخصیت علی محمد مخلّص دے چې د پښتو

---

[1] حالنامه علي محمد مخلّص مخ ۵۹۷

د دیوان څښتن هم دے او د حالنامې مؤلف هم -

د محققینو دا رائې چې دا دارزاني خوېشکي ورور ملا علي دے صحیح نهٔ ده او نهٔ د قاضي عبدالحلیم اثرؔ صاحب دا رائې صحیح ده چې دا محمد علي مخلص دے او نهٔ د بعضو محققینو دا رائې هم چې دا نهٔ ملا علي دے او نهٔ د حالنامې مؤلف بلکې څوک دریم کس دے -

علي محمّد مخلص د حالنامې پهٔ آخري باب کښې چې عنوان ئې

" دربیان نصائح باولاد پیر دستگیر قدس سرهٔ العزیز "

دے دخپل پیر د پیر روښان کړوسو او د هغوې اولاد ته دخپل خاندان د مشرانو بزرګي او عظمت بیانوې او دا احساس ورکوې چې تاسو هم ددوې پهٔ لار او اصولو روان وسئ او ددوې د سپکړېدو او شملې عزت پهٔ ځائے وساتئ . دېښتو د شاعـر علي محمّد مخلص پهٔ دیوان کښې داسې یو شعر هم شته چې دخپل پیر دخاندان د اولاد د مستقبل غم پهٔ زړهٔ لري سکه چې وائي -

ه

دبزرګانو فرزندان عراقي اس دے
مـسـګرخدائے دعراقیانو رهنمون شي

زیږ پړ نهٔ ، قام قبیله او
ځائے ځائیـــګے

---

علي محمّد مخلص دابابکر قندهاري زوے دے . ابابکر

نهٔ ابابکر ایله بلوغت ته رسېدلے ؤ چې د جلال الدین
جیو پهٔ خدمت کښې حاضر شو

"ای عزیزمن پدر فقیر تازه به بلوغت رسیده بود که در خدمت
جلال الدین جیو مشرف گشت و بخدمت خود را ممتاز گردانید"

(حالنامه - مخ ۲۲۷)

ترجمه :-

اے دروره ! د فقیر پلار ایله ایله بلوغت ته رسېدلے ؤ چې
د جلال الدین جیو پهٔ خدمت کښې د شرف لائق وګرځېد
او پهٔ خدمت يې ځان سرفراز کړو ۔

ابابکر د احداد ، الهداد ( رشید خان ) او بیا
د مغلو د فوځ ډېر بهادر او نوموړے کماندار ؤ. مغل
باچاه جهانګیر او شاه جهان هم د ابابکر پهٔ بهادرۍ
ډېر مئین ؤ د کله چې الهداد ( رشید خان ) د احداد
نه خفه شو او پهٔ (۱۰۲۵ هـ ، ۱۶۱۶ ع ) کښې يې
د جهانګیر اطاعت قبول کړو نو ابابکر د رشید خان
ملګرے شو او د هغهٔ سره هند ته لاړو ابابکر د پښتو
ژبې شاعر هم ؤ د (مرات العارفین) او "سراج العارفین"
يې دوه منظوم کتابونه دي -

( حالنامه )

د حالنامې د واقعاتو او منل رجاتوله مخه د علي محمد مخلص د زېږېدنې نېټه قیاساً ١٠١٩-٢٠ هـ / ١٦١٠-١١ م ټاکلې کېدې شي. [۱]

---

[۱] جلال الدین په ١٠١٢ هـ / ١٦٠٣-٤ م کښې شهید شوی و. د ده د شهادت نه پس احداد د روښانیانو د ګدۍ نشین مشر شو. څو کاله پس د احداد په غوښتنه درویش داد خپله لور ابابکر ته واده کړه. دې لړ کښې د حالنامې بیان داسې دی. "اخر جلال الدین جیو از دار الفنا به دار البقا رحلت نمود احداد جیو جانشین ایشان شد... بعد از چند سال احداد کسی فرستاد که مردم قندهاری بدین معنی راضی اند که با درویش خویشی بکند و دختر بدهند درویش اول ابا نمود بعده عزیزانش بدین معنی راضی کردند. نسبت والدین فقیر شد." حالنامه (٢٣٢)

د احداد د ګدۍ نشینۍ (١٠١٢ هـ) نه څو کاله پس د ابابکر واده د درویش داد د لور سره وشو "څو کاله" محترم قلندر مومند صاحب "د خیر البیان تنقیدي مطالعه" کښې په "درېو کالو" د حساب ولو یو قیاس څرګند کړی دی. "اوګوره د "چند سال" دې کاله هم وګڼو" د مخ یب. د اشاعت کال ١٩٨٨ م)

نو په دې حساب د ابابکر واده په سنه ١٠١٥ هـ / ١٦٠٦-٧ م کښې امکان لري د ابابکر دوه زامن پیدا شو. یو خواجه محمد چې مشر و او دوېم علي محمد چې کشر و. د پیدائش اوسط وقفه دوه دوه نیم کاله وي نو په دې حساب د علي محمد مخلص پیدائش د ابابکر د واده سنه ١٠١٥ هـ / ١٦٠٦-٧ م نه څلور پنځه کاله پس اندازه کېدې شي. په دې حساب د علي محمد د پیدائش نېټه سنه ١٠١٩-٢٠ هـ / ١٦١٠-١١ م خواوشا ووځي.

یوه بله واقعه د مخلص په دې پیدائش زمونږ څه لږ ډېر مدد کولې شي او هغه دا چې مخلص روحاني روزنه د مرزا خان انصاري نه حاصله کړې

(پاتې بل مخ)

(پهٔ تېرو پسې) وه لکه چې لیکي" ومعرفتِ ذات وعلم توحید فقیر از ایشان مستفید گشته"
(حالنامه مخ ۵۶ ط) او کله چې د مرزا خان انصاري نه رخصتېدهٔ نو لیکي چې[16]
د ودداں ایام که شاه جهان بادشاه بر تخت نشسته فقیر از خدمت ایشان
رخصت شده ؛ حالنامه مخ ۵۶ ط )

شاه جهان پهٔ $\frac{\text{سنه ۱۰۳۷ه}}{\text{۱۶۲۷-۲۸ع}}$ کښې پهٔ تخت کښېناست دغه رنګ
د علي محمد د رخصتېدو کال ۱۰۳۷ه سره سره $\frac{\text{سنه ۱۰۳۸ه}}{\text{۱۶۲۸-۲۹ع}}$ هم کېدے شو
پهٔ دې حساب دغه وخت ددهٔ عمر اتلس[18] نولس[19] کاله وُ - د مخلص پهٔ دې
عمر د مرزا خان انصاري دهاغه خط نه کې هم یو شهادت کرځېدے شي
کوم چې پهٔ حالنامه کښې درج دي - دې خط کښې مرزا خان علي محمّد
او خواجه محمد دواړو ته د " فرزندان عزیز سعادت مند " پهٔ نکو سره
مخاطبه کوي لکه چې لیکي -

" بسم الله الرحمٰن الرحیم - فرزندان عزیز سعادت مند، نور الابصار خواجه محمد و علی محمد
دا بعد از سلام خیر انجام اینهائی آنکه الحمد لله که احوال اینجای به خیر مقرون
است وخیریت ان فرزندان مطلوب است " حالنامه مخ ۵۶ ط

ددې خط د پوره مضمون د لوستو نه پس دا خبره څرګندېږي چې د دوئ تر منځه
تر یو وخته د خط وکتابت سلسله جاري وه او باقي ددې خطونو پهٔ ذریعه علي محمد د
مرزا خان نه تربیت حاصلولو نو د $\frac{\text{سنه ۳۸-۱۰۳۷ه}}{}$ نه پس مرزا خان صرف دوه درې کاله
پورې ژوندے وُ ځکه چې دے پهٔ $\frac{\text{سنه ۱۰۴۰ه}}{\text{۱۶۳۰-۳۱ع}}$ کښې د دکن پهٔ یو جنګ کښې شهید
شو -

مشهور خلیفه ؤ - د فرید خان دولت زي خدا ئیداد خېل زوئے ؤ او د مستورې (د تیراه) او سید ونکے ؤ - ترکومه چې د مخلص د زېږېدنې د ځائے ځائیګي تعلق دے نو قندهار د هغهٔ د پلار نیکهٔ وطن ؤ او زیات امکان دا لري چې د ده زېږېدنه هم پهٔ قندهار کښې شوے وي - دویم امکان ئې تیراه کېدے شي ځکه چې تیراه د روښانیا نو روحاني او عسکري مرکز ؤ - بل د موږ پلار ګنډ یې هم د تیراه وه -

## زدکړه :-

د علي محمد مخلص د با قاعده زده کړې مدرسې یا د استاذانو پهٔ حقله څه مستند معلومات نشته خو پهٔ حالنامه کله چې دے د ېنځو کالو ؤ د ده د قران د لوستلو یو شهادت ورکوي -

"درآں ایام که فقیر پنج ساله یا شش ساله بود که قران میخواند"[۱]

د روحاني روزنې او علم پحقله مخلص پهٔ حالنامه کښې د مرزا خان انصاري نه د فیض ذکر کوي -

"و بر این فقیر کم بضاعت مهربانی و شفقت از حد زیاده داشت و معرفت ذات و علم توحید فقیر از ایشان مستفید گشته"[۲]

د دې نه علاوه د تربیت پهٔ لړ کښې د رشید خان د برخې ذکر هم کوي -

مهربان بوده مخلص از پدر
تربیت ازوی شدم بشنو پسر[۳]

---

[۱]، [۲]، [۳] علي محمد مخلص حالنامه مخ ۵۶

دولت لوانړي چې ددهٔ همعصر وُ او ديو ولي په درنه نامه سره يې بولي دهغهٔ د ذات او صحبت نه دګټې پورته کولو ذکر هم کوي . ؎

ددولت ولي صحبت پولوئې دولت دے
دمستئ په دين ن مست شم بې صهبا
دامخلص يې له صحبته فائده مند شهٔ
بنهٔ ياران ددين اوتاد وي نقبا

دعلي محمد مخلص د شاعرئ نه او دحالنامې دلوستو نه دا اندازه ډېره په اسانه لګي چې دے يو ډېر لوئې عالم او لوستے سړے وُ . پهٔ باطني او روحاني توګه د ذات دمعرفت او دتوحيد دعلم نه اګاه وَ . او پهٔ روحاني سلسله کښې دخلافت پهٔ منصب نماځلے شوے وَ . ددې نه علاوه دتصوّف پهٔ فلسفيانه او علمي سطح هم پوره اګاه وُ . دقران او حديث مطالعه يې لرله دفارسۍ، عربۍ او هندۍ ژبې اوادب نه هم خبر وُ پهٔ حالنامه کښې چې دهٔ دکومو کتابونو ذکر کړے دے يا يې ترې حوالې راخستې دي . هغه ددهٔ پهٔ مطالعه يو معتبر شهادت وړاندې کوي . دمثال پهٔ توګه د بشر حافي اقوال بحرالحقائق ، تفسير حسيني د بايزيد بسطامي شعرونه د رومي مثنويات ، دعبدالرحمٰن جامي اشعار ، د فريدالدين عطار اشعار او د هغه د منطق الطير ذکر ، د امام ثعلبي ذکر ، دمصلح الدين شيرازي ذکر او د هغهٔ اشعار دګلستان او بوستان ذکر ، دخواجه حافظ شيرازي ذکر، دولي محمد برکي دکتابونو ذکر ، لکه د کتاب لطيفه او شريفه ذکر ، زادالمسافرين، تمهيدات عين القضات او دمنصور حلاج وغيره ذکر .

## مرینه :-

د علي محمد مخلص د مړینې یقیني کال خو نهٔ دے معلوم خو پهٔ حالنامه کښې دها دیداد د مرګ د کال ۱۰۶۹ھ/۱۶۵۸ء د ښودلو پهٔ وجه دومره ویلے کیدے شي چې ددهٔ ژوند تر ۱۰۶۹ھ/ ۵۹ – ۱۶۵۸ء پورې یقیني دے خو د ۱۰۶۹ھ/ ۵۹-۱۶۵۸ء نه وروستو د حالنامې بعضې حالات او واقعات د ابنائي چې د ۱۰۶۹ھ نه پس اتهٔ کاله روستو هم ژوندي وُ -

لکه د مثال پهٔ توګه دے درشیدخان د نوسو او کروسو ذکر هم کوي درشیدخان دیو زوي اسدالله ذکر کوي بیا ددهٔ د زامنو نومونه اخلي چې دادي - ولي محمد شفقت الله ، امان الله او سیف الله، بیا د ولي محمد د زامنو ذکر هم کوي چې د رشید خان کړوسي دي لکه چې لیکي -

" د پنج پسر دارد یکی علی محمد، دوئم اشرف محمد دیگر یوسف محمد حق تعالیٰ ایشان را بسعادت و کمال به پیری رساند بحرمت النبی واله الامجاد"

ترجمه :-

ولي محمّد پنځه زامن لري یو علي محمد ، دویم اشرف محمد او بل یوسف محمد حق تعالیٰ دې دوي د نبي پهٔ حرمت نیک بخته دکمال او اوږد ژوند خاوندان کړي -

ددې حالاتو او واقعاتو پهٔ تناظر کښې مونږ دا اندازه لګولے

---

حالنامه مخ ۸۷م
" " مخ ۸۸م
" " مخ

شو چې د مخلص د ژوند اثار د ۱۰۶۹ھ نه روستو هم امکان لري دده د مرګ او دغه شان نېټه موږ ۱۰۸۰ھ/ ۷۵-۱۶۶۹ء خواؤ شا ټاکلے شو۔

## په هندوستان کښې د مخلص د استوګنې او مرېښې ځائے

کله چې الهداد (رشید خان) د احداد نه خفه شو او د مغلو په اطاعت راضي شو نو ۱۰۲۵ھ / ۱۶۱۶ء کښې د جهانګیر بادشاه په حضور کښې حاضر شه هم په دغه کال ئې ورته د "خان" خطاب او ۱۰۲۶ھ/۱۶۱۷ء کښې ئې ورته د رشید خان خطاب ورکړو۔ رشید خان ته په شمس اباد کښې جاګیر ورکړے شو او دهٔ دغلته "رشیداباد" په نوم یو کلے اباد کړو (۲) د روښنا نیانو اصل مرکز هم دا رشیداباد ؤ۔ نو د مغلو د ملازمت له مخه رشید خان د مختلفو ځایونو حاکم او صوبه دار پاتې شوے ؤ هغه د برهان پور او نانډېړ صوبه دار هم پاتې شوے ؤ د تلنګانې په انتظام هم ټاکلے شوے ؤ او حالنامه د دے داورنګ اباد صوبه دار هم بنائي (۲)

د حالنامې د واقعاتو نه دا اندازه لګي چې دده د خاندان اکثر غړي او نور اوچت روښنانې عالمان او فاضلان به هم د دوي سره اکثر دربدر ؤ۔ مخلص هم په دغه کسانو کښې یو دے۔ مخلص په برهان پور کښې

---

له توزک جهانګیري (اول جلد) ترجمه او حاشیې اعجازالحق قدوسي مخ ۵۱۶ ، ۵۱۹ ، ۵۲۱، ۵۳۹ ۵۹۹ ، ۶۶۸

هم د دوی سره ؤ . لکه چې لیکي .

" ای عزیز من روزی در برهان پور با خان مغفور مذاکره در علم حقائق می نمودم از وقت صبح تا پیشین در گفت وگو بودیم [1]"

ترجمه :- اے ورور! یوه ورځ برهان پور کښې دخدائے بخښلي خان (هادي داد) سره دحقائقو دعلم په لړ کښې مذاکره کوله دسحر نه واخله تر ماسپخین پورې په دې خبرو کښې اخته وو ."

یوه بله واقعه داهم ښائي چې مخلص ځه موده په برهان پور کښې وسېدو او هغه داچې کله قادرداد خپله مور بي بي علائي د رشید اباد نه دکن ته وغوښته نو په دکن کښې برهان پور ته لاړه . د برهان پور د قیام په دوران کښې هغې وغوښته چې مخلص دې ماسره ملاقات وکړي خو مخلص په هغو ورځو کښې سخت بیمار ؤ . د تلو طاقت ئې نه ؤ . بي بي علائي خپله د هغه کور ته راغله او د هغوئې سره ئې ولیده .

حالنامه لیکي .

" قادر داد جیو ایشان را از رشید اباد بدکهن طلبید تا از لقاء پرنور ان مریم مکانی بهره مند گردد [2]"

" و چون بدکهن تشریف برد در بلدهٔ برهان پور قادر داد و مهدیداد را طلبید [3]"

" چون خواستهٔ که از اینجا تشریف برد دران روزها فقیر ازاری داشت طاقت

---

[1] علي محمد مخلص حالنامه مخ ۱۷۱

[2] همدغه مخ ۲۷۲

رفتن بحرمت ایشان نداشتم بی بی جیو واقف بود ۔ آخر فرمود که خلیفه ازاری دارد نمی تواند که امده مرابه بیند بهتر انست که من رفته ایشان رابه بینم که بازامدن خود درایں دیار از محالات میدانم آخر تشریف اورده خانه زاد خود را سرفراز ساخت و از علل صوری ومعنوی نجات بخشید وبصیر وبصیرت راروشنائی داد ۔[1]

ترجمه :-

چې هغهٔ دخپلې مریم مکان مور پهٔ دینن ذرهٔ اوسترګې نجې کړې " او کله چې دکن ته لاړه نو قادرداد او مهد یداد ئې د برهانپور بشارته راوبلل ۔"

" کله چې ئې دبي بي علائي وغوښته چې ددې خاصه دې تشریف یوسم نو په هغه ورځ کښې فقیر ( مخلص ) بیمار وُ دهغې پهٔ خدمت کښې دحاضریدو طاقت مې نهٔ وَ ۔ بي بي هم خبر وه اخر ئې وفرمائیل چې خلیفه بیمار دے زما لیدو له راتلے نشي نو ښهٔ داده چې زهٔ خپله ورشم او دې ووینم ځکه چې دې وطن ته زما بیا راتلل ګران دي اخر هغوي تشریف راوړو او دا خپل خانه زاد ئې پهٔ عزت ونما نځلو دصوري او معنوي نقائصو نه ئې خلاصے راکړو او زما سترګو او بصیرت ته ئې رڼا راوبخښله "

رشید خان چې کله د ننګرهار پهٔ صوبه کښې پهٔ ۱۰۵۸ هـ کښې وفات شو دهغهٔ

---

[1] له علي محمد مخلص ۔ حالنامه مخ ۱۷۷

مړه یې په اورنګ اباد کښې خاورو ته وسپارلو خوځه موده پس دهغه مړے یې رشید اباد ته راوړو او دلته یې ښخ کړو - ددهٔ دخاندان ټول افراد او نور روښانیان هم رشید اباد ته راغلل او اباد شول نو علي محمد مخلص به هم ضرور دلته راغلے وي -

حالنامه لیکي -

اخر بعد از چند گاه نعش خان صاحب ازان جا کشیده به رشید آباد آوردند ورشید آباد از مقدم مبارک ایشان از سرنو ابادانی گرفت وخیل خانه وفرزندان پیر دستگیر واز مردم روشانی که بدکهن رفته بودند باز امده در رشید اباد ساکن شدند واین شهر ویران بی رونق را از سرنو رونق دادند[1]"

ترجمه :-

اخر څه موده پس دخان صاحب (رشید خان) مړے یې دهغه ځایه راوکښو او رشید اباد ته یې راوړو رشید اباد د دوي په راوړلو سره سر دوباره اباد شو دپیر دستګیر ټوله خېل خانه او نور روښاني غړي چې دکن ته تلي و ټول واپس راغلل او په رشید آباد کښې استوګن شول او په دې وران او بې رونقه ښار کښې بیا رونق راغلو -

ددې نه علاوه دعلي محمد مخلص خېل پلار چې چرته ښخ و او ددهٔ مشر ورور خواجه محمد چې چرته وسېدو هغه د اړیسه په صوبه کښې دمېدنې پور مقام دے چې دقبائلي بنګال علاقه وه -

---

[1] علي محمد مخلص حالنامه مخ ۸۵

۳۸ - ۱۰۳۷ھ کښې علي محمد مخلص چې کله د مرزا خان نه رخصتېدو چې د هغهٔ د کچه ځوانئ زمانه وه نو نېغ د ورور ملاقات او د خپل پلار د قبر د زیارت د پاره مېدني پور ته تلے وُ - کله چې حالنامه کښې لیکي -

و در ان ایام که شاه جهان بادشاه بر تخت نشسته فقیر از خدمت الیشان رخصت شده بسیر اودیسه (اوڑیسه) برائے دیدن برادر وطواف مزار پدر خود رفتم ۱؎

ترجمه:-

او هغه ورځو کښې چې شاه جهان په تخت ناست وُ. فقیر (مخلص) ددهٔ دخدمت نه رخصت شو او د اوړیسه په سفر د ورور د دیدن او د پلار د زیارت د طواف د پاره لاړم -"

پهٔ دې حواله مېدني پور هم یو قسم له د علي محمد مخلص کلے او وطن ښکاریږي هر کله چې ددهٔ پلار هم هلته ښخ دے او ددهٔ د مشر ورور ژوند او زلیست هم هلته یقیني دے نو د هغهٔ د مرگ او مدفن ځائے هم غالباً مېدني پور کېدے شي - نو ددې حقیقت په تناظر کښې دا خبره اعتبار لري چې علي محمد مخلص به اخر هم ددغه پلار او ورور کلي کور ته راغلے وي دلته به وفات شوے او ښخ شوے وي -

خو بیا هم رشید اباد (شمس اباد) ددې امکان نه بهر کېد لے نهٔ شي چې علي محمد مخلص د ژوند اخري ورځې دلته تېرې کړې وي - دلته به

---

۱؎ علي محمد مخلص - حالنامه - مخ ۵۶

وفات شوے او پنځه شوے وي -

مطلب دا چې صرف دا دواړه ځايونه داسې دي چې دلته د علي محمد مخلص د مرګ او مدفن امکان کېدے شي -

## علمي او ادبي چاپېريال :-

مخلص د جهانګير باچا په دور سنه ١٠١٤ھ/١٦٠٥ء - سنه ١٠٣٧ھ/١٦٢٨ء کښې پيدا شو او د بلوغ د ځوانئ تر حده ورسېدو - د شاه جهان ١٠٣٧ھ/١٦٢٨ء سنه ١٠٦٨ھ/١٦٥٨ء) په زمانه کښې يې تموله ځواني تېره کړه د اورنګزېب د دور سنه ١٠٦٨ھ/١٦٥٨ء - سنه ١١١٨ھ/١٧٠٧ء په ورومبو کلونو کښې يې د خپل عمر اخري کلونه تېر کړل -

د مغلو دور د علم ادب او تصوّف د عروج زمانه وه - د اکبر په دور کښې بون پور، ډيلے، لاهور، سيالکوټ، احمد اباد وغيره د اسلامي علمونو مرکزونه وو - د اکبر نورتن يو تاريخي شهرت لري - د اکبر نه علاوه د جهانګير او شاه جهان په دور کښې هم علمي او روحاني ترقي ښه په زور وه - حضرت خواجه باقي بالله شيخ مجدد الف ثاني" او شيخ عبدالحق محدث" د دغه دورونو لويې علمي او تصوّفي شخصيتونه وي - په دې دورونو کښې د سنسکرت، عربۍ او هندۍ نه علاوه په فارسۍ ژبه کښې ډېر کتابونه ترجمه شول - تاريخ، اخلاق تصوّف، شاعري، منطق او فلسفې هم ښه عروج وموندو - د تصوف ډېر زيات کتابونه وليکلے او ترجمه شول - د ابن عربي مولانا رومي، مولانا جامي" عطار"، سعدي او حافظ شيرازي" د کتابونو او شاعرۍ مطالعه د علم او ادب يوه لازمي حصه ګرځېدلې وه - د مجدد الف ثاني" تصوفي نظريو د هندوستان په علمي دنيا کښې يو انقلاب پيدا کړے و - د تصوف مشهورې سلسلې د غه وخت په هند کښې قائمې شوې وې - د مثال په توګه شطاريه

مداریه، قادریه، چشتیه، سهروردیه، نقشبندیه او صابریه وغیره.

د مغلو په دور کښې د شاعرۍ د فن هم ډېر قدر کېدلو په دربار کښې د ملک الشعراء عهده په وړومبي ځل د اکبر په دور کښې وټاکلې شوه طبقاتِ ناصري د اکبر د دور د مشهورو عالمانو شمېر ۹۹ او د مشهورو صوفیانو شمېر ۶۷ او د نورو شاعرانو شمېر ۸۶ ښودلے دے. غزالي، فیضي او عرفي شیرازي د اکبر د دور مشهور شاعران وو. د دوي نه علاوه د هندي ژبې دوه مشهور شاعران سورداس، تلسي داس هم د دې دور سره تعلق لري طالب املي د جهانګیر د دربار ملک الشعراء وُ.

د شاه جهان دور د مؤرخینو په خیال د علم او ادب د لطیفو فنونو یو اعلیٰ دور وُ. د نورو علومو سره د مصورۍ د فن هم ډېر زیات قدر کېدلو.

د اورنګزیب (۱۰۶۸ھ / ۱۶۵۸ء - ۱۱۱۸ھ / ۱۷۰۷ء) په دور کښې د ادبي، تصوفي او نورو فني علومو ترقي په ځائے ودرېده. د دربار نه د ملک الشعراء عهده ختمه کړې شوه. د وقائع نویسۍ او د درباري مورخ عهده هم ختمه کړې شوه. اورنګزیب اګرچې د ادبي ذوق خاوند وُ. د حافظ شیرازي شاعري ئې خوښه وه خو بیا هم د حافظ په دیوان یې پابندي لګولې وه. د عالمګیر په دور کښې اسلامي فقهې او دینې درس او تدریس ډېره ترقي کړې وه. مشهور مدرسین او فقیهان په دې دور کښې پېدا شول "فتاویٰ عالمګیري" د دې دور یو مشهور فقهي کتاب دے خو د دې باوجود د مرزا بېدل، فطرت، ناصرعلي سرهندي او د نعمت خان عالي غوندې مشهور فارسي شاعران هم د دې دور سره تعلق لري.

د هندوستان ددې عمومي او مرکزي علمي او ادبي چاپېریال سره سره دده خپل سیمه ایز علمي او ادبي چاپېریال دده دپاره نور زیات اهمیت لري په هندوستان کښې دده استوګنه په دکن کښې وه ـ دکن د بهمني ریاست (۷۴۸ھ / ۱۳۴۷ع تر د ۹۰۰ھ / ۱۴۹۴-۹۵ع) د ټوټې کېدو نه وروستو په درېو غټو ریاستونو کښې تقسیم شوے و ـ په درېو ریاستونو کښې یو ریاست د قطب شاهانو و چې په سنه ۹۱۶ھ / ۱۵۱۰-۱۱ع کښې قائم شوے و ـ سلطان قلي قطب شاه ددې سلطنت باني و ګولکنډه ددې ریاست پایه تخت و ـ دې کورنۍ یو سل اتیا کاله حکومت کړے و ـ ابوالحسن تانا شاه (سنه ۱۰۸۳ھ / ۱۶۷۲-۷۳ع نه تر سنه ۱۰۹۸ھ / ۱۶۸۶-۸۷ع) ددې کورنۍ اخري سلطان و ـ

دویم ریاست د عادل شاهانو و ـ ددې ریاست باني یوسف عادل شاه و چې په ۸۹۵ھ کښې ئې دا سلطنت قائم کړے و ـ بیجاپور ددې سلطنت پایه تخت و ـ دې کورنۍ تر دوه سوه کالو پورې یعنې تر سنه ۱۰۹۷ھ / ۱۶۸۵-۸۶ع پورې حکومت کړے و ـ سلطان سکندر عادل شاه ددې کورنۍ اخري سلطان و ـ

دریم ریاست د نظام شاهانو ریاست و ـ دا ریاست احمد شاه نظام په سنه ۸۹۵ھ / ۱۴۸۹-۹۰ع کښې قائم کړے و ـ ددې سلطنت پایه تخت احمد نګر و دې کورنۍ تر سنه ۱۰۴۳ھ / ۱۶۳۳-۳۴ع پورې حکومت کړے و ـ سلطان برهان ثالث ددې کورنۍ اخري سلطان و ـ

دا ددې واړه کورنۍ د علم او ادب د روزنې او پالنې دپاره ډېر لوئے خوم لري ـ د قطب شاهي کورنۍ اکثر باچهان او شهزادګان عالمان شاعران او ادیبان وو ـ دې کورنۍ د فارسي ادب علم، نظم او نثر سره سره دکهني (اردو) ادب په پرمخ تګ کښې ډېر لوئے لاس در لودے دے ـ ددې شاهي کورنۍ باني سلطان قلي قطب شاه خپله د فارسي او اردو یو لوئے شاعر و ـ دده د دکهني اردو شاعرۍ یو کلیات هم شته چې په سنه ۱۰۲۵ھ / ۱۶۱۶ع کښې مرتب کړے شوے و ـ فیروز، محمود، ملا وجهي

غواصي - احمد خیالي ، قبطي ابن نشاطي او جنیدي وغیره ددې دور لوئے لوئے شاعران وو-

دقطب شاهانو هغه باچان کوم چې زمونږ دپښتو شاعر علي محمد مخلص هم عصر وو - په هغوي کښې یو محمد قطب شاه (سنه ۱۰۲۰ھ/۱۶۱۱-۱۲ء - سنه ۱۰۳۵ھ/۱۶۲۵-۲۶ء) او بل عبدالله قطب شاه (۱۰۳۵ھ - ۱۰۸۳ھ) ؤ - دوي دعلم او ادب په روزنه کښې ډیر لوئے نوم پیدا کړے ؤ - دوي دواړه خپله شاعران هم وو - ددوي د دور لوئے لوئے د فارسي ژبې عالمان چې شاعران هم وو دا وو - علامه فهامي ، مولانا رونقي او نورالله قیصري وغیره - دغه رنګ دغه وخت په دکهني ژبه کښې غواصي ابن نشاطي ، جنیدي او طبعي مشهور شاعران وو -

ددکن دویمه شاهي کورنۍ دعادل شاهانو ، وه داکورنۍ هم لکه دقطب شاهي کورنۍ دعلم او ادب ډیره زیاته قدردانه وه - ددې کورنۍ اکثر باچان او شهزادګان هم شاعران ، ادیبان او د مختلفو علومو ماهران وو-

ددې سلطنت باني یوسف عادل شاه (سنه ۸۹۵ھ/۱۴۸۹-۹۰ء - سنه ۹۱۶ھ/۱۵۱۰-۱۱ء) خپله د فارسي ژبې لوئے شاعر ؤ في البدیهه شعرونه به ئې وئیل دیوسف عادل شاه زوے اسمٰعیل عادل شاه (سنه ۹۱۶ھ/۱۵۱۰-۱۱ء - سنه ۹۴۱ھ/۱۵۳۴-۳۵ء) هم د شاعرۍ او موسیقۍ یو لوے ماهر ؤ - دبیجاپور مورخینو فرشته ، نورالله او زبیري وغیره دده دعلم او فضل ډیر صفتونه کړي دي - ددې کورنۍ هغه باچان چې زمونږ دپښتو شاعر علي محمد مخلص هم عصر ؤ - هغو کښې یو ابراهیم عادل شاه ثاني (سنه ۹۸۸ھ/۱۵۸۰ء - سنه ۱۰۳۷ھ/۱۵۸۰ء) ؤ او دویم محمد عادل شاه (سنه ۱۰۳۷ھ/۱۶۲۷-۲۸ء - سنه ۱۰۶۷ھ/۱۶۵۶-۵۷ء) او دریم علي عادل شاه (۱۰۸۳ھ) ؤ - ابراهیم عادل شاه ثاني دعلم ادب او هنر د روزنې او ودې په لړ کښې یو بې مثاله باچا یاد یږي - ابوالقاسم فرشته

نورالدین ظهوري ، ملا ملک قمي ، عبدالرشید ابستکي ددې دور لوئے مورخان وو - ابراهیم عادل شاه ثاني خپله د شاعرۍ ، موسیقۍ او خوشنویسۍ یو ډېر لوئے ماهر ؤ - نورس ، په اردو ادب د هغهٔ یو ډېر لوئے احسان ؤ - عبدل اتشي - مقیمي او آمین ددهٔ د دور لوئے لوئے شاعران وو - ددې کورنۍ او د علي محمد مخلص بل هم عصر شاعر باچا محمد عادل شاه (۱۰۳۷ھ - ۱۰۶۷ھ) ؤ دا د مخلص د ځوانۍ او د عمر د اکثرې بالغې او صحتمندې برخې دور ؤ - دا باچا دومره علم دوسته ؤ چې په خپله باچاهۍ کښې ئې د هر مضمون او هرې ژبې د تعلیم د پاره مدرسې جوړې کړې او د طالبعلمانو د پاره یې وظیفې وټاکلې - دهٔ به هره ورځ د یوې کښې د پاره د عالمانو او شاعرانو محفلونه جوړول -

ددې کورنۍ بل باچا علي عادل شاه (سنه ۱۰۶۷ھ / ۱۶۵۶-۵۷ء - سنه ۱۰۸۳ھ / ۱۶۷۲-۷۳ء) ؤ چې د علي محمد مخلص د عمر د اخرې برخې سره تعلق لري په دور کښې د علم او ادب او د نورو علمونو او هنرونو ډېر زیات پرمختګ وشو. وائي چې دهٔ په سفر په وخت کښې د ځان سره د کتابونو نه ډک څلورسوه صندوقونه کرځول - ددهٔ په دور کښې لوئے لوئے عالمان بیجاپور ته راجمع شوي وو - کور په کور د شاعرۍ ذوق عام شوے ؤ او د شاعرانو کافي زور ؤ - د محمد عادل شاه او د علي عادل شاه د دور چې کوم مشهور شاعران تېر شوي دي د هغو څو نمونه دادي -

مقیمي دولت شاه ، امین ، صنعتي ، ملک خوشنود ، شوقي ، نصرتي ، هاشمي ایاغي او مرزا قادر وغیره -

د دکن دریمه شاهي کورنۍ د نظام شاهانو کورنۍ وه - دا کورنۍ هم لکه د نورو شاهي کورنیو پوهه او علم دوسته کورنۍ وه - ددهٔ کورنۍ

درياست پولې هر کله چې دمغلو دباچهي دسرحد ونو سره تړلې وې نو ددوي زيات وخت دمغلو دچپاوُنو او جنګونو په يره کښې تېر کړو. په دې وجه هغه هومره دعلم دخدمت موقع ورته په لاس ورنغله څومره چې دغه دوو يادو کورنيو ته په لاس ورغله . ددې کورنۍ برهان نظام شاه (سنه ۹۱۴ھ ۹-۱۵۰۸ء نه تر سنه ۹۶۱ھ ۱۵۵۴ء) ته په خپل دور کښې دعلم اوادب دخدمت اوروزنې ډېره موقعه په لاس ورغلې ده . اشرف افتابي او شوقي دنظام شاهانو دور مشهور شاعران دو .

ددې دور د دريو وارو رياستونو په شاعرۍ کښې خاص کر غزل، قصيدهٔ مثنوي رباعي اوعموماً په هر قسمه صنف باندې ليکل وشو. دمضمون په لحاظ اهمې موضوع ګانې رزم او بزم، عشق او محبت او تصوّف او فلسفه ده .

" ان حکمرانوں کے دور کے مسلسل اور طویل نظموں کے نمونے موجود ہیں جو صرف کسی اور زبان کے ترجموں تک محدود نہیں ہیں بلکہ اپنی اوطبع زاد بھی ہیں. صنف شاعری کی متعدد اقسام مثلاً مثنوی ، قصیدہ ، غزل ، مخمس ، رباعی اور قطعہ میں انہوں نے طبع ازمائی کی ہے ، اور اپنی یادگار میں شعروسخن کے بہتر سے بہتر نمونے چھوڑ گئے ہیں .

ان کی شاعری میں رزم بزم ، واقعہ نگاری، مرقع نگاری، عشق وتصوف وفلسفہ سب کچھ موجود ہے ۔ اسلوب بیان کی جدّت ، تخیل کی بلند پروازی ، خیالات کی ندرت اور سادگی وصفائی ، تسلسل او پاکیزگی ان کے کلام کے خاص جوہر ہیں [۱] .

---

[۱] نصیرالدین هاشمي ، دکن میں اردو - مخ ۲۵۵

# سیاسي تمدني او معاشرتي چاپیریال:

لکه څنګه چې ذکر وشو چې د مخلص زمانه د جهانګیر، شاه جهان او د اورنګزیب دریو واړو باچانو په زمانه تېره وه. دا زمانه په اولسي سطح د سیاسي، معاشرتي او معاشي خوشحالۍ زمانه وه. هر کله که وخت ناوخت به د باچانو، شهزادګانو، دځینو امیرانو او عسکري شخصیتونو د سرغړنې او بغاوت واقعې پېښېدې دغه رنګ ځنې ورې ورې مذهبي پېښې به هم وشوې خو د هندوستان په عمومي، سیاسي او معاشرتي امن به ئې څه خاص اثر نه پرېباسلو او د هندوستان عام اولس به د داسې حالاتو نه ناخبره ؤ. د هند معاشرتي چاپیریال د هندو او مسلمان یوه مخلوطه معاشره وه. د هر قسمه رواداري یو دوران ؤ. دګینو مذهبونو خلقو به زیات تر د امن او ورورولۍ وخت تېرولو د مذهبي رواداري په حقله کپتان هملټن پخپله سفرنامه کښې لیکي.

"شہر سورت میں تخمیناً سو مختلف مذاہب کے لوگ رہتے ہیں لیکن ان کے درمیان اعتقادات وعبادات کے متعلق کبھی کوئی لڑائی نہیں ہوتی ہر ایک کو پورا اختیار حاصل ہے کہ جسطرح چاہے اپنے طریقے سے اپنے معبود کی پرستش کرے صرف اختلافات مذہب کی بنیاد پر کسی کو تکلیف دینا اور آزار پہنچانا ان (مسلمانوں) میں بالکل مفقود ہے[1]۔"

---

[1] عبدالمجید سالک مسلم ثقافت ہندوستان میں - مخ ۸۵

بل حکومتونه هم د مسلمانانو وو . د پښتنو ، مغلو مرکزي او د نورو مسلمانانو صوبائي حکومتونو سیکولر سلوک د دې رواداریه او ورورولیه اصل، محرکات وو د صوفیاؤ په دې مینه او محبت کښې هم ډیر لوئے لاس ؤ .

دې نه علاوه د مخلص په زمانه کښې د روښاني تحریک رزمي او سیاسي اړخ ډیر کمزورے شوے ؤ . د روښانیانو او د مغلو ترمینځه جنګ جګړے او ترخې والے د رشید خان د مغلي اطاعت سره تر ډیره حده کم شوے ؤ . مخلص د رشید اباد اورنګ آباد ، برهان پور او اړیسه د جاګیرداریه ، امیریه او د حاکمیه په چاپېریال کښې د سکون وخت تېرولو .

د هند د مرکزي او عمومي سیاسي او معاشرتي چاپېریال سره سره په خصوصي توګه د دکن سیاسي تمدني او معاشرتي چاپېریال په کوم کښې چې زمونږ شاعر علي محمد مخلص وسېدلو . د امن ، د علم او ادب او د دوې دورولیه او بهائي بندیه دور ؤ . د دکن د درېو وارو ریاستونو باچان په علمي اخلاقي او ذوقي توګه د ډیرې اوچتې مرتبې خاوندان وو . په دکن کښې د هندوانو نه علاوه د ډیرکې نسل او ملکونو خلق هم وسېدل په خصوصي توګه عرب ، ایرانیان ترک ، مغل او پښتانه وغیره د ذکر وړ دي . دې ټولو خلقو د مختلفو تهذیبونو او ثقافتونو سره تعلق لرلو . خو د دې ټولو تهذیبونو او ثقافتونو ګېلو کښې سره د یو بل نه متاثره کېدل او د یو مجموعي کلچر په رنګ کښې د یو وحدت شکل اخستل فطري خبره ده . دا مجموعي کلچر ماهرینو په دکني کلچر یاد کړو . د دکن په دې ټولو ریاستونو کښې نصر کله چې د مسلمانانو حکومتونه وو . نو دا لازمي خبره وه چې د دکن په تمدني او معاشرتي چاپېریال به د مسلمانانو او په مسلمانانو د مقامي

تعمیراتو فن او ادب، جامو کپړو، خوراکونو طعامونو دغم بناديږ او د
نورو مذهبي او معاشرتي رسمونو اثر ديو تاريخي جبر په توګه پړوتلو
محمد نصیرالدين هاشمي صاحب ليکي -

" محمد علی قطب شاہ جو قطب شاہی خاندان کا پانچواں بادشاہ ہے۔ اپنے بدن سے تاتاری لباس بالکل اتار کر پھینک دیا تھا - سر پر سمسور کی کلاہ کی بجائے دکن وضع کی پیچ دار پگڑی، پوستین اور باناتی قبا کے عوض ململ کا جامہ اور شبنم کا نیمہ پہنتا تھا اور ہاتھوں میں جڑاو کڑے ہوتے تھے[1]"

د خوراکونو پحقله ليکي -

" مسلمانوں او ہندوؤں کے اختلاط سے دونوں کے کھانے ملتے گئے اور یہ ایک حقیقت ہے کہ قطب شاہی دور میں مہتمم مطبخ ہندو ہوتے تھے[2]"

## د مخلص مذهبي عقيده :-

دروښاني لټريچر نه داخبره لګه د نمر واضحه ده چې دوي د مذهبي عقيدې له مخه حنفيان وو - په باقي مذهبونو ئې هم عقيده لرله او خلور واړه مذهبه ئې حق ګڼل دغه رنګ د رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَآلِهٖ وَسَلَّمَ د نبوّت دهغهٔ داصحابو او په عشره مبشره باندې لکه د سنيانو عقيده لري دروښاني مکتب هر شاعر خپله داعقيده څرګندول هم ضروري ګڼلې ده چې کوندې هغوي پاخهٔ سنيان دي -

---

[1] محمد نصیرالدین ہاشمی - دکنی کلچر مخ ۲۷۲

[2] " " " مخ ۲۲۶

## حضرت محمّد صَلَّی اللّٰه عَلَیْه وَآله وَسَلّم :-

هر وجود چې نن اظهر دے
د حضرت د نور مظهر دے

د حضرت نور نې ماغزۀ شۀ — نور عالم کوره قشر دے
پۀ اسمان نې نوم احمد وُ — کوز پۀ زمکه محمّد وُ
نور ورانې لۀ کوزه پاسه — دے نوموړے پۀ احد وُ
د دۀ نوم یٰسین طٰهٰ دے — پۀ قران کښې دا ندا دے
خدائے سوګند پۀ دۀ دے کړے — والضّحٰی شاهد رښتیا دے
د رسول فعل د حق دے — ما زبر کړے دا سبق دے
مَا رَمَیْتَ اِذْ رَمَیْتَ — پۀ قران کښې دا الحق دے
د دۀ حکم د حق حکم — بې خبر دے صمٌ بُکمٌ
چې د حق د رسول فرق کا — حق به ورکه ترخه زقوم
د دۀ دین دین اسلام دے — پۀ قرآن کښې دا کلام دے
چې آئین نې د دۀ ترک که — سړے نۀ دے کالانعام دے

## قرآن :-

چې قرآن پۀ دۀ نازل شۀ
پۀ توریت عمل باطل شۀ

بت پرستي د مشرکانو — د انجیل عمل عاطل شۀ
قرآن لوېه معجزه دے — راښکاره پۀ هر لحظه دے
چې پۀ دا خبره شک کا — د هغۀ ډېره بزه دے
چې پر زمکه پر آسمان کښې — کل واضح دي پۀ قرآن کښې

چې موجوده په خشک اوتر دي | تمام کښلي په فرقان کښې
دے مادر د کتابو نو | شهٔ نازل په رمضان کښې
دے چراغ د هدایت شهٔ | د دنیا په شبستان کښې
دے حبل المتین استوار شهٔ | سر ئې پاس په لا مکان کښې
چې د غه رسی محکم کا | وبه رسي په زمان کښې
مقرب به د مولا شي | ملک به ورکا په جنان کښې

## د رسول صلی اللہ علیہ وآلہ وسلم یاران :-

د رسول یاران نجوم دي
څوک ئې پېژني چې کوم دي

مقتدا د مبتدیو | که په شام او که په روم دي
د سرور یاران دي ستوري | لار به مومي چې ئې ګوري
سر ئې کل پرېوځ لور دے | که پرېشان دے لور پر لوري

## د ولایت خاتم :-

ابتدا د ولایت شوه له صدیقه
خاتمت ئې په مهدي معصوم و پاک دے

## شریعت :-

چې بنیاد د شریعت ئې محکم نه وي
د عرفان دې عمارت بانديې هراس دے

شریعت ثابت کلام د پیغمبر شه
د روښان یار په ثابت کلام بلند دے
ښیوکېږي څنې قدم مه بږده مخلصه
شریعت د حقیقت د سیند پټې دے

## د مخلص د شاعرۍ موضوع :-

د علي محمد مخلص د شاعرۍ موضوع د پیر روښان د تعلیماتو او فلسفې وضاحت او څورونه ده لکه د مثال په توګه د پیر روښان د اتو مقاماتو شرعي روحاني مرام او د دغه مقاماتو حال او مقام او د هغو امرونهي د خفي شرک نه نجات په خفي ذکر تاکید - د کامل پیر اطاعت او د ناقص پیر نه ډډه کول - ګمانو کول او یقین پیدا کول - حضوري لرل او غفلت نه ځان ساتل، نیستي او هستي، په مذهب او تصوف کښې د عقل اهمیت او مدارج ، عشق او محبت ، د فقر مقام، نفس او شیطان نه ځان ساتل ، مرګ ډیر ډیر یادول ، او د توحید او معرفت اسرار بیانول دي - د پیر روښان د دې ټولو تعلیماتو روح د وحدت الوجود فلسفه ده. دغه وجه ده چې د مخلص هر غزل یو عنوان لري چې په هغه ایتونو حدیثونو او مقولو اړه لري چې د وحدت الوجود د نظریې نکات او جزئیات بیا ندې رڼا غورځوي -

د مخلص د بیان اسلوب او انداز ټول اصطلاحي دے په دې وجه ده د شاعرۍ ډیره زیاته فلسفیانه او علمي ژورتیا لري -

هم د دې رنګ له مخه مولانا عبدالقدوس صاحب دا خبره ډیره صحیح کوي چې "که مونږ د مخلص صوفیانه کلام او نکات د عطار او د رومي د کلام

سره په یوه تله و سنجونو په تول به ترې کمه ونه خېژي. د مخلص دیوان د فارسي د لوړې صوفیانه شاعرۍ او د پښتو د صوفیانه ادب تر مینځه یو منځوماته کړۍ ده چې د دواړو ژبو د صوفیانو تړون راولي او د روښانیانو پېوند د ابن عربي او رومي وغیره سره لګوي.[1]"

هم ددې خصوصیت له وجې مخلص په وروستیو ځل داکوشش هم کړے دے چې د پیر روښان داتو مقاماتو د عام تصوّف داتو مقاماتو سره چې مخلص ورته "اتهٔ صفته" وائي - سره معنوي مطابقت پیدا کړي مثلاً د پیر روښان اتهٔ مقامات دادي (۱) شریعت (۲) طریقت (۳) حقیقت (۴) معرفت (۵) قربت (۶) وصلت (۷) وحدت (۸) سکونت.

د اسلامي تصوّف عام اتهٔ مقامونه یا صفتونه دادي -
(۱) توبه (۲) عبادت (۳) زهد (۴) صبر (۵) رضا (۶) شکر (۷) محبت (۸) معرفت - ددې دواړو مسلکونو دیو څو مقامونو د معنوي مطابقت مثالونه ولولئ -

ه

د توبې مقام اول دے
لوئے تایب آدمؑ مرسل دے
چې توبه یې کړه له غېره        شهٔ فلاح له خجالته

---

[1] مولانا عبد القدوس صاحب "مخلص روښانے" درې میاشتیزه "پښتو" کنهه کال سنه ۱۹۶۱ء جنوری نه تر دسمبره) مخ ۲۵ - پښتو اکیډیمي پېښور یونیورسټي -

دا منزل د شریعت دے — تائب پاک له معصیت دے
د آدم صفي پر صف شهٔ — رهنماي شه له مضلته

درضا مقام پنځم دے — راضي خوښ لهٔ بنادي غم دے
پهٔ قضا دحق راضي شه — پهٔ راحت هم لهٔ ذلته
دا منزل د قربیان دے — د قربت ځښتن حیران دے
د موسیٰ پهٔ صف به پاتې — په دایم خوښ دے صلته

اووم مقام د محبت دے — محب تل خلاص له محنت دے
هره چاره پهٔ محنت کا — خلاص له تن له خصالته
دا منزل دموحد دے — موحد مخلص لهٔ ضد دے
دے پهٔ صف دابراهیم شه — شهٔ نجات لهٔ جهالته

مقام اتم دمعرفت دے — دے مسکین پهٔ سکونت دے
چې قرار پر سکونت شه — ساکن خلاص شهٔ لهٔ رحلته
دمسکین خوي د احد دے — دے پهٔ صف د محمّد دے
لهٔ صورته گوشه شوے — دے واقف شه لهٔ عزلته

**پهٔ روښاني مسلک کښې دمخلص مقام:-**

لکه څنګه چې واضحه دکا چې مخلص درو ښاني مسلک سره تعلق لرلو او لله دنورو روښاني شاعرانو ددهٔ پهٔ شاعرۍ کښې هم دروښاني تعلیماتو اوخپله ددهٔ د روحاني سیر او سفر انعکاس ډېر پهٔ واضح صورت کښې لیدلے شي

اصل کښې د روحاني حال او مقام په حواله د پیر روښان مقامات اووه دي[۱] ۔

اتم منزل د سکون او د قرار دے دغه اووم مقام چې د خاص ولایت مقام دے یعنې د ولایت انتهائي مقام دے ۔ په ټولو مسلکونو کښې یو دے حق روښانیان ټول سره د سکونته اته مقامات یادوي ۔

اوس به د مخلص د روحاني ارتقاء او منزلونو په حقله د هغه اشعار رانقل کړو چې دلته د ثبوت په توګه کار ورکړي ۔

## شریعت :-

شریعت د پیغمبرانو ګفتار دے ۔ سالک له لازمي دي چې په شریعت دې پابند وسي ۔

شریعت ثابت کلام د پیغمبر شه
د روښان یار په ثابت کلام بلند دے
چې بنیاد د شریعت ئې محکم نه وي
د عرفان دې عمارت باندې هراس دے

---

[۱] وبدانید که از شریعت تا توحید هفت مقام است و نام های آں گوناگوں که چوں کسے هفت باب یا هفت مقام یا هفت منزل یا هفت یقین یا هفت نور یا هفت سیر یا هفت علم ، یا هفت حال یا هفت قدم یا بنام دیگر گوید و همه مجتهدان دلیل دیگر بیان کرده اند بر طالبان صادقان یقین داران نشان داده اند ۔ (صراط التوحید ﺹ ۸۵)

### طریقت :-

طریقت د پېغمبرانو چار دی دلته سالک د پېغمبرانو په پیروي کښې د زړه او دوح په اشارو کار کوي . ـه

دا منزل د طریقت دی د مرسل افعال طاعت دی
د اربس په صف به پاتې شي ناجي له بطالته

### حقیقت :-

حقیقت د پېغمبرانو حال دی او د پېغمبرانو حال "خفي ذکر" دی. حقیقت گمان ترک کول او یقین پیدا کول دي . ـه

حقیقت زاهد ذاکر دی چې له غیره کل طاهر دی
چې نفي يې غیر اغوخ کړه د نفي لا په صلته
دا منزل د حقیقت دی د نبیو بنه حالت دی
په حشر به له عیسی شي دی ناجي شي له غفلته

### معرفت :-

په معرفت کښې د سالک د زړه سترگې بینا شي او په هر لور ورته د ذات جلوه ښکاره شي . ـه

چې پټ گنج د معرفت يې په لاس کښېوت
په ازل وه د مخلص بخره فیروزه
چې جلوه د معرفت پرې باندې وشوه
د عارفو زړه ښاسته شو له نوروزه

### قربت :-

په قربت کښې سالک ته خدای دا فهم ورکړي چې هغه له هره

اوره د خدائے تسبیحات اوري . ~

ددې ذرۀ دغون پرده به دې شي لرې
کۀ دهو تسبیحات و نغوږې لۀ چنګه
چې ئې فهم پۀ تسبیح دهر اوازه وي
و عارف ته هر آواز بانګ نماز شي

## وصلت :-

پۀ وصلت کښې د واصل هره چار پۀ پیوستون سره وي . ~

پۀ هیڅ لور حق به بیا نۀ مومې بې ځانه
پۀ طلب ئې کۀ ډیر ستړے شې له تګه
نحن اقرب الیک پیغام و اوره
حق پۀ ذات صفات نزدے دے له شهرګه

## وحدت :-

پۀ وحدت کښې پۀ سالک د ذات تجلّي وشي دبشري اوصافو نه فنا شي . لۀ خفي شرکه نجات ومومي او څاڅکے لۀ دریابه سره ضم شي . ~

د مخلص پۀ زړۀ د ذات تجلّي وشوه
د مقصود خبره یې واوریده حضوره
پر مخلص د بایزید مسکین نظر وُ
چې ئې زړۀ شۀ دتوحید د دُرخریطه

## سکونت :-

د روحاني ترقي آخري منزل د "وحدت" سپر دے دا د ولایت انتهائي مقام دے - پۀ دې مقام سالک ته یو حقاني وجود عطا شي . دبشري صفاتو

د فنا نه پس کله چې سالک د صحو حالت ته راشي نو دده روح ته یو سکون او راحت حاصل شوے وي -

فَاَنْزَلَ اللّٰهُ سَكِيْنَتَهٗ عَلٰى رَسُوْلِهٖ وَعَلَى الْمُؤْمِنِيْنَ
وَاَلْزَمَهُمْ كَلِمَةَ التَّقْوٰى وَكَانُوْٓا اَحَقَّ بِهَا وَاَهْلَهَا (الفتح ۸ ایت ۲۶)

ترجمه :- الله تعالیٰ په خپل رسول صلی الله علیه وآله وسلم او مسلمانانو باندې ارام او جمعیت نازل کړو او په دوي باندې یې د پرهیزګارۍ خبرې لازم وګرځولې چې د توحید خبره ده (او دوي ددې حق دار او اهل وو) "

سالک په دې مقام اګر چې د جسم په حواله د مخلوق سره ګډ وي د شریعت مکلف وي خو د روح په حواله دے "بقا بالله" وي -

د موحد په شریعت د مکلف کېدو بحقله مخلص وائي - ؎

موحد به ئې له لاسه نه پرېږدي

شریعت د موحد د مخ رومال دے

د مسکنت بحقله مخلص څه واضحه دعویٰ نه لري خو لکه څنګه چې میرزا خان په دې لړکښې د "اختیار" خبره کوي لکه چې وائي - ؎

اے میرزا اختیار دې خپل دے

د ساکن په خوې قرار شه

دې لړکښې ددغه "اختیار" خبره علی محمد مخلص هم کوي لکه چې وائي - ؎

نن صفت د مسکین ونسه مخلصه

چې ئې خوي د مسکین ونیو مسکین شي

ترکومه چې دعلي محمّد مخلص د"خلافت" خبره ده نو دخلافت دپاره ضروري ده چې سالک دې اتهٔ واړه مقامات خپل کړي وي لکه چې وائي.

اے مخلصه چې اتهٔ مقامه خپل کا
دے ساکن پهٔ دا عالم کښې خلافت يوړ

مخلص پهٔ پښتو ديوان کښې ځان ته چرته "خليفه" نهٔ وائي خو پهٔ حالنامه کښې يو ځائے ځان ته خليفه ليکي.

*"آخر فرموده که خليفه ازاري دارد نمي تواند که آمده مرا به بيند"*

ترجمه :- اخر (بي بي علائي) وفرمايل چې خليفه (مخلص) بيمار دے او هغه نهٔ ليدو له دلته نهٔ شي راتلے.

ددې خبرو خلاصه دا شوه چې علي محمد مخلص دروښاني مسلک پهٔ اتو مقاماتو مشرف شوے وُ او د"خلافت" پهٔ مرتبه نما ځلے شوے وُ.

## د مخلص د شاعرۍ

## فني اړخ :-

مخلص د تصوّف او د روښاني تصوّف د يو باقاعده مکتب سره تړلے سړے وُ د يو نظر او فکر څښتن وُ. صوفي او فقير بنيادم وُ د هغهٔ پهٔ مخکښې يو مشن او يو مقصد وُ او دا واضحه خبره ده چې د هغهٔ شاعري به د هغهٔ د شخصيت او فکر ائينه وي ځکه چې ښهٔ ادب هغه وي چې هاغه د شاعر يا اديب د شخصيت ائينه وي هم له دې وجوهاتو له مخه د مخلص پهٔ شاعرۍ د مقصديت عنصر غالب دے خو ددې مقصديت باوجود هم د مخلص شاعري يو فني ښائيست لري هغه لوستونکي چې د تصوّف او معرفت د رموزاو اسرارو سره طبعي مناسبت لري نو د هغهٔ دپاره د هغهٔ د وجدان او بصيرت دپاره

د مخلص شاعري د اسرار او حقائقو د کيف او سرور يوه مستي لري - لکه چې وائي . ~

دغه علم به بې ذوقه حاصل نهٔ کړي
څو مزه دې پهٔ حلقوم نشي دروونه

لکه څنګه چې پهٔ يو حديث شريف کښې راغلي چې بعضې شعرونه لهٔ حکمته وي نو حکمت او حقائق هم د شعر اصل جوهر دے او د داسې شعرونو يو خپل وجداني او نوراني بنا ليست وي او بيا دغه قسمه شاعري د تصوّف او حکمت غټه سرمايه وي - سره د ګران والي د مخلص د ښکلې شاعرۍ ذکر پروفيسر افضل رضا صاحب داسې کوي -

" پهٔ شاعرۍ کښې يې د تصوّف رنګ جوت دے - پهٔ غزل کښې يې د عربۍ، فارسۍ د ټکو سره سره پهٔ فکري لحاظ هم ډېره ژورتيا ده څکه د عاميانه ذهن او پوهې نه اوچت دے - د فلسفې او تصوّف د قيق او ګران مضامين يې ډېر پهٔ ښکلي ډول خپل غزل کښې ځائے کړي دي[1] -"

اوس د مخلص د دغه ښکليو شعرونو يو څو نمونې ولولئ - ~

مؤثر پهٔ هر اثر کښې دلبري کا
بيناد لي پهٔ هر اثر کښې دلبر بيامونده
پهٔ هر آن پهٔ هر مکان د نور جلوه وه
و مخلص ته يې زيب وکا پهٔ سحر نوُر

---

[1]

په ظاهر کښې د باطن مشاهده کړه
په مقنع کښې څرګند يوې نو عروسه
چې مجاز د حقيقت په نظر ګوري
دے مخلص بصيرت بيامونده قدوسه

اے مخلصه د توحيد تمثيل څرګند دے — دا مولی مانند سياهي خلق حروف
په هر لوښي کښې چې وي څنې توييږي — د نامنده لرګي معلومه ده د دوزه
د زړه حال تول په کلام بدورښکاره شي — دځوانيه بانګ ظاهر نشي لـه چوزه

څو اوبه تر لوتي نه وي دسپد لي
تر هغې پورې باقي وي نوم د لوټې
که په دوځ منارې لوړې سينې برېښي
د نمانځام په وخت ښکاره شي توري هوټې

هر نفس لاره ده څرګنده وبيچون ته — چې پرلب د نهرځي ورشي جيحون ته
دغه تنګ د زړه په پښې دے کډ روان شي — د صورت لاره ده بستر واندرون ته

## د مخلص تصنيفات :- (۱) پښتو ديوان :-

د مخلص پښتو ديوان يو ضخيم ديوان دے - دا په څلور زرو يو سل او دوه اويا شعرونو اړه لري - ددې ديوان شروع د يو نعت شريف نه شوې ده چې په مربع ډول ۷ رباعياني لري بيا ورپسې دوه الفنامې دي چې يوه نيمګړې

ده او دویمه پوره ده - پوره الف نامه په اته ویشتو غزلو مشتمل ده - دې کښې په هر حرف پوره یو غزل لیکلے شوے دے - یو غزل یو عنوان او نورلس نورلس بېتونه لري - لکه چې وائي - سه

کل اته ویشت دي حرفونه
لام الف تکرار په میان کښې
دهـــر حرف تعریف به وایم
نولس بېته په بیان کښې

ددې الف نامې نه وروستو غزلې شروع کیږي چې شمېر ئې ۳۶۰ ته رسي - اروابناد رښتین صاحب دده دغزلو شمېر ۱۹۱ ښودلے دے چې صحیح نه دے [۱]

دغزلونه پس رباعیانې شروع کیږي چې اصل شمېر ئې ۷۵ دے - رښتین صاحب د رباعیانو شمېر ۱۱۷ ښودلے دے خو دا هم صحیح نه دے که چرې دنعت رباعیانې ورسره جمع کړو نو دا شمېر تر ۷۵ + ۴۱ = ۱۱۵ پورې رسي او په دغه حساب دا شمېر د رښتین صاحب شمېر ته نزدې کیږي -

دمخلص په پښتو دیوان کښې دهغو خپو شعرونو نه علاوه چې د فارسي ژبې دمشهورو شاعرانو دي او د سرخط په توګه ئې د بعضو غزلو په سر کښې استعمال کړي دي - ددې نه علاوه دده خپل فارسي شعرونه نشته - د هیوادمل صاحب دا خبره چې " دده پارسي شعرونه په حالنامه کښې او د پښتو دیوان سره یوځائے راغلي دي " په پښتو دیوان کښې د فارسي دشعرونو پحقله

---

[۱] صدیق الله رښتین - روښان ستوري

صحیح نهٔ دهٔ -

## (۲) حالنامه :-

د مخلص یوبل مشهور کتاب "حالنامه" ده - دا دې کتاب ژبه فارسي ده "حالنامه" د موضوع لهٔ لحاظه پهٔ درېو برخو کېنې وېشلے کېدے شي - ورومبۍ برخه د پیر روښان د ژوند ، روحاني ارتقاء او د تصوفي فکرونو او منزلونو پخقله ده - دوېمه برخه ئې د پیر روښان نه پس د هغهٔ د زامنو نمسو او کړوسو د مغلو خلاف د تحریک او جنګونو پخقله وه - درېمه او اخري برخه ئې د پیر روښان د کړوسو او کودو یعني د رشید خان او مېرزا خان وغېره د اولاد پهٔ باره کېنې ده -

مخلص د حالنامې د لیکلو دوه محرکات بښئې یو څو دا دې کتاب بالکل پهٔ شروع کېنې داسې بیانوي -

"که بعضی از محبان مخلصان که رعایت و مراعات خاطر عاطر ایشان از جمله لوازمات وواجبات دانسته چون ازین فقیر التماس داشتند که حالنامه پیر دستگیر که از توایر دوران وتسامح ناسخان تغیر وتبدیل بعبارتش روی راه یافته وصحتش بسقامت بدل گشته ونیز سوانح وحقائق فرزندان واحوال پیرگان پیر دستگیر قدس سرهٔ و دیگر از احوالات که در منصهٔ ظهور جلوه کرامده چنانچه شمشیر گرفتن ایشان بجانب بسعتور وتیراه وکابل وغیره از سوانحات که در انضباط نیامده ازین نسخه شریفه زائل گشته وازطبع ذکی شماکه مفتح ابواب معانی مغلقه وکاشف سرایر دفاتر مسدوده است بعید نیست که تعمق عمیق تاذق دقیق لطیق تصحیح نمایند ہ"[1]

---

[1] علی محمد مخلص - حالنامه مخ ۱

خلاصه ترجمه :-

د وخت د تېرېدو سره د حالنامې په معنو او عبارت کښې د ناسخانو دلاسه تغیّر او تبدیل راغلے ؤ او د دې صحت ته یې نقصان رسولے ؤ. ډېر د ستګیر د ژوند حالات او بعضې داسې حالات چې د روستو واقع شوي وو لکه د دبیستور، تیراه او د کابل په لور جنګونه او بعضې داسې واقعات چې ییکلي شوي نهٔ وُو یا د دې اصل نسخې نه ضائع شوي وو. د بعضو مخلصو یارانو په درخواست ما د حالنامې د تصحیح سره دوباره جاڼزه واخیسته او د معتبرو شهادتونو په بنیاد مې په کښې باقي واقعات او حالات درج کړل .[۱]

د حالنامې د لیکلو بل محرک داسې بیانوي -

بود بر بنده در احوال حیات
مشفق اے جانِ پدر ہم درممات

| | |
|---|---|
| این کتاب از امران عالی جناب | چون اشارت کرد مخلص را بخواب |
| گفت برگیر این امانت اے رفیق | ہست این از خاندان ما شفیق |
| جمله را باتو پسردم اے آمین | جمع کن حافظ شود اے مرد دین |
| چون شدم بیدار ازخواب ای کرام | تعبیرش کردم چنین بشنو کلام |
| تا نولیسم حال این شہہ خاندان | ہرکه خواند تا شود واقف ازان |
| حق تعالٰی از طفیل این عمل | عفو گرداند زمن جرم ثقل |
| ہم زمن خوشنود گرداند خدا | رو جہای خاندان پیر ما |

[۱] علي محمد مخلص حالنامه مخ ۳۹۷

ترجمه :- (خان عالیشان رشید خان) په ژوند او په مړوني په ما لکه د پلار مهربان و. - دا کتاب د صغه عالي جناب له امره شوی دی کله چې يې په خوب کښې مخلص ته ددې کتاب د ليکلو اشاره وکړه - ما تړ يې ليکلې کاغذونه راکړه او وې ويل چې دا ونيسه دا زمونږ د خاندان یو امانت دی او دا ټول زه تا ته د یو امين په حيث درحواله کوم - دا جمع کړه او ياد يې کړه - کله چې زه د خوبه راويښ شوم نو ددې تعبير ما دا وپوهېدو چې ددې شاه د خاندان ټول حال وليکم چې خلق يې ولولي او تر ې خبر شي حق تعالی دې ددې عمل له طفيله زما درانه جرمونه معاف کړي او خدای دې زما نه رضا شي او هم د پير د خاندان ټول دوحونه ."

د حالنامې ددې بيان نه دا هم ظاهرېږي چې علي محمد مخلص د حالنامې په ليکلو د رشيد خان د مرګ (١٠٥٨هـ) نه پس شروع کړې ده او د اورنګزيب د دور په وړمبيو کالو کښې يې چرته سرته رسولې ده -

## د نش رساله :-

د مخلص يو بل اثر د پښتو د نش يوه وړه رساله ده - د زلمي هېواد مل صاحب د څېړنې او د صغه د ليدنې له مخه دا رساله د کلکتې په بنګال ايشيا تک سوسائيټۍ کښې ده - دا رساله تر اوسه په کتابي شکل کښې نه ده چاپ خو دا په وړومبي ځل د ګران هېواد مل صاحب په زيار د مقدمې او تعليق سره په کابل مجله کښې چاپ شوې ده - ددې رسالې خپل نوم نشته - ددې د موضوع په باره کښې مؤلف دا ويلي دي چې دا د ذات وصفات او د

روح د حقیقت پېژندلو پیکلې شوې ده. ددې رسالې نثر سجع نه لري او روان نثر دے.[۱]

ددې نثر نمونه:

"هرکله چې هاغه وینه روح نباتي تر دماغه ورسوي روح حیواني په کښې داخل کا حرکت، پینځه حسه پکښې ورشي پنځه حسه کوره پینځه څراغه دي - هرکله چې دا پینځه څراغه په پینځه ځایه په صورت بل کا هاله به روح انساني پکښې داخل شي."[۲]

---

## ماخذونه

---


۱- ابن عربیؒ: فصوص الحکم، اردو ترجمه له مولانا عبدالقدیر صاحب
ناشر دارالطبع جامعه عثمانیه سرکار عالي حیدرآباد دکن ۱۳۶۰ھ/۱۹۴۲ء

۲- اثر قاضي عبدالحلیم، د پښتو ژبې پخوانے ادب او تاریخ رنا چاپ پښتو
پښتو اکېډمي پېښور یونیورسټي -

۳- اصغر- راؤ- هندي اردو لغت، ناشر مقتدره قومي زبان اسلام آباد.

۴- انصاري میرزا خان، پښتو دیوان، سریزه او سمون له خپل دوست
خپرونکے، پښتو ټولنه کابل ۱۳۵۴ هش/ ۱۹۷۵ء


---

[۱] [۲] زلمے هیوادمل- په هند کښې د پښتو ژبې ---- مخ ۱۶۲، ۱۶۳

۵- اکبر ، عبد الاکبر خان ، روښانیان د مغلو تاریکیان
۶- بختانے عبدالله . پښتانهٔ شعراء (څلورم ټوک) د اشاعت کال ۱۳۵۷ هش
/ ۱۹۶۸ء خپروونکے د افغانستان د علومو اکاډمي د ژبو او ادبیاتو انستیټیوټ کابل
۷- بدایوني . ملا عبدالقادر ملوک شاه ، منتخب التواریخ (اردو) مترجم محمود احمد
فاروقي - د اشاعت کال ۱۹۶۲ء پریس . علمي پرنټنګ پریس لاهور،
ناشر - شیخ غلام علي اینډ سنز کشمیري بازار لاهور
۸- پارسا ، خواجه محمد ، رساله قدسیه فارسي مقدمه، تحشیه، تصحیح تعلیقات
له محمد اقبال ، ناشر - انتشارات مرکز تحقیقات فارسي ایران د پاکستان
۹- تاراچند ډاکټر "تمدن هند پر اسلامي اثرات" (اردو) ترجمه له محمد مسعود احمد
د اشاعت کال دسمبر ۱۹۶۷ء پریس مطبع عالیه ریلوے روډ لاهور. ناشر
سید امتیاز علي تاج ، ناظم مجلس ترقي ادب لاهور
۱۰- جهانګیر شهنشاه ، نورالدین احمد، توزک جهانګیري (اول جلد) ترجمه و
حواشي له اعجاز الحق قدوسي - د اشاعت کال جولائي ۱۹۶۸ء - پریس زرین ارټ
پریس لاهور - ناشر، امتیاز علي تاج مجلس ترقي ادب لاهور
۱۱- خافي خان ، هاشم علي خان نظام الملک ، منتخب اللباب (اردو) ترجمه له
محمود احمد فاروقي - د اشاعت کال (دریم ځل) ۱۹۷۶ء . ناشر- نفیس
اکېډیمي اسټریچن روډ کراچي -
۱۲- خوېشکے، پروین مهجور " دارزاني خوېشکي کلیات " (پي - ایچ - ډي) تهیس
پښتو ډیپارټمنټ پېښور یونیورسټي -
۱۳- دولت لوانے پښتو دیوان - سریزه او سمون له عبد الشکور رشاد - د اشاعت
تاریخ جنوري ۱۹۶۵ء پښتو ټولنه کابل -

۱۴ - درویزه اخون ، تذکرة الابرار والاشرار، مطبع ، درمطبع محمدي پښاور
باهتمام محمدیحیٰی - اشاعت کال ۱۲۸۷ھ

۱۵ - همدغه ، مخزن، مقدمه میاتقویم الحق کاکاخیل - ناشر، پښتواکېډمي
پېښور یونیورسټي -

۱۶ - دکنـي نصیرالدین هاشمي اردو' پرېس ، انشا پرېس لاهور، اشاعت پنځم سنه ۱۹۶۰ئ
خوروونکے اردو مرکز لاهور

۱۷ - همدغه دکني کلچر' پرېس، مطبع عالیه ریلوے روډ لاهور داشاعت کال دسمبر سنه ۱۹۶۳ئ
ناشر، سید امتیاز علي تاج ناظم مجلس ترقي ادب لاهور -

۱۸ - راج ولي شاه خټک ، "دپښتو ادبي تحریکونه". پرېس، جدون پرنټنګ پرېس پېښور
داشاعت کال سنه ۱۹۸۹ئ ناشر - ډائرېکټر پښتو اکېډمي پېښور یونیورسټي -

۱۹ - رضا ، محمد افضل پروفېسر ، "پښتو غزل" ناشر - ډائرېکټر پښتو اکېډېمي
پېښور یونیورسټي -

۲۰ - رفیع حبیب الله' ناشر ارزاني پښتو ادبي ټولنه خوښکي -

۲۱ - ریښتین صدیق الله ، دپښتو دنثرهنداره - ناشر' یونیورسټي بک ایجنسي
خېبر بازار پېښور

۲۲ - ریښتین صدیق الله ، دپښتو ادب تاریخ ، داشاعت کال ۱۳۲۵هش/۱۹۴۶ء
پښتو ټولنه کابل -

۲۳ - ریښتین صدیق الله ، روښان ستوري - ناشر یونیورسټي بک ایجنسي پېښور

۲۴ - سالک' عبدالحمید ، مسلم ثقافت هندوستان میں - پرېس دین محمدي پرېس لاهور
ناشر' اداره ثقافت اسلامیه کلب روډ لاهور

۲۵ - شاه محمد عبدالصمد ، اصطلاحات صوفیه - ناشر مکه بکس ۵ بخشي سټریټ

بېرون موري دروازه لاهور -

۲۶ - عبدالحليم شيخ، مقامات قطبيه ومقالات قدسيه - اردو ترجمه له حاجي عبد الرزاق كوثر- داشاعت كال ۱۹۹۵ ئه پرېس ماسټر پرنټرز محله جنګي پېښور - ناشر دارالعلوم فيض القرآن پېر سباق نوښهره -

۲۷ - قاسمي حافظ عبدالقدوس - مخلص روښانے (مقاله) درې مياشتينه "پښتو" ګڼه كال ۱۹۶۱ ئه جنورۍ نه تر دسمبره پورې پښتو اكېډمي پېښور يونيورسټي -

۲۸ - قلندر مومند - دخيرالبيان تنقيدي مطالعه د اشاعت كال ۱۹۸۸ ئه ناشر دچاپ ځائے كوهاټ روډ پېښور

۲۹ - محمد اكرام شيخ، رود كوثر (اردو) داشاعت كال ۱۹۸۸ء پرېس كمبائن پرنټرز پرېس ناشر سراج منير ناظم ادارۀ ثقافت اسلاميه لاهور -

۳۰ - محمد ذوقي سيد - سرّ دلبران (اردو) ناشر محراب ادب فرير روډ كراچي -

۳۱ - محمد عطاء الله خان د اكټر، تحقيق الاثم في شرح فصوص الحكم، داشاعت كال ۱۹۹۰ ئه پرېس خيبر پرنټرز پېښور ، ناشر، شفيع الله خان

۳۲ - مخلص علي محمد، حالنامه (فارسي) تهاپ شوے له محمد انور خان اندراج نمبر ۵۲ د پښتو اكېډمي كتابتون پېښور يونيورسټي

۳۳ - نظام الدين احمد، خواجه، طبقات ناصري (اردو) ترجمه له محمد ايوب قادري - داشاعت كال (اول طبع) ۱۹۹۱ ئه ناشر اردو سائنس بورډ ۲۹۹ ا پرمال لاهور

۳۴ - هېواد مل زلمے "په هند كښې د پښتو ژبې او ادبياتو د ايجاد او ودې پړاوونه" دچاپ ځائے شركت پرنټنګ پرېس لاهور داشاعت كال (دوم چاپ) ۱۳۷۳ هوش / ۱۹۹۴ ع

۳۵ - هېواد مل زلمے " د پښتو نثر اته سوه كاله" دچاپ كال ۱۳۷۵ هوش / ۱۹۹۶ ع د چاپ ځائے - ملت پرنټرز لاهور

۳۶ - Maghmoom, Dr. Yar Muhammad.
The Roshanites (Ph.D Thesis) Area Study Center University of Peshawar

صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَآلِهِ وَسَلَّم

# در صفت ونعت سيّدالمرسلين وخاتم النبين

زهٔ پهٔ دابښوه سرور كړم | چې صفت د حق د نور كړم
د حضرت صفت وي فرحه | زهٔ به خپل زړهٔ پرې مسرور كړم

داحمد ياد زړهٔ روښان كا | نېک وبد پكښې عيان كا
چې افتاب پهٔ ملک وخيژي | تاريكي خپسر نهان كا

دانسان زړهٔ لطيفه ده | يكدره حنيفه ده
د هغه خيز صورت نيسي | چې د زړهٔ يې وظيفه ده

د حضرت نور به منظور كړم | ساده زړهٔ به پرې پرنور كړم
كهٔ مې نور د زړهٔ استاد شه | د حضرت ستور به مذكور كړم

د حضرت صفت پسو كړم | زهٔ به څهٔ رنګ ګفتګو كړم
كهٔ مې نور د حضرت مل شي | بيا هالهٔ كهٔ داګل بو كړم

محمد د حق لهٔ نوره | دا رښتيا وېنا مشهوره
نور د دهٔ لهٔ نوره وشو | چې راځي تر دور صوره

هر وجود چې ین اظهر دے　　د حضرت د دنور مظهر دے
د حضرت نور یې ما غزه شه　　نور عالم کوره قشر دے

حقیقت د احمد بحر　　نورعالم د بحر نهر
دے یې اصل نور یې فصل　　زهٔ ستر دا څه وایم جهر

داکثرت د میم لباس شه　　جهان ګل حضرت یې باس شه
نور عالم ئکه تن کوره　　د احمد نور د تن راس شه

سر بادشاه تن یې حشم دے　　جهان تن احمد یې دم دے
د احمد نور یې ستون شه　　کل جهان پرې مستحکم دے

اولیاء د حضرت نور دے　　څني پټ څني مشهور دے
څني قطب اوتاد بولي　　څني غوث ابدال مذکور دے

هر ملک والي لرینه　　په خپل حد یې حکم څینه
که یو تېر شي له عالمه　　بل په ځاے یې کښېنوینه

پرولیو ملک برپا دے　　داوېنا زما رښتیا دے
دا ولي د حضرت نور شو　　پر ولیو ملک رنها دے

د مهدي تر دور پورې | اولیاء ځي پر بل پوري
په مهدي ولایت ختم شه[1] | نور دې تبني شي په ورې[2]

په جهان به پټېس ظلمت شي | چې نور پټ د ولایت شي
په جهان به برغوپو کا | پر عالم به قیامت شي

څو ولیان وي په جهان کښې | کل عالم به وي امان کښې
چې ولي نه وي په دهر | ملک به وران کا په زمان کښې

دا حضرت د نور برزخ دے | د دوه سیند و ترمیان یخ دے
یو شوره بل شرین بحر | دے په میان کښې دیوال بنخ دے

یو سیند د احدیت شه | بل دریاب د وحدیت[3] شه
حقیقت د احمد گوره | دے ترمیان مقام وحدت شه

که برزخ دوځي له میانه | دا کلام واروه انسانه
دوه دریابه سره یو شي | د کثرت چار به شي ورانه

[1] اص: په مهدي ختم ولایت شه

[2] (اص) "نور د تبنی شے پورے"

[3] واحدیت

د حق ذات لکه افتاب دے — محمد صلی الله علیه وآله وسلم تر میان سحاب دے
د اکثرت د وورو سپورے — بې وورو سپورے خراب دے

ددهٔ نور اب حیات دے — کل زنده پهٔ دهٔ حیات دے
چې ددهٔ نوم مرتفع شي — نور زنده واړه ممات دے

پهٔ جهان کښې به ظلمت شي — پر زندو به قیامت شي
اولیاء به نهٔ رادرومي — پورې ور د ولایت شي

دے رحمت د عالمیان دے — کُل عالم پهٔ دهٔ ودان دے
ددهٔ نور د جهان ستنې — بې ستون کوره ویران دے

پهٔ اسمان ئې نوم احمد دُ — کوز پر زمکه محمد صلی الله علیه وآله وسلم دُ
نور وائې لهٔ کوزه پاسه — دے نومرے پهٔ احد دُ

من راني توغ ئې نیولے — عارفانو د ے منلے
صر چې زهٔ ئې ولیدلم — پهٔ تحقیق ئې حق لیدلے

د احدث د نبي کوره — پهٔ غوږ واروه دیني وروره
چې احمد یمه بې میمه — دا وینا یمه لهٔ کوره

په دامیم احد احمد شه — که میم وتراشي احد شه
چې د میم الایش ووځي — پر ځائے پاتو پاک صمد شه

دده نوم یٰسین طٰهٰ دے — په قران کښې داندا دے
خدائے سوګند په ده دے کړے — وضحٰی شاهد رښتیا دے

دے معشوق حق ئې عاشق شه — دے د معشوقی لائق شه
حق طالب دے ئې مطلوب دے — دے عذرا حق ئې وامق شه

دے نایب حق ئې منیب دے — دے منبر حق ئې خطیب دے
حق باطنه دے ظاهر شه — دے ګلاب مولٰی ئې طیب دے

حق مظهر دے ئې مظهر شه — په مظهر کښې (دے) اظهر شه
دے ارسي حق ترې څرګند دے — حق ثمر دے ئې شجر شه

د رسول فعل د حق دے — ما زبر کړے داسبق دے
مارمیتَ اِذ رمیتَ[1] — په قران کښې دا الحق دے

---

[1] وَمَا رَمَیْتَ اِذ رَمَیْتَ وَلٰکِنَّ اللّٰهَ رَمٰی : انفال ایت ۱۷۔
(او تا په هغوي خاوره) نهٔ ده ویشتې کله چې تا ویشته. بلکې دا الله تعالٰی ویشته ۔

د دهٔ حکم د حق حکم — بې خبر دے صمٌ بُکمٌ
چې د حق د رسول فرق کا — حق به ورکا ترخه زقوم

په قران کښې حق ویلي — عارفانو دي منلي
هر چې ستا لاس ئې نیولے — هغه لاس د حق نیولي

د دهٔ دین دین اسلام دے — په قرآن کښې دا کلام دے
چې ایئن ئې د دهٔ ترک که — سرے نهٔ دے کالانعام دے

د دهٔ دین توحید اسلام شهٔ — دا اسلام دارالسّلام شهٔ
چې توحید ئې روزي شوے — د دوزخ اورېې حرام شهٔ

د دهٔ دین مثال د نمر شهٔ — په کُل دینو کښې اظهر شهٔ
ستوري پټ شهٔ په اسمان کښې — چې ښکاره د نمر اثر شهٔ

چې قران په دهٔ نازل شهٔ — په توریت عمل باطل شهٔ
بت پرست د مشرکانو — د انجیل عمل عاطل شهٔ

د حضرت معجزه ډېره — کل به نهٔ شي رابرسېره
کتابونه ځنې ډک دي — څو مې یاد دي څو مې وېره

قران لویه معجزه دے — ښکاره په هر لحظه دے
چې په دا خبره شک کا — د هغه ړېره بزه دے

له ما واوره په غوږ سمعه — که پیرې سرې شي جمعه
یو ایت به جوړ کړې نه شي — له زړه پرې کړه دغه طمعه

بل قمر چې دوباره شو — چې د ګوتې اشاره شو
دوه ټوکړې په اسمان کښې — په تمام جهان ښکاره شو

د حضرت معراج رښتیا دے — سبحان الذی اسرا دے
د اقصی طواف یې وکړ — پورته بېرته شیا دے

پاس تر عرشه (دے) ورغلے — په قدرت د حق نیولے
چې د حق په قدرت شک کا — هغه نه دے خدائے منلے

که مومن یې امنا کړه — شک ګومان له زړه فنا کړه
دلته عقل عقلیه دے — په قدرت سترګې بینا کړه

هره چار په حق اسانه — ته یې ګوره مسلمانه
اسمان زمکه دریابونه — پسو جوړ کړه حق له ځانه

دے قادر توانا پهٔ ځان دے ‌‌‌ ‌ ‌ دجمله عجائب کان دے
اسمان زمکه پیوسته وو ‌ ‌ ‌ پورته کړي ئې اسمان دے

لهٔ اسمان دے حق کوز کړے ‌ ‌ ‌ یا حضرت ئې پورته وړے
لوي نهٔ دے لهٔ قادره ‌ ‌ ‌ دے قادر توانا نومړے

چې معراج به نهٔ منینه ‌ ‌ ‌ لاس ئې وخاتهٔ لهٔ دینه
چې یې شک وي پهٔ معراج کښې ‌ ‌ ‌ رافضي خارجي وینه

پهٔ صورت د حق بیولے ‌ ‌ ‌ دیقین تبنتی منلے
چې پهٔ دا خبره شک کا ‌ ‌ ‌ رافضي دے خوار نتلے

دا مخلص پهٔ دایقین دے
دے مرید د میاں مسکین دے
د روښان له عنایته
حق باطل ورته مبین دے

د رسول یاران نجوم دے ‌ ‌ ‌ څوک ئې پېژني چې کوم دے
مقتدا د مبتدیو ‌ ‌ ‌ کهٔ پهٔ شام اوکهٔ پهٔ روم دے

د سرور یاران دي ستوري     لار به مومي چي يې ګوري
سره[1] يې کل پریو لور دے     کهٔ پرېشان دي لور پر لوري

د رسول یاران هغه دي     چي له نهي پستنه دي[2]
رهنما دي د مضلو     د نبیو پهٔ تپه دي

د سرور یاران هادي دي     منع کړونے د بدي دي[3]
چي پهٔ یارب غیبت وائي     دوي پهٔ دوکونو ردي دي

د رسول یاران چراغ دي     د توحید د مے ایاغ دي[4]
له حسد بغل پاک شوي     تل نور بخش دباغ وراغ دي[5]

د رسول یاران ګلنار دي     - - - - - - - - - - - - - - -
نبوت نهر روان شه[6]     تل تازه پهٔ دا انهار دي

رسول کان یاري ګوهر دے     حضرت اونه یاري بر دے
نبوت اب حیات شهٔ     دهر یار حلقوم پري تر دے

[1] اص : مستري
[2] [3] [4] [5] : پهٔ اصل کښي د دي پهٔ ځائے "دے" دے
[6] وګوري تعلیقات ، نبوت او ولایت

یاران یو دبل مین وو — دا غیار پهٔ ځان اغزین وو
پاک دلان وو پهٔ جهان کښې — کهٔ سپین روپۍ کهٔ زمین وو

حضرت تن یار ئې اعضا دے — حضرت کل یار ئې اجزاء دے
چې پر یار به غیبت وائې — پس هغه لعنت سزا دے

یار شعاع رسول افتاب شهٔ
یار ئې جز حضرت کباب شهٔ
پیرٔوي د بل رچا) مهٔ کړه
یار نالهٔ حضرت دریاب شهٔ

---

---

له اص دېی ورویٰ )

م مهدي هادي خاور شهٔ
بې ظاهر اصفر احمر شهٔ
د احمد رنګ د نېک بختو
د اصفر د بد اختر شهٔ

ن نور د پېغمبر شهٔ
د جمله عالم پدر شهٔ
دے بابا د ارواحانو
د صورت ابو البشر شهٔ

و وحدت دے منتشر شهٔ
د کثرت په موي ببر شهٔ
دے لطيف دريا بې حده
دکثرت په څک اغبر شهٔ

ه هادي د زنده سر شهٔ
دے د انا په هر نفر شهٔ
څنې بيايي و بهشت ته
څوک لائق د بد سقر شهٔ

لام الف د لا خبر شهٔ
پرې عدم غير اثر شهٔ
چې اثر ورک شي دَغير
د توحيد څرګند قمر شهٔ

ی يو دکل باور شهٔ
هم خيمه هم ئې بستر شهٔ
د هر چا د زړهٔ تکيه دے
هم د هر مکان مقر شهٔ
هغه شمېر په بخت ور شهٔ
چې کامل پير ئې رهبر شهٔ
دکم بختو (نه) هغه دے
چې د پير ناقص چاکر شهٔ

میان روښان ناغه اذفرشهٔ      پرهر لور د بوی گذرشهٔ
دکم بخت سر ملي وتښتي      بختور پرې معطرشهٔ

دا صورت د خاک منظرشهٔ
روح خطیب ددې منبرشهٔ
د احمد خطبه يې لوستي
د مختصر خوله يې معبرشهٔ

---

## درنعت کلام رباني وتمثيل سورة وايت وددصفت حروفهاى کلام مجيد

د رباني کلام دد مجيد کلام) دسورت او د ايت دتمثيل او دحروفو په صفت کښې

چې پر زمکه په اسمان کښې
کل واضح دي په قران کښې

چې موجود په خشک وتر دي — تمام کښلي په فرقان کښې
د ے مادر د کتابونو — شه نازل په رمضان کښې
د ے چراغ د هدايت شه — د دنيا په شبستان کښې
سر ے بولي ورسنا ته — فصاحت يې په لسان کښې
- - - - - - - - - - - — - - - - - - - - - - - -
- - - - - - - - - - - — - - - - - - - - - - - -
- - - - - - - - - - - — - - - - - - - - - - - -
- - - - - - - - - - - — د ے جهان د ے په طوفان کښې
د ے حبل المتين استوارشه — سر يې پاس په لا مکان کښې
چې دغه رسۍ محکم کا — و به رسي په زمان کښې
مقرب به د مولا شي — ملک به ورکا په خبان کښې

دے شه کل سورة ئې جزو — لک اعضا دي په انسان کښې
هر ايات ئې د جز جزشهٔ — لکه بند په انګشتان کښې
هر ايت ئې صحت بخش دے — پصورت هم په ايمان کښې
په هر حرف ئې موکل شته — لکه روح دے په ابدان کښې
ګوښې ګوښې حرف تعويز دے — که يقين دے په جنان کښې
کل اته ويشت دي حرفونه — لام الف تکرار په ميان کښې
ذهر حرف تعريف به وايم — نو دس بهته په بيان کښې
منفعت به طالب مومي — ډير نعمت دے په داخوان کښې

د مخلص تر خوله ظاهر شهٔ
دا نعمت دے پر (قران) کښې

---

له اص : پيمان

# در صفت اسم ذات و اسما و صفات و افعال صفات و مظهر صفات

د ذات د اسم، او د اسماو صفاتو، افعالو او د صفاتو د مظهر په صفت کښې.

الف الله يې د ذات نوم شهٔ
(د جميع صفاتو جم شهٔ)
صفات کل وپټ په ذات کښې
(ذات صفات باندې معلوم شه)

په صفات مظهر عالم دے — ذات صفات پکښې هجوم شهٔ
د صفات نامې يې ډېرې — رب رحيم رازق قيوم شهٔ
رب ظاهر شه له مربوبه — معلوم رحم له مرحوم شهٔ
رازق نهٔ شي بې مرزوقه — حاکم حکم په محکوم شهٔ
غافر شو ے لهٔ مغفوره — پهٔ خادم عيان مخدوم شهٔ
ذات شهٔ يو صفات يې ډېر دي — پهٔ صفات کښې ذات مکتوم شهٔ
زړے ذات شجر صفات دي — زړے ورک پکښې معدوم شهٔ
دا صفات پټ شه افعال کښې — جاهل ځکه نامحروم شهٔ
دا نيستي د دهٔ هستي وه — پاس څرګند پهٔ خاښ مقسوم شهٔ

ذات څرګند شهٔ له صفاته ذات غلهٔ صفات یٔ بوم شهٔ
کله پلار شي کله زویے څوک یٔ نهٔ پېژنی کوم شهٔ
ذات پیدا شهٔ پهٔ صفات کښې صفات هم لهٔ دهٔ مرقوم شهٔ
صفات فعل سره هسې یو د بل پهٔ ځان قیوم شهٔ
(ذات صفات لوه ښکاره شي) ذات صفات لازم ملزوم شهٔ
شوم څرګند شینه لهٔ شوي شوم صفات ظاهر له شوم شهٔ
یو له بله پیدا کیږي د جهان هسې رسوم شهٔ

دا مخلص یٔ ننداره کا
ذات پهٔ کل صفات موسوم شهٔ

## دربیان تمثیل روح که مانند پدر است ونفس که مثل مادر است ودل فرزند ایشان است

د روح د تمثیل پهٔ بیان کښې ، د روح مثال د پلار دے د نفس مثال د مورد ے او د زړهٔ مثال د دوي د زوي دے

ب ـ بهار د وحدت ګل شهٔ
پرې ګویا عاشق بلبل شه

د ګل قدر په بلبل دے — پهٔ مرداره زاغ مایل شهٔ
بلبل نوش د ګل پهٔ بوی دے — د زاغ میل ئې پهٔ خوړل شه
چې شپه ورځ بنده د نوس کا — تر رازق پورې خجل شهٔ
رازق نېرمه د مرزوق کا — دے ناحق تر میان شامل شهٔ
ددهٔ کار عبادت ذکر — حق ددهٔ رازق کفیل شهٔ
حق عرفان لره پیدا کهٔ — دے پهٔ مال حاصل ول شهٔ
توره جنګ لره ده شوې — دے پهٔ کښت رېبل جایل شهٔ
دے شهٔ کل عالم ئې جزو — کهٔ ځان وپېژني کل شهٔ
انسان زړهٔ جهان ئې تن دے — (تن د زړهٔ سره وصل شهٔ)
تن د زړهٔ د پاره شوے — زړهٔ د معرفت دلدل شهٔ
چې عرفان ئې روزي نهٔ وي — زړهٔ یې مهٔ ګڼه غوجل شهٔ
روح ئې پلار دے نفس ئې مور ده — زړهٔ فرزند تر میان داخل شهٔ
کهٔ د مور پهٔ نغوته چار کا — نفساني دے ناقابل شهٔ
چې د پلار پهٔ امر دروې — روحاني بالا منزل شهٔ
روح او نفس پهٔ یوهٔ تن کښې — دے پهٔ خوي له روح فاصل شهٔ
زړهٔ پهٔ دواړو لوري ګرځي — ځکه قلب ئې نوم حاصل شهٔ
زړهٔ فرزند د پلار تابع کړه — ساعت تلو نے دم قاتل شهٔ

تل مخلص پهٔ زړهٔ هوس کا
چې پېرو د پیر کامل شهٔ

## د رصفت قانع ومتوکل لایحصل العبادة الا بفراغ القلب ولا یحصل فراغة القلب إلا برفع العوارض

---

د قانع او متوکل په صفت کښې، د زړه د فراغت نه بغیر د عبادت اصل نه حاصلیږي او د زړه فراغت بغیر د عوارضو د رفع کیدو نه نه حاصلیږي .

---

ت توانګر په زړه قانع شه
چې پرېشان زړه ئې جامع شه

چې ئې زړه فراغت نه وي
کل طاعت نمونځ ئې ضایع شه

زړه هاله فراغت مومي
چې عارض ځنې مانع شه

یو دنیا عارض بل خلق
هم ئې نوس شیطان قاطع شه

څو ئې دا عارض همراه دے
زړه دایم پرېشان جایع شه

نور حیله د خلاصي نشته
مګر خدائے وته راجع شه

چې ئې توکل په خدائے که
نفس شیطان ځنې دافع شه

زور ور هغه میړه دے
چې یقین ئې پر واسع شه

چې وکیل ئې خپل خالق که
ترهر چا قوي رافع شه

چې کار وسپارې و حق ته
بختور سودمند نافع شه

دے شه خلاص له کاروباره
کاروبار ئې په صانع شه

د حق چار کن فیکون ده — زره ئې کار تو برق لامع شه
ارادت یې کار فرمائے دے — کارکنان یې طبایع شه
ارادت صاحب د حکم — چار عنصر دده تابع شه
چار عنصر مثال لاس پښې دي — ارادت له زړه طالع شه
زړه بادشاه دے په صورت کښې — دست و پای خادم خاشع شه
عنصر تل د کثرت کښت کا — زود کردارہ مزارع شه
کل اشیا د حق بندگي کا — ثوک قائم څوک راکع شه

دا مخلص خلاص شه له شکه
(چې په یو باندې قانع شه)

## درصفت خیرالبیان وانچه مذکوراست وآنکه علم بی عمل و بی اخلاص بکار نیاید

---

د خیرالبیان او دخیرالبیان د مندرجاتو د صفت څقله. او دا چې علم بغیر د عمل او اخلاص نه هیڅ پکار نه راځي.

---

ث ثابت قدم روښان شه
پهلوان د دین برهان شه

هم وارث دانبیاء دے[1] — پرې الهام خیرالبیان شه
په څلور لفظه هادي دے — دعرب هم دافغان شه
هندي نفعه ځني مومي — هم مغل چې فارسي خوان شه
موافق دے له قرانه — دحدیث اقوال دکان شه
پکښې درج اتهٔ مقامه — هم دنصیحت اوطان شه
دقیامت احوال پکښې دي — هم دګور چې تنګ مکان شه
دګور سوال دے نازل شوے — هم دمرګ چې سخت ګران شه
ددنیا ملک یې غندلے — خوښ بهښت یې جاویدان شه
هرچې داکتاب ولولي — دے عالم په چار زبان شه
چې عمل په داکتاب کا — دے عالم عامل عیان شه
حاصل نشته بې عمله — که یې یاد تمام قرقان شه
بې تلو نهٔ رسي وځائے ته — بې عمله هم چنان شه
عمل علم دي شهپرکړه — کهٔ دي مېل (بنه) په طیران شه
بې اخلاصه عمل پوچ شه — دا اخلاص د عمل جان شه
چې روح نهٔ وي په صورت کښې — دے لائق دګورستان شه
پهٔ اخلاص عمل مخلّص کا — له دوېمه خلاص پهٔ امان شه

دا مخلّص یې پته کړے
میان روښان صاحب زمان شه

---

[1] دا "دے" په ځائے ټول داسې "دي" لیکلے شوے دے.

جسم دواند یکی جسم لطیف دویم کثیف، کثیف
آنراگویند کہ چیزی درمیان آمد وانچہ پس او باشد
ان چون درنظر نیاید عذاب شود جسم لطیف مر روح
است و جسم کثیف مرتن است

---

جسمونه دوه دي يو لطيف جسم اودويم كثيف جسم - كثيف جسم
هغه ته وائي چي څه منځ كښې حائل شي پس ددې نه چي وجود
كښې راشي هغه هركله چي په نظر نهٔ راځي نو په عذاب شي.
لطيف جسم روح دے اوكثيف جسم تن دے.

---

ج جمله عالم حباب دے
زادو بود ئې په درياب دے

| | |
|---|---|
| د احباب گوره دوه لونه | که د عقل ويني له خواب دے |
| يو لطيف دويم كثيف شه | كهٔ باور دې په كتاب دے |
| روح لطيف حباب ظاهر شه | دا كثيف تن د تراب دے |
| دا لطيف صورت باقي شه | تن كثيف فاني سراب دے |
| لطيف پټ كثيف ښكند شه | لطيف تن كثيف ثياب دے |
| كثيف تن له چار عنصره | دا لطيف تن له خطاب دے |

په لطیف کښي الطف گوره — که دي فتح د دریاب دے
دا الطف د حق هستي شوه — پرې بینا عارف ارباب دے
هم پکښې هم تري چوپېره — دے ماهي هستي ئې اب دے
ماهي هر لور ته چي گرځي — وا وبو ته ئې مآب دے
هم فَاَيْنَمَا تُوَلُّوْا — برابر مخ دَ وهاب دے
ته د ذړه سترګې کړه روښې — حق حاضر تل یې نقاب دے
هیڅ ځین نشته چي حق پېټ کا — حق په خپل په خپل حجاب دے
د عرمت خادر ئې وانوست — په نور پېټ گوره افتاب دے
افتاب نور نور له آفتابه — ذات صفات په دا حساب دے

اے مخلصه تل ئې گوره
د مولا دیدن ثواب دے

## دربیان معیت خدائے تعالی با بنده و غیبت از و وانکه طلب پیر کامل کند

---

د خدائے تعالی د بنده سره د معیّت او د غیبت بحقله - او دا چي دکامل پیر طلب پکار دے -

---

ح[1] حاضر ناظر دي رب دے
ته غایب شوي دا عجب دے

---

[1] اص : گرزي

سترګې روښې کړه وګوره دې تر تا وتا اقرب دے

نحن اقرب الیک درنږدې تر رګ عصب دے

د حیات اوبه پټې دې ستا صورت مثال مشعب دے

چې دغه اوبهٔ ووینې بینا دل صاحب مشرب دے

دغه نو محیط لهٔ وا ړو کهٔ حنظل دے یا عنب دے

دیوهٔ مزې مربیه کهٔ تاجک ترک وعرب دے

مرکب ډېر لهٔ ول[1] لیدهٔ شي یو راکب یوئې جلب دے

یو افتاب دے پهٔ اسمان کښې پهٔ هرکور ئې نور اغلب دے

دنیا روځ[2] ده نمر ختلے په ړندو سترګو تل شب دے

د ګمان پرده ئې پېرړه دریا نهٔ وینې ړوندکب دے

لوئے حکیم د ړندو سترګو بایزید روښان لقب دے

پرې[3] پرده کړه لهٔ زړهٔ لرې دې مشفق ترام واب دے

د کامل طلب دې بویه کهٔ په چین یا پهٔ حلب دے

بینایي حسني حاصل کړه داکوري دخدائے غضب دے

زړهٔ روښان په روښنایي شه روښنائي د زړهٔ طلب دے

زړهٔ روښان شي پهٔ ډېر ذکر هم ئې معرفت سبب دے

چې یو نور کوري پهٔ کل کښې دا د عارفو مذهب دے

د مخلص زړهٔ ئې روښان کهٔ

معرفت د نور کوکب دے



---

[1] اص: لول [2] اص: روز [3] اص: پې

## دربیان رقیبی حق تعالیٰ و درصفت شجر انسانی که فصل است از درخت نباتے

د حق تعالیٰ د رقیبي په باره کښې او د انساني شجر پحقله چې د نباتي اونې فصل دے.

خ خبیر علیم رقیب دے
دے ستر تا وتا قریب دے

چې په ذرهٔ کښې اندېښنه کړه
پوهې اګاه د ذرهٔ طبیب دے

حق دایم په ذرهٔ نظر کا
هم املا هم ئې ادیب دے

په هر لورئې ګرځوینه
ذرهٔ عاجز ورته غریب دے

د کامل صورت مسجد شهٔ
ذرهٔ منبر حق پرې خطیب دے

د انا خطبه پرې لوله
خوش اوازه عندلیب دے

و موسیٰ ته خطبه لوستې
حق په اوڅه کښې عجیب دے

کامل انساني شجر شهٔ
تر نبات د انا نجیب دے

حق ګویا شهٔ په عصر کښې
د ا کلام ئې د جیب دے

حق پخپل صورت دوغ کړے
دے نایب حق ئې منیب دے

کل عالم ئې پرې زینت کهٔ
د وحدت د خم خضیب دے

(۱) اص : وینې

خلیفه شهٔ پهٔ دا زمکه — دے دانا صاحب ترتیب دے
هم مسجود د ملایک شه — پهٔ اسمان دانا لبیب دے
دے سایه د الهي شه — ملک يې کړے پهٔ جویب دے
دیو ددهٔ حُسنې حذر کا — شهٔ عجب صورت مهیب دے
د صفات مظهر اشیا شهٔ — د قدرت څرګند ترکیب دے
دا انسان مظهر د ذات شهٔ — تري ظاهر د مشکو طیب دے

و توحید ته کړے بولي
دا مخلص د حق نقیب دے

## درصفت دریاب وحدت ، حدیث خلق الارواح المؤمنین من نور جماله وخلق الارواح الکافرین من نار جلاله

---

د وحدت د دریاب پهٔ صفت کښې . حدیث : د مؤمنینو روحونه د جمال لهٔ نوره دي او د کافرانو روحونه د جلال لهٔ ناره دي .

---

د دریا د وحدت لوئے دے
بې پایانه په هر سوے دے

---

لـه اص : د ستا

حد پایان یې موندهٔ نهٔ شي — یو عجب دریا خودروی دی
کل عالم یې احاطه کړ — محیط شوی موی په موی دی
کل د دهٔ له موجه وشو — کهٔ بد خوی دی که نېک خوی دی
د یوهٔ دریاب چپې شوې — کهٔ زشت روی که نوش روی دی
د دې دریا دوه موجه — یو جلال چې تل جنګ جوی دی
بل دووم موج یې جمال شه — پرې موجود نېک خو خوش بوی دی
کافر شوی لهٔ جلاله — ناري نار ته تک وپوی دی
جمال نور نوري په راست شو — و دیدار ته یې پای هوی دی
په دا یو نور زرغونه شو — کهٔ کنهٔ کهٔ ترنج کموی دی
نور و نار لهٔ یو یو اصله — نار زقوم نور یې نازبوی دی
چې نوري ناري یې بېل کړ — بایزید هادي حق ګوی دی
حقاني وېنا ترخه شوه — پر حرص چې د نوس جوی دی
هر چې نغته د نوس کاندي — نفساني د دوزخ کوی دی
په ارزو پسې یې مهٔ ځه — نا صبوره مرده شوی دی
نفس په غېږو سترګو خوب[1] کا — په غوږ کوڼ د مرګ له ووی دی
چې هوا یې کړه اسیره — پهلوان صاحب شېر روی دی
چې د نوس توسن یې رام که — ده خاک کړي د حال ګوی دی

علی محمد (یې) ثنا ګوی شهٔ
د اشهسوار اولیا لوی دی

---

[1] اصل: د نفس په غېږې سترګې خوب کا

ذ ذکر د زړۀ نمر دے

پرې روښان د زړګي غر دے

چې خفي ذکر ئې نه زده　　زړۀ ئې تل زنګ مکدر دے

(صیقل ذکر دخپل زړۀ کا)　　صیقل ذکر توان بادر دے

دایم ذکر ئې عمل شه　　دا ذاکر ئې صیقل ګر دے

چې عمل قوت ئې نۀ وي　　ارسي زنګ دآهنګر دے

زړۀ ئې صافه ائینه شه　　چې ئې توان عمل بېشتر دے

کل کلیات به پکښې وینې　　زړۀ ارسي د سکندر دے

جام جم د زړۀ ته وائي　　دے د کل عالم مظهر دے

هم ام الکتاب محفوظ شه　　د همه علم مادر دے

کل فتوی له زړۀ وغواړه　　دے مفتي د خیروشر دے

چې د زړۀ په فتوی کار کا　　په هستئ صاحب کوثر دے

کل پر زړۀ دي نازل شوي　　له ایت حدیث خبر دے

دے مظهر د کل علوم شه　　ترې څرګند جمله هنر دے

تل د زړۀ په تخته کښل کا　　حق کاتب زړۀ ئې دفتر دے

چې دایم وزړۀ ته ګوري　　پرې لدون علم اظهر دے

زړګے پاک لره له غیره　　دے حرم د حق منظر دے

عرش الله د مومن زړۀ شه　　دے له غیرو مظهر دے

چې مومن دے زړۀ ئې پاک دے　　سیه دل زنګي کافر دے

د مخلص زړۀ ئې روښان که

روښان دل صاحب بصر دے

---

له اص : فتو

## راحة المومنين دون لقا راحة ودر ومعنیٰ آنکه من له المولیٰ فله الکل

د مؤمنینو راحت د لقا (ملاقات) په راحت دے۔ او په
دې معنیٰ کښې چې مولیٰ د چا شو نو د هر څۀ د هغه شو۔

ر راحت دحق دیدار دے
بې راحته عمر خوار دے

د مومن راحت لقا شۀ — دا کافر د نفس په کار دے
څنې خوښ په لهو ولعبه — د چا میل ئې په ګلزار دے
څوک مشین په اخرت شۀ — له مرداري پرهېزګار دے
څنې میل په جیفه کاندي — شب و روز ئې طلبګار دے
حب محبوب شۀ په هر تن کښې — تن مرکب حب ئې شهسوار دے
په خپل مراد ئې ګرځوینه — تن عاجز غریب بې یار دے
هر چې حب ئې په دنیا شۀ — سخت عذاب لره تیار دے
چې مشین په اخرت شي — په طاعت ئې سریکار دے
د جنت راحت به مومي — له دیداره پرکنار دے
چې عاشق ئې په دیدن شۀ — دین دنیا ئې پر زړه بار دے

حق به دواړه ودهٔ ورکا — هم دیدار چې ئې اختیار دے
چې د نور ښښتن ئې خپل شي — مال و ملک واړه دیار دے
د سـرې دپاره شوي — د دنیا د عقبٰی دار دے
حق خپل ځان لره رغ کړې — دا انسان اولوالابصار دے
چې ښښتن پرې دي ملک غواړي — دے نادان څرګند زیانکار دے
حق دے کل عالم دے جزو — چې ئې کل بایلو حمار دے

له دیداره بې نصیب شـهٔ
په حجاب لهٔ کردګار دے
اے مخلصه بې دیداره
چې راضي شي شـرمسار دے

## درصفت بحرالحیوان وَ لَقَدْ کَرَّمْنَا بَنِیٓ اٰدَمَ - سوره اسرا ایت ۷۰

دَ بحرالحیوان په صفت کښې (او موږ بني آدم ته ډېر عزت ورکړو)

ز زنده حیات په یم ئې
له ډې غم ولې بې غم ئې

له اص: لدیه

ته ساقي د دغه يم شوې — هم بې هست هم بې حوزم يې
تمام ژواک دے په دا بحر — هم بې ځائے هم بې محکم يې
روح د ډې[1] دریاب او به دے — که دې وپېژاند ان دم يې
څو دغه اوبه[2] جاري دي — پرې زنده هم پرې مسلم يې
چې قراري دې او به شي — مات شکست خراب عدم يې
ته ځان روح ګڼه نادانه — له صورته سره خم يې
د روح اصل له دریابه — که ذات (و پېژني سم يې)
که له ذاته آشنا نشې — د ځنګل تر لېوه کم يې
دا ستا ذات قدیم دریاب دے — ته په ذات باقي قدم يې
روح صورت مثال حشم شه — ته بادشاه د دې حشم يې
ته مظهر د کل عالم شوې — هم د دور کونو علم يې
انساني قمیص[3] دې واغوست — ته بزرګ شوې په کرم يې
حق خپل ذات له ره پیدا کړې — ته صاحب د کل خدم يې
واړه ستا د پاره وشو — ته عرفان لره رقم يې
که عرفان دې روزي نشي — لوند لوګے د جهنم يې
شناخت به نه موې بې بېره — که په دا وینا محرم يې
د دانا خبره پنده کړه — که حیوان نه يې آدم يې

مخلص واښې کامل پېس کړه
که تشنه د هستۍ یم يې

---

۱ اص: دیه ۲ اص: اوبو ۳ اص: کمیس

**در صفت آواز سرود وآنکه تار مانند شهباز است و دریاے نا محدود مانند تار است و در معنیٰ ایت کریمه جل جلاله ز بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْم « يُسَبِّحُ لِلّٰهِ مَا فِي السَّمٰوٰتِ وَمَا فِي الْاَرْضِ (الجمعه ایت ۱) حدیث ز ما تحرکت شئٌ" اِلَّا بِاِذْنِ اللّٰه ۔**

---

دسرود دآواز پهٔ صفت کښې ۔ او دا چې تار د شهباز پهٔ شان دے او تار دیو نا محدود دریاب پشان دے او ددې ایت کریمه پهٔ معنیٰ کښې ز

" څهٔ چې پهٔ زمکو او اسمانونو کښې دي د الله تسبیح وائي "

حدیث ؛ " د خدائے د حکم نه بغیر هیڅ څیز حرکت نهٔ کوي ."

---

س سرود تسبیح آواز کا
لهٔ سامعه لره راز کا

دغه راز کا نهٔ نهٔ اوري — د سامع پهٔ زړهٔ طراز کا
سرې بولي کل وحق ته — هر آواز بانگِ نماز کا
شنوایان به نخوا پیژني — چې د زړهٔ غوږ ورته واز کا
دغه ساز بعید نهٔ اوري — و قریب ته ساز آغاز کا
هر آواز تسبیح دهٔ دے — غافل ولې احتراز کا
چې احتراز که لهٔ تسبیحه — پرې به ور د دوزخ باز کا
یو ذاکر پهٔ ډېر ذکرونه — یو آواز پهٔ څو انکار کا

یو دریاب دے ډېرې موجه     هر امواج ئې طبل باز کا
کل حیلې حُني وتبستي     پرې هوس د شه‌شهباز کا
چې ځښن پرېوځي پهٔ اوبهٔ کښې     اب ځرګند آوان فراز کا
دا دلیل (ئې) د طالب دے     کهٔ ئې عقل امتیاز کا
تار شهباز تر میان سبب شهٔ     کل آوان غریب نواز کا
اوان نهٔ شي بې جنبشه     کل جنبش پرې سرافراز کا
جنبیده د کل اشیا شه     پهٔ دریاب روان جهاز کا
کل قوت واړه د حق دے     څوک ناحق تر میان انباز کا

دګویا ثنا ده ډېره
دا مخلص صفت ایجاز کا

## درصفت روح انسان کامل ومکمل که آن نشان بی نشان است

---

دکامل اومکمل انسان د روح پهٔ صفت کښې چې
د بې نشانئ یو نښان دے

---

ش شهباز د لا مکان ئې
ته بندي پهٔ بدګمان ئې

ته ګمان کړې له زړه لرې — بيا واصل ته طيران يې
نن طيران شه وخپل ذات ته — ته آوان مرغه سيران يې
ته سيران د هو په بحر — روحاني مرغ عيان يې
عيان شوې په جهان کښې — روحاني بادشاه سلطان يې
سلطاني دې مبارک شه — خليفه د کل جهان يې
جهان تن ته يې ارواح يې — ته ارواح د ارواحان يې
ارواحان دې تابلي شوي — ته دريا يې بې پايان يې
بې پايان يې په هر لوري — هم په هر ځاي کښې جريان يې
ته جاري يې په هر باب کښې — هم په هره خوله ګويان يې
ګويايي د هر زبان شوې — توانايي د هر ناتوان يې
د ناتوانو قوت ته شوې — هم هستي د کل ابدان يې
د بدن حيات که روح شه — ته حيات د کل حيوان يې
حيوانات په تا زنده دي — ته ژوندون د انس وجان يې
جان ناري انسان خاکي شه — ته د خاک و نار روان يې
روان روح يې په هر شي کښې — هم د کل اشيا مکان يې
کل مکان په لا مکان کښې — ته د لامکان نشان يې
نشانه د بې نشان شوې — روحاني بادشاه روښان يې

د مخلص زړه دې روښان کړه
پر فقير و مهربان يې

## دربیان آنکه گویائی از شنوائی حاصل میشود ودرمعنیٰ ـ حدیث : لی مع الله وقت لایسعنی فیه ملک مقرب ولا نبی مرسل ۔

---

دا بیان چې ګویایي د شنوایۍ نه حاصلیږي او د دې حدیث په معنیٰ چې : زه په یو داسې وخت کښې د الله تعالیٰ سره یم چې هلته د مقربې فرښتې او یا د یو نبي مرسل وس نه رسي ۔

---

ص صورت له آب وګله
ته یې ونغوښته عاقله

په صورت کښې سیرت ګوره ــ بله نه شي بې حاصله
حاصل ګل په معرفت کښې ــ دا وینا دا ښا ویله
ویل زده له ارویدو شي ــ وینا اروه له کامله
د کامل په وینا کار کړه ــ حق به بیل کړي له باطله
باطل بې خدایه دي غیر ــ غیر محوه کړه پر بله
بل څه نشته په دا باغ کښې ــ هم خود ګل دے هم بلبله
دا بلبل (څه) اشفته شو ــ د وحدت له زیړه ګله
زیړ ګلونه عاشقان دي ــ دوی مستین دي یو د بله
یو د بله سره راز کا ــ ملائک نه دي داخله

دخل نهٔ وي دُ ربارُو [1] چي محبوب ئ شي واصله
پهٔ وصلت کښي ځان حجاب شي غيرِ وباسه لهٔ دله
دل لهٔ غيرِ زنګه پاک کړه پکښي مخ ګوره قابله
تهٔ قابل د معرفت ئ د عرفان پهٔ غولي سله
چي مي شته په دا منزل کښي د قربت محبوب کړه خپله
چي قربت د شهه حاصل کړي له معشوق شه متصله
مضمحله که د ويي کړي
سکونت لره ورزعله
اے مخلصه قراري کړه
قراري ده ډېر مشکله

## در بيان آنکه حق تعالیٰ محيط باشد بذات بصفات نيز آنکه ذات و صفات لازم ملزوم است

د بيان چي حق تعالیٰ پهٔ ذات او صفات محيط دے ولي چي ذات او صفات لازم او ملزوم دي

ځ ضم پهٔ کل کليات شه
لکه نو پهٔ هر نبات شه

[1] اص : ربارو

پهٔ کل جز دے رسیں لے    چې پهٔ ارض پهٔ سماوات شهٔ
هره ذره يې احاطه کړه    حق محيط پهٔ ذات صفات شهٔ
ذات صفات لازم ملزوم دي    صفات کله بيل له ذات شه
ذات څرګند شه پهٔ صفات کښې    ذات يې مخ صفات مرآت شه
ذات چراغ پکښې بليږي    دا صفات مثال مشکلات شه
اور معلوم شي له لرګيه    صفات غړ د عرفات شه
حق معلوم شه لهٔ عالمه    هر اشيا يې علامات شه
هر موجود يې نښانه دے    دا نښان يې لوئے ايات شه
حق تخيل صورت روغ کړې    خليفه د کائنات شه
ظل الله ودهٔ ته وائي    دے څښتن د کرامات شه
حق خپل روح پکښې پو کلے    پرې عليم هم دائې حيات شه
هم بينا هم پرې شنوا دے    هم ګويا پهٔ کلمات شه
ارادت قوت يې ورکه    ذات صفات پکښې اثبات شه
د لولاک تاج يې پر سر کړه    دے بادشاه د عرصات شه
کل حيوان ورته عاجز دے    مسخر يې جنيات شه
ملائک يې خادمان دي    دے څرګند صاحب د عزات شه
د ملک بخره طاعت دے    معرفت دده برات شه

دا مخلص راضي لهٔ خدايه
چې عرفان يې عبادات شه

**ط** طاهر دریا سرمد دے
کل عالم دده زبد دے

زبد روغ دے له دریا به — د دریاب په مخ رمد دے
دا رسد مثال دتهیاه شه — د آب مخ پرې زبرجد دے
زبرجد رنګ شیرګي کا — وحدت شین دریا بې حد دے
رنګ قایم دے په ځینې باندې — رنګ عالم ځینې ئې احد دے
کل عالم په حق قایم شه — هم دهر اشیا وسد دے
تمام رنګ دده له موجه — دے له رنګه پاک صمد دے
رنګ بدل په هر ساعت شي — ذات قرار پر ځائے قعد دے
نوے رنګ ئې موج ظاهر کا — تکرار نه لري بې عد دے
په هر موج اشیاء موجود شي — که حیوان نبات انمد دے
موج ارواح دده بې حده — ګفت دده ثنا سخورد دے
كُلَّ يَوْمٍ هُوَ فِيْ شَانٍ[1] شي — دے په زیرمه توابد دے
ځنې راولي په دنیې — ځوک عقبیٰ وته سطرد دے
ځنې کښېنې ځنې پاځي — دا دنیا خوان دامجد دے
د مولا په خوان شریک شو — که سپین پوستے یا اسود دے
رزق حیات ئې باندې وېش کا — دے رحمان په نیک و بد دے
حق رحیم په آخرت کښې — دے عادل بادشاه نامزد دے
حق رحیم په دا مومن شه — چې نیک خلق ئې بې حد دے

د مخلص د زړه په ملک کښې
یو احد بادشاه سرمد دے

---

[1] هغه ده ۲ ورځ په یو نوي شان کښې وي ) سوره رحمن ایت ۲۹

# در بیان انسان صغیر و انسان کبیر

د صغیر او کبیر انسان په باره کښې

ظ ظاهر باطن وحدت شه
چې یې نه مني غلت شه

یو وحدت دے تجلي کا — د ظهور نوم یې کثرت شه
باطن بحر بې پایان دے — پېټ ارواح ظاهر صورت شه
دا ظاهر د باطن پوست دے — روح یې تن صورت خلعت شه
د صورت جامه فاني شوه — تن باقي تل سلامت شه
لوئے انسان تمام عالم دے — حق ارواح د لوئے صورت شه
کهٔ انسان نسخه د لوئے دے — پکښې نقش کل ایت شه
نمودار د کل عالم دے — مجموعه د علامت شه
عالم تن انسان یې زړهٔ دے — زړهٔ د روح گوشه خلوت شه
عرش الله د مومن زړهٔ دے — تخت مکان د حکومت شه
تن په زړهٔ، زړهٔ پر روح پائي — یو د بل په ځان صحبت شه
څو سرے وي په جهان کښې — ملک قرار بخپل عادت شه

چې سرې پاڅي له ملکه — ملک خراب پر قیامت شه
د سرې ژوندون ارواح دے — چې ئې ارواح وران غارت شه
د قفس عزت توتي دے — بې توتي پروت بې عزت شه
په قیامت به پښېماني کا — بې فائده آن ندامت شه

نن کامل لره وردرومه
دے دلال د معرفت شه
د مخلص مقصود ئې درست که
میان روښان صاحب دولت شه

وله

ع عار له سا سپوا کړه
غېرو واړه پسې شا کړه

غېر نښته په جهان کښې — بدگمان له زړهٔ جدا کړه
تماشا کاندي پخپله — ته نودي خپله فنا کړه
ستا خودي غېرگمان دے — له زړهٔ محوه داجیا کړه
که د غه گرد ناپدید شه — ننداره د لوے دریا کړه
ننداره ئې وړاندې روستو — ښے وکین تهه و بالا کړه
تمام غرق ئې په دا بحر — ته د زړهٔ سترگې بینا کړه

پهٔ تا کښې تر تا چوسر دے　　پهٔ لیدو یې زړهٔ صفا کړه
ستا خاطر عکس پذیر شه　　په پرتو ئې زړهٔ جلا کړه
تهٔ ماهي یې دریاب دے　　پکښې خوښ خورم ثنا کړه
زاد وبود ئې دغه بحر　　له خشکي ئې تبرا کړه
وحدت بحر کثرت بر شه　　تهٔ بحري بحر ما وا کړه
دے مکان دهر مکان دے　　ته د لامکان ثنا کړه
ځان جهان ګوره پهٔ دهٔ کښې　　لهٔ خوبي یې تن ثنا کړه
تل بنادي کړه پهٔ خاطر کښې　　لهٔ هوسه سازسما کړه
هر آواز درته دا وائي　　تهٔ د زړهٔ غوږ ورته وا کړه
چې موجود نشته بې خدایه　　تهٔ باور په دا ندا کړه
اے مخلصه کهٔ سامع یې
په صورت زړګے شنوا کړه

**در معنیٰ ایت کریمه ز مَرَجَ الْبَحْرَیْنِ یَلْتَقِیٰنِ ۝ بَیْنَهُمَا بَرْزَخٌ لَّا یَبْغِیٰنِ ۝ الرحمن ایت ۲۰/۱۹ وانکه مراد برزخ حقیقت محمدی است عَلَیْهِ السَّلام**

---

ددې ایت کریمه پهٔ معنیٰ کښې چې ز　　　هم هغه دوه دریابونه سره یو ځائے کړهٔ چې سره یو ځائے هم وو او د دواړو پهٔ منځ کښې یو حجاب هم شته او دواړه سره یو ځائے کیږي هم نه) ددې برزخ نه مراد "محمدی حقیقت" دے

---

غ　غیږې نشته عین
یو الله پهٔ دوه کونین

بو به گوري په دوه کونه — چې يې شک تحت الرجلين
دا د شک تيارهٔ ده بده — دے پرده د زړهٔ په نين
کهٔ دغه پرده کړې لرې — غرر نشته في الدارين
د وحدت مثال طوبیٰ شه — پرسر کور يې بشاخ معين
قوت حيات سرچا دے شهٔ — کهٔ يزيد دے کهٔ حسين
دا وحدت مثال او بهٔ شهٔ — پرې سراب د کثرت چين
د احمد مقام وحدت شهٔ — دے برزخ بين البحرين
د کثرت احد تر ميان شهٔ — لوئے برزخ جامع مابين
کهٔ دغه برزخ شي لرې — نهٔ به روح وي نه به رين
کل موجود به ناپديد شي — هم به بنهٔ شي هم به شين
د لولاک معنیٰ دغه ده — شي رسول د ثقلين
دا احد پهٔ ميم احمد شي — لکه عين پهٔ خال غين
هم ولي هم يې نبي شي — دے ځښتن د ذوالوجهين
ولايت محمد يې وحق ته — ورنزدې تر قاب قوسين
فيض جاذب پهٔ ولايت کا — دے صاحب د ذوالنورين
نبوت پهٔ خلقو وېش کا — دين دنيا يې خادمين

دا محمد نصير حق سرفراز کهٔ
د سرو په مدح عين

---

اخذه وګوري تعليقات د نبوت او ولايت

## در بیان آنکه گمان انست که چیز ناموجود پندارد و آن غیر حق است

د گمان په مقله ز داچې گمان هغه دے چې يو ناموجود
څيز (موجود) خيالوي او دا غير حق دے .

**ف** فاني گمان حرام دے
چې نيست هست گنړي انعام دے

نيست موجود په جهان نشته — غير چرې کوم کلام دے
اَلْآنَ كَمَا كَانَ — په يوهٔ حال ئې قيام دے
په امواج څه غير نشي — دريا تل دريا دوام دے
کم و زيات نهٔ شي په موج — تل قرار تخپل مقام دے
په هر حال سرے دے — کهٔ جنبش کهٔ يا آرام دے
د امواج نوم ئې صفات دے — کلام باد بادي کلام دے
ذات د دريا تل په جنبش کښې — د هر موج ئې جدا نام دے
مسمّی پهٔ کل نوموته — يو احد له خاص وعام دے
ذات ئې يو صفات ئې ډېرشه — بنځ ئې يو بناخ ئې اقسام دے

د هر بناخ نوم ئې جدا شهٔ — يو خنطل بل ئې بادام دے
د بادام مغز ئې شيرين شه — د خنطل زهر تمام دے
دا خنطل مثال د کفر — او بادام عين اسلام دے
د مومن زړهٔ ئې روښان کا — د کافر دل سيه فام دے
د جمال مظهر مومن شه — دا کافر د جلال کرام دے
هر يو جهد ښخپل لور کا — دا ځپل لور دهر ځاقام دے
پهٔ تلوار ور روانيږي — د وطن حب ئې زمام دے

پرې ظاهر د توحيد علم
د مخلص زړهٔ د جسم جام دے

## بيان درمعنیٰ جف القلم بما هو کائن

حديث شريف: د دې معنیٰ پهٔ شرح کښې چې ز "قلم وچ شي پهٔ هغې څهٔ چې کيدونکے وي"

**ق** قلم د حق جاري شه
پرې اول رقم نوري شه

دا نوري عالم دوه گروهه — يو ملک بل روح ساري شه
پهٔ نوري پسه وگوره — زر رقم ارواح ناري شه

بیا عالم مثال ئې وکوښې — دے جهان د قراري شه
د ظاهر باطن ترمیان دے — دے لطیف عالم باري شه
ملکوت ملک پکښې ګوره — دے ارسي د اظهاري شه
پس اجسام ئې کتابت که — دا عالم ظاهر سوري شه
د اجسام عالم دوه توکه — یو علوي چون مرواري شه
د اعلوي عرش وکرسي دي — هم آسمان چې زنګاري شه
بل سفلي اجسام وګوره — چار عنصر ختول بهاري شه
نور رقم ئې موالید که — دا جماد نبات ناري شه
بل دریم مولود حیوان دے — دے سیار هم اختیاري شه
آخر خط ئې انسان ګوره — دے عالم(۱) ګویا قاري شه
چې څه وو واړه ئې وکوښې — قلم خشک دلته عاري شه
قلم خشک سیاهي تمام شه — هنر تام د هنري شه
حق په خپل صورت رغ کړی — دے لایق د داوري شه
په خشک تري ئې واخیست — دے صاحب د سواري شه

څه احسن صورت ئې وکوښې
هم نوش خوی هم بلغاري شه
و مخلص ته حق څرګند کړه
چې قلم باندې جاري شه

---

(۱) اص: علم

# در صفت مهربانی و محفوظی حق تعالیٰ و انکه در راهِ حق بے بدرقہ پیر کامل نتوان رفت

د حق تعالیٰ د مهربانئ او نګهبانئ په صفت کښې - او داچې د حق په لار کښې بغیر د کامل پیر د بدرقې تلهٔ نهٔ شي کېدے

کَرِیْم رَحِیْم سَتّار دے
مهربان تر مور و پلار دے

دے راعي د هر زنده شه
مزارع د کُل اشجار دے

پرورش کاندي د هر چا
شب و روز ئې خبردار دے

روزي نو ور رسوینه
کهٔ جماد نبات جاندار دے

هر مخلوق پرې روزي مومي
دا زمین خوان د غفار دے

د مولیٰ پهٔ خوان شریک شهٔ
کهٔ مسلم جهود کفار دے

رزق حیات عقل ئې ورکه
حق رحمان پهٔ کل وخار دے

حق رحمان پهٔ خاص و عام شهٔ
خاص رحیم په ایمان دار دے

ایماندار سرے هغه شهٔ
چې موند لے یې زړهٔ لار دے

ددې لار خطر ئې ډېر شه
نوس شیطان ئې تګ طرار دے

بې رفیق پر لاره مهٔ ځه
د سرور نبي ګفتار دے

له تنها سره شیطان دے
لوے دښمن مکري مکار دے

تنها چرې ځنې خلاص شي
کهٔ رستم یا اسفندیار دے

داکامل بدرقه بیا یې
پهلوان د دین سالار دے

ناقص مل د لارې مهٔ کړه
تر ابلیس شرین زبانکار دے

چې مانع دې شي لهٔ حقه
لوے دښمن ځرکند خونخوار دے

ناقص پیر غول دے دلارې
ځنې تښته څو دې یار دے

پر مخلص دے د خدائے رحم
چې وړاندې (ئې) غمخوار دے

## دربیان بزرگی دریا واحاطه نیک وبد کینه آتش است حرص شوم حریص است و محروم است هرکه حریص باشد بی ایمان باشد

---

د دریاب د بزرګۍ او د نېک و بد د احاطې په بیان کښې - کینه اور دے - څوک چې حریص وي هغه بې ایمانه به وي -

---

ل لوے دریاب وګوره
کهٔ دیده دې نهٔ دے کوره

طول و عمق يې ناپدید شه ‌ ‌ ‌ څوک واقف نهٔ دے له سوره
کُل جهان يې احاطه کړ ‌ ‌ ‌ دے محیط له مخه موره
يو په يو ورسېد لے ‌ ‌ ‌ کوکه نهٔ لري له توره
در نزدې تر بښهر کونه ‌ ‌ ‌ تري څوېږدي ښیښ لوره
نمر په هر ځائے تو پېد لے ‌ ‌ ‌ پر صالح زمکه پر شوره
دے شنوا اواز کل اوري ‌ ‌ ‌ که په ورو کړې یا په زوره
اواز نهٔ شي بې جنبشه ‌ ‌ ‌ کل جنبش ددهٔ لهٔ زوره
دے گویا دے بې اوازه ‌ ‌ ‌ هم علیم اندېښنه ځ غوره
اندېښنه نیت ورڅرګند دے ‌ ‌ ‌ دے دانا خبیر هر ګوره
کینه کبر بد اتش دے ‌ ‌ ‌ زړهٔ کړه خلاص له کینې لهٔ اوره
اول وسېږي ښښتن خپل ‌ ‌ ‌ حال هي دبل تر کوره
واړه بخرې ازلي دي ‌ ‌ ‌ په زور نهٔ شي بخره نوره
که راضي په خپل قسمت شوې ‌ ‌ ‌ اسوده ورځه تر ګوره
د حریص کاسه تل تشه ‌ ‌ ‌ دا په مخ ښکته نګسوره
که جهان په نګولي پر شي ‌ ‌ ‌ دَ حریص لقمه ده سپوره

پر قانع باندې باور کړه
حق رحیم تر پلار ومور ه
دا مخلص له غمه خلاص شه
چې مولا يې شه غمخوره

---

له اص : پور

# در صفت مے وحدت و حالت مستان او که هرچند می نوشند و می جوشند هل من مزید

د وحدت او ددې حالت د مستانو په صفت کښې څومره چې څښي او بې قراره کېږي هغه هومره وائي چې نور نشته؟

م مست مے د حق شراب دي
چې یې وڅښي پوره سېراب دي

چې یې نوش د وحدت مے که — تر ابده دوي خراب دي ؎
دایم مست دي بې خماره — تل په رقص بې رباب دي
(زهر) شیرین دي تر عسله — زیات خوشبویه تر ګلاب دي
د نفس پر لاره څښه ستي — دما دم زهر بې حساب دي
هل من مزید وائي په زړه کښې — مستسقي د کوثر آب دي
هر یو دم نوې پیاله ده — اخسته یې له دریاب دي
نادیده یې څښي زیات خلق — بې خبر پراته په خواب دي
شیخ لذت څښې نه مومي — بې شعوره خوښ دواب دي

؎ (تر ابده یې خراب وي)

د دریا بخره یې نشته ــــ غلت شوي په سراب دي
د دنیا مثال سراب شو ــــ ځنې تلونې په شتاب دي
د دنیا خوښي څو روځې ــــ بیا یې تل د مرګ په باب دي
که هر څو عمارت لوړ کا ــــ اخر لاندې تر تراب دي
چې عارف نه شو له حقه ــــ کښېو تلي په عتاب دي
شپه او روځ د رزق په زیره ــــ له رازقه په حجاب دي
چې عاشق شو په هر داره ــــ په باطن ګوره ګلاب دي
د ارواح په لوري نه ځي ــــ نوس تړلي په طناب دي
چې یې د طناب په غاړه ــــ ګرفتار شوي په عذاب دي

د مختصر له هغو مــــل کړه
چې د حق په لور مآب دي

## دربیان نفی و اثبات و انکه معرفت حاصل کنی و انکه انگشتری عقل را عشق خاتم گردانے

---

د نفي او د اثبات په بیان کښې او د هغه چا په باره کښې چې معرفت یې حاصل کړ او د عقل ګوتې له یې عشق یو غمے وګرځولو۔

---

ن نفي اثبات دایم کړه
دایم یاد په زړه لازم کړه

پرې نفي کړه غېرې محوه — په اثبات مولا قائم کړه
گمان وباسه له دِله — بشه یقین پکښې حاکم کړه
معرفت به دې روزي شي — عقل گوته عشق خاتم کړه
عشق بې عقله لېونتوب دے — عشق په عقل ملایم کړه
زړهٔ فرزند دنفس دروح شه — زړهٔ د پلار په لور عازم کړه
دروح ملک ورته وستایه — زړهٔ مانع له زمایم کړه
ذمیمه دنفس خویونه — زړهٔ له بد خویې سالم کړه
کهٔ د نفس په نغوته ولاړشه — په حیات د زړهٔ ماتم کړه
شېطان هم دنفس وکیل دے — په یې ذکر چپ ظالم کړه
لو ئے گناه غفلت یاد شوے — زړهٔ خلاص له جرائم کړه
بد شېطان لهٔ ذکره تښتي — ته په زړهٔ ذکر جازم کړه
حمیده خویونه نسه — ترک صفت د بهایم کړه
بهایم صفات دنفس دي — زړهٔ د روح په خوی غانم کړه
بدگمان کړه لهٔ زړهٔ لرې — ستل لهٔ غېره دې صایم کړه
د حق یاد نن غنیمت دے — زړهٔ توانگر په غنایم کړه

چې عرفان ځنې بیا مومې
نن طلب د دې عالم کړه
د مخلص نصیحت دادے
د مرشد خدمت دایم کړه

## در صفت صفات ثبوتي وخبرداري آواز هر آشیا که میان اعلی واسفل است وانکه هر صفت که از آدمی وغیره ظاهر شود علم او در دل صانع مطلق است۔

---

دَ ثبوتي صفاتو او دَ هر هغه څيز دَ اواز دَ خبر دارئ په حقله کوم چې دَ اعلیٰ او دَ اسفل په مينځ کښې دے ۔ او دا چې هر صفت چې دَ بنيادم وغيره نه ظاهر شي صانع مطلق په هغو عالم دے۔

---

و واحد خبير عليم دے
دے شنوا بصير حکيم دے

هم توانا صاحب صفات شو ۔ دے حيات محي قديم دے
د هر ذرهٔ علم لهٔ حقه ۔ حق استاد دانا حکيم دے
ذرهٔ طفل د مکتب شه ۔ حق عالم صاحب تعليم دے
ټوک حاصل څنې د دين کا ۔ د چا خواست نقش د کليم دے
دے د کل هنر استاد شه ۔ هم په هر ذرهٔ کښې مقيم دے
کل فتوې ذرهٔ له ده مومي ۔ دے مفتي دانا عظيم دے

د ے خالق رب و مربود ے شه — هم رازق حافظ کریم د ے

حق ستار دے د ہر عیب پټ کا — مهربان سلطان رحیم د ے

چې دوه کښېني پټ راز وائي — دریم مل ئې رب فهیم دے

یار چې دری مصلحت کاندي — څلورم ئې حق ندیم دے

ورخبر په هر وجود شه — چې موجود په هفت اقلیم دے

تر اسفل اعلى چوپیر شه — هم محیط په میان عمیم دے

دے واقف په هر ذره شه — که لاغر دے یا صمیم دے

چې عروج کا و آسمان ته — یا نزول ئې په ادیم دے

چې خروج کاندي له زمکې — یا پر زمکه مستقیم دے

هر چې پټ سي پر زمین کښې — یا پکښې عظام رمیم دے

حق خبر په دا اشیاء شه — دے علیم بصیر حلیم دے

اے مخلصه ذرهٔ سالم کړه
حق کریم په دل سلیم دے

## دربیان صفت کامل مکمل

---

د کامل مکمل د صفت په بیان کښې

---

ه هادي رهنما پیر دے
دے د مس په ځان اکسیر دے

---

اص : عظیم

مس صورت بدل په زر کا | د کیمیا هسې تاثیر دے
هر چې راشي تر کامله | دا کامل روښن ضمیر دے
مرده دِل به ئې زنده کا | په احوال د زړهٔ خبیر دے
باقي روح به ورخرګند کا | دا صورت د مرګ اسیر دے
کثیف تن مثال د مس شه | لطیف تن د زړهٔ خمیر دے
لطیف تن مثال غوړي شه | دا کثیف مانند د شیر دے
چې روح بیل د تن له شیر کا | پیر کامل صاحب تدبیر دے
د کامل خلور صفته | دے خوش ګوے نیک خوے کثیر دے
دے عارف هم نیک افعال شه | دا نښان د کامل میر دے
دے کامل شه آزاد نه دے | آزاد حراکمل بصیر دے
دا اکمل خلور آیاته | دے آزاد مرغه تجیر دے
تو کل ترک ئې صفت شه | فراغت د دهٔ سریر دے
د عزلت مراد ئې خپل که | دے عنقا مرغ ګوشه ګیر دے
چې تابع د مکمل شه | تن آزاد د نفس له بیر دے

چې د نفس په آرزو بند شه
سخت بندي عاجز حقیر دے
مخلص ووې باور وکړه
مکمل بشیر نذیر دے

## دربیان آنکه هر اندیشه جامه روح است و ثابت نمودن تشبیه و تنزیه

دابیان چې هر خیال او فکر د روح جامه ده
او د تشبیه او تنزیه ثابتول .

ی یو وجود نفس دے
د انسان که د مګس دے

پهٔ یوه وجود موجود شه — کهٔ حیوان جماد عدس دے
حق ارواح د لوے انسان شه — روح ئې سورتن ئې فرس دے
د انسان ارواح کعبه شه — خواطر باندې اطلس دے
نو مے نوے اطلس موې — استاده پهٔ خپل جوس دے
هر خاطر د روح جامه شه — روح مرغه فکر قفس دے
روح دطیف مثال اوبه شه — دے مظهر دکس ناکس دے
د آب مخ ئې پوښده کهٔ — اند یښه پرتو پرې خس دے
خس جامه دم د هر تن شه — دا جامه هر دم وسوس دے
زړهٔ لهٔ بد فکر ئې ژغوره — دایم یاد د زړهٔ عسس دے
دا عسس پهٔ زړهٔ قائم کړه — دے مانع د بد هوس دے

بد هوس ګمان د غېرې   نه يې فکر دی عبس دے

غېرې نشته په دوه کونه   ب سهوه او به ئې رس دے

فود لطيف دے کثيف شوے   په هر کار ئې دسترس دے

حق په کُل صفت موصوف شه   که تشبيه تنزيه اودس دے

که تشبيه تنها ثابت کړې   مقيد وکړ ته بس دے

که صفات ئې په تنزيه کړې   حد حدود ئې څرګند بس دے

هر چې دواړه ئې ثابت کړه

دے بينا يګانه کس دے

دے مخلص دواړه تحقيق کړ

اوان باد بادي جرس دے

## درصفت وعلامت دریا واگاه شدن ماهی از دریا بعد از برآمدن از دریا

---

د دریاب د صفت او علامت په باره کښې – او د دریاب د راوتو نه روستو د ماهي د دریاب نه د اګاه کېدو په باره کښې.

---

دا صورت په کلام څېزګوري اَحیا
یا په کوم قوت توانا ګنې ګویا
شنوایي بینایي څه دي په څه ګوري
دانایي خواست دے له چاپه چا بویا
چې ماهي بیل شي له آبه وپوهېږي
ژما بود ژوندون دایمه په دریا
زه اول نادان له ژوندٌه بې خبر وَم
اوس چې ولاړشه بې فایدې پسې جویا
پس له مرګه به پښېمان شي سود به نه وي
حق ده زیان د معرفت کړي د نیا
چې له دې د معرفت چراغ یونسي
د صراط په لار کښې چرې دے ضیا

---

له زوند          څه چې لدیه .....؟

باطن بینو د قیامت احوال ویئیلے
خبروں شیل ده چار د انبیا
چې باور د انبیا په وینا نهٔ کا
دارمان په اور به شي جلیا بلیا
نن چراغ د معرفت ځني[1] حاصل کړه
د نبي د دین وارث دي اولیا
د ولي د ولایت نښان دغه دے
چې ایت حدیث يې د ژي[2] اشیا
تل يې امر په نېکۍ مانع (په) بدو
دوي[3] زنده لري سنت د اصفیا
په لیدهٔ (یي) زړهٔ روښان مولا يي یادشي
دا نښان دے د ولي ځرګند علیا

دا مخلص چې خاک پا يې د اولیا شهٔ
د ولي د قدم خاورې دے کیمیا

---

[1] ذینې [2] دنږي [3] دي

## دربیان انکه صاحب خلوت را تا عزلت حاصل نشود با ناهلان نبا میزد . وهرکرا باطنی خراب بود وظاهر اراسته منافق بود وهرکرا ظاهر خراب بود و باطن اراسته احمق ونادان بود وهرکرا هردو اراسته بود کامل است

---

په بیان د خلوت د صاحب چي تر څو یې عزلت نه وي تر لاسه کړې تر هغې دے د نااهلو سرنه کښېني او هغه څوک چي باطن یې خراب وي او ظاهر یې بناسُته منافق وي او هغه څوک چي ظاهر یې خراب وي او باطن یې بناسُته نو احمق او نادان وي او څوک چي په دادواړو بناسُته وي هغه کامل وي .

---

سالم دل وي تل له خلقه انزوا
خلوتي گوشه نشین له ماسوا

څو له ځان نه یې گوشه حاصل یې نه وي
له ناهلو سره ناسته نا روا

د عزلت څښتن هغه دے په عالم کښې
چي له ځانه یې جدا د زړه ماوا

که په خوله خبره وایي په مجلس کښې
د زړه دړې وي د حق په لوري وا

رسیده کامل هغه بللے بویه
چي ظاهر باطن یې دواړه استوا

چي ظاهر یې اراسته باطن یې خوار وي
منافق دے په قیامت به شي رسوا

چي باطن یې سره جوړ ظاهر یې وران وي
دیوانه احمق څرگند وي بې پروا

د ارشاد لایقت نه لري مجذوب دے
د ارشاد چار په کامل باندې روا

---

چې ظاهر ئې له عالم باطن له خدایه ‌ ‌ ‌ ‌ ‌ ‌ داعمل درسیده کامل پېشوا
که بادشاه دهدایت گوشه نشین شي ‌ ‌ ‌ ‌ ‌ ‌ په عالم به شي بادشاه دنفس هوا
په جهان به شي تیاره رڼا به نه وي ‌ ‌ ‌ ‌ ‌ ‌ ددنیا په ملک به گډه شي غوا
اسماني بلا به رایشي په زمکه ‌ ‌ ‌ ‌ ‌ ‌ نیک وبد به سره کل کا بېنوا
دکامل مثال اوبه عالم درخت شي ‌ ‌ ‌ ‌ ‌ ‌ بې اوبه شي اونه اوچه بې قوا
دموشد استوگه فرض شوه په عالم کښې ‌ ‌ ‌ ‌ ‌ ‌ کل عوام مثال بیمار کامل دوا

اے مخلصه دکامل نصیحت فرض دے
که څوک اوري یا یې نه اوري آوا

---

## درصفت منفعت صحبت یاران ومعرفت تنهایی ـ ودرمعنیٰ این شعراست

---

دیارانو دصحبت دفائده ې اود ځان والي دنقصان په بیان کښې او ددې (شعر) په معنی کښې ـ

هر ازدوست که بیگانه ازخدا باشد
فدای یک تن بیگانه که اشنا باشد

---

اص : ‌ ‌ اي مخلص دپیر کامل نصیحت فرض دے

ته له هر یو دوست نه چې له خدائے نه بېگانه وي ـ قربان له هغه یوه پردي کس نه شم چې دخدائے سره اشنا وي ـ

نن زماچې محبت شه له اشبا[1] | د ښه یار دیدن راته له اقربا
یګانه له حقه دوست هم مې عزیز دے[2] | بیګانه له خدایه خوېش د زړه حبا
نا اشنا عزیز عقرب زړه ئې سیاهې دے | یګانه عزیز پر زړه وي سپین صبا
یاران کل یوازې جزو دے بې کله | جز بې کله دے عاجز غریب غربا
چې یوازې د دښنو په منګل کښیوزي | زړه ئې قبض کا دده ځان هم ئې عیا
د نبيّ مقصد دغه له معجز ي وُ | چې همراه د دین پر لار شي تقربا
سرې وارا سره و رونه عزیزان دي | د انسان مور د ه[3] حوا ادم جوابا
تحقیق ورور کنه هغه چې د دین مل دي | مومنان سره یو نفس په خوي ذیبا
چې په خوي حال یګانه صحبت ئې تل شي | که اغوستې یې عبا وي یا دیبا
هر یو کروه د خپل خپل کور پلور راغب وي | جنس د جنس په ځان شه کاه وکهربا
دهر چا په نظر خپل اهل مقبول وي | تل له غیره جنسه دي په زړه ابا
که مې زړه ورسره ورشي کله کله[4] | د خپل یار (ولي) دایم کورم دریا

ددولت ولي صحبت یو لوئے دولت دے
دمستۍ په دیدن مست شم بې صهبا
دا مخلص ئې له صحبته فائده مند شه
ښه یاران د دین اوتادي نقبا

---

[1] شما

[2] "یګانه لحق دوست همې مې عزیز دے"

[3] (د انسان مور دي حوا......)

[4] (د که زر ور سرور شي کله کله)

## درمعنیٰ بودم گنج پنهان، خواستم تا شناخته شوم!! جامهٔ نور محمّدی، که میم عبارت از ان است درپوشیدم

پهٔ معنیٰ ددې چې، زهٔ پټه خزانه وم ما وغوښتهٔ چې زهٔ دې وپېژندلے شم دمحمدي نور جامه مې چې میم دهغې نه عبارت دے واغوستې.

---

دا پهٔ میم له پټه ګنجه شو پیدا
له پوښښه پخپل نور باندې شیدا

پهٔ خپل نور کښې تمام غرق راغے حضور شه — دغه میم ئې شهٔ دذات نورې ردا
چې پلوله مخ درا کا مخ ئې پټ شي — پهٔ څادر کښې دے څرګند ه نن فردا
نن دمیم برقه ئې واغوسته ظاهر شه — بې برقه د مخفي ګنج پنهان سدا
ددنیا محبوب چې مخ پټ کا پنهان شي — دا معشوق دے پهٔ پرده کښې هویدا
دا پرده مثال آرسي مظهر دکل شهٔ — ذات صفات پکښې څرګند حبـ اجدا
پهٔ خپل زړهٔ کښې دې یو کوژ دوازه کوند — کهٔ دې محوه کهٔ تور ټکے شو پیدا
د زړهٔ تور ټکے کهٔ محوه کړې پهٔ ذکر — و مولا وته به بیا موسی پیدا
دکامل ذکر صیقل د زنګو زړونو — پرې[2] روښان کړه زنګ زده زړګے ګدا

---

[1] اصل: دا میولے وینم  [2] پې

پهٔ روښان زړګي معلوم پټ څني نهٔ وي[1] ... چي پري ورشي که نېک خوا دے یا عِدا
لو ئے حوم تخت دي زړګے دے بي ګمانه ... نوس شېطان پري (چري) مهٔ کړه کدخدا
دم لېنده ذکر کړه غشئے تل بئ وله ... هېڅ هتيار تېرهٔ بل مهٔ ګڼه ستر دا
نوس شېطان دواړه وښتهٔ دي له زړهٔ بالله ... دا حرم د وښته خلاص کړه زاهدا

د مخلّص خبره پند کړه کامل غواړه
ځان و مال کړه د کامل پر مخ فدا

★

د خپل يار صفت به کښم پهٔ خو ستړا
پهٔ هر هر لونه جلوه کا خودارا

د عاشق لهٔ هري ميني يي څرګند کهٔ ... پهٔ هر ځيز کښي خپل[2] ديدار پهٔ دوه سرا
له غيرت معشوقي غيري کل باطل کړهٔ ... پهٔ شين لوري شوه څرګنده نګارا
دبينا سترګي[3] (يي) ګوري پهٔ هر لوري ... نابينا سترګي يي نهٔ ويني شه را
دے فَاَيۡنَمَا تولوا[4] پهٔ قران کښي ... هم فَثَمَّ[5] وَجۡهُ الله دے بل ترا
کل مظهر د تجلّي دے چي ظاهر شهٔ ... پاس تر عرشه کوز تر زمکي تا ثرا
د عاشق پهٔ سترګو ګوري و خپل مخ ته ... کل اشيا د حق ارسي پهٔ دا صحرا

---

[1] (پهٔ روښان زړګي معلوم پټ ذبي نويے)

[2] پخپل [3] سترګي

[4،5] فَاَيۡنَمَا تُوَلُّوا فَثَمَّ وَجۡهُ اللّٰه ٥ البقرة ايت ۱۱۵

(تاسو چي کوم خواته مخ واړوئ هغه خوا به د خدائے مخ وي)

حق ناظر منظور څرګند دے په جهان کښې — د عاشق د معشوق تش نوم اختـــرا
عشق عاشق معشوق ځپله دے بېشکه — دے له غېره منزه شـه مبـرا
یخ بنګـې او وره مَظَر(۱) واړه پر خـه — کل او بـهٔ دي له کمـا سـه ماورا
یو لطیف دے کثیف شوے باور وکړه — چار عنصر دے (هم) داپاس ؟ ګردو نخضرا
د کثرت مثال شجر وحدت یې زړے — دے له زړي بناخ وګل بهـار سـرا

د مخلص په خوله ګویا شهٔ یقین وکـړه
خپل صفت کاندي ځپـــله څوتـرا

---

## د ربیان معنے این حدیثها که خیر الذکر ذکر الخفي ایضًا عامة الناس[۲] مرضي ایضًا لو کان لابن آدم وادیان من الذاهب یبنغی ثالثاً لا یملاء جوف ابن ادم الا بالتراب

---

دد ې حدیثونو په بیان کښې چې : بهترین ذکر خفي ذکر دے ایضًا عام خلق مویضان دي - ایضًا که چرې د انسان د سرو زرو دوه وادیانې وي نو ضرور به د درېمې لټون هم کوي - د انسان خېټه بغېر د خاورو نه نهٔ ډکیږي -

---

۱ ذي

۲ اصل : عامیون الناس

نن خاطر لهٔ زنګه خلاص کړه مصفا
بنه صيقل د کامل ذکر دے اخفا

ثو اذکر د خفي دې حاصل نهٔ وي[1] زنګ زده زړهٔ به دې نهٔ مومي صفا
عام بيمار کامل طبيب ذکر دواده[2] بې دارو به عاې نهٔ مومي شفا
چې په دا خبره شک کاندي کافر دے دا حديث دے له رسوله مصطفا[2]
بهترين ذکر خفي دے پهٔ افکار کښې خير د رزق پهٔ کل رزق کښې اکتفا
چې ئې رزق کښې زړهٔ پرېشان کهٔ باور وکړه چې پرې ډېرشي و رازق ته کا قفا
بهترين رزق پسندهٔ شي پهٔ جهان کښې چې د حرص د خواهش اور کا انطفا
زړهٔ غني پهٔ قناعت بې غم بادشاه شي پهٔ ډېر مال اسباب حريص شي پرجفا
دا سړے که دوه وادۍ له زرو ډک کړي بل به[3] دريم بيابان غواړي ضُعَفا
د سړي شکم به پرنشي پهٔ زرو تورې خاورې د بدنفس دي استکفا
پهٔ دنيا پسې ډېر مهٔ زغله حريصه دهٔ غلو ونکي دروغژنه بې وفا
دا پهٔ مثل د سايه دهٔ نيوه نشي[4] ګرځندۍ چې تر ابده پُر جفا

اے[5] مخلصه مخ پهٔ لوري د افتاب کهٔ
دا سايه به در پسې چي اطليفا

---

[1] اصل: مريضه
[2] اص: دي [2] رثو خفي ذکر د حاصل نهٔ وي)
[3] اص: بل دريم بيابان غواړي ضُعَفَا
[4] اص: دا بې مثل د سايه دي نيو نشي [5] اي

# درصفت باغ وحدت گوید

## د "وحدت" د باغ په صفت کښې

عجب باغ د ګلو جوړ شه یار زما[1]
په څو رنګه شهٔ ظاهر نګار زما

له وحدته د کثرت پر میدان راغے
سپین وتور زیړ وزرغون شهٔ یار زما

جلوه ګر شه و محب ته په څو لونه
د معشوق شي[2] دلربا دلدار زما

له غیرته یې کل غیرې بر طرف که
په شین لوري شه موجود ګلزار زما

د عاشق د معشوق نوم ئې پر ځان کښېښود
پر خپل ځان باندې شیدا انوار زما!!

چې روښان ساقي پیاله د وحدت راکړه
په زمان کښې شه زائل خمار زما

هر اشیا مثال پیاله د ه[3] د شرابو
د حق ذات پکښې شراب پکار زما

د پرهېز څوکه مې وکړه له کل غیره
د یار حب شهٔ په باطن زنار زما

شب وروز مې د آشنا په لور ځکوینه
د یار شوق شه کشنده مهار زما

د مخلص ئې د وصاله بهره مند که
پر مشتاق باندې مین دے یار زما

---

[1] خما [2] اص: عاشق [3] اص: دی

# في المناجات

## مناجات

نن توفيق د عبادت غوارم له تا
ته دانا يې سعادت غوارم له تا

ته رحيم يې بندګانو ته مادر يې
په هر کار کښې رفاقت غوارم له تا

لوئے بادشاه په دواړه کونه بخښنده يې
له دوو کونو فراغت غوارم له تا

زړه مې لوړ په لوړي ځانګي قرار نه کا
ته ساکن قراريت غوارم له تا

حاجتمند د حضورۍ يم راخبر يې
حق کريم يې زه حاجت غوارم له تا

ستا ديدن راحت بهښت د مومنانو
د مومن بهشت راحت غوارم له تا

چې عارف د هر اشيا په حقيقت شم
زه داهسې فراست غوارم له تا

عنايت د بې علته بادشاهۍ دے
بې سببه عنايت غوارم له تا

زړه په غېرې اند ښښنه نجس پليد شي
پاک طبيب يې طهارت غوارم له تا

چې په زړه ګګړهغ بزرګ شو په دوه کونه
ته باري يې کرامت غوارم له تا

نن زه طفل طريقت يم ستا په لار کښې
ته توانا يې بلاغت غوارم له تا

هر چې ستا پرمخ شهيد ته يې ديت يې
زه مشتاق يم شهادت غوارم له تا

قناعت[۱] ګنج د باقي دے په زوال[۲]
صاحب ګنج يې قناعت غوارم له تا

زه مخلص عاجز بيمار يم ته طبيب يې
نن صحت تل عافيت غوارم له تا

---

۱ د ........ بخښنده دي) ۲ اص: زوال

# دربیان ناشکیبائی عاشق ازلقائی معشوق

د معشوق ملاقات او د عاشق د بې صبرۍ په بيان کښې

زهٔ لهٔ عشقه بيقرار يم له دردمنو سره بيار يم
زهٔ هميش په زړهٔ خونخوار يم صبرڅهٔ غواړې لهٔ ما
زهٔ په هر سحر بيدار يم تل دايم دعشق په دار يم
څرګند کړونے د اسرار يم صبرڅهٔ غواړې لهٔ ما
زهٔ مشتاق ئن د ديدار يم طلبګار ستا د انوار يم[1]
زهٔ له شوقه بې اختيار يم صبرڅهٔ غواړې لهٔ ما
ته دریاب زهٔ دې بخار يم تهٔ باران زهٔ دې بهار يم[2]
زهٔ بې تا خاشاک وخار يم صبرڅهٔ غواړې لهٔ ما
تهٔ صاحب زهٔ خدمتګار يم تهٔ روښان زهٔ تورغبار يم
تهٔ طبيب شوې زهٔ بيمار يم صبر څهٔ غواړې لهٔ ما
تهٔ بادشاه عزيز زهٔ خوار يم تهٔ قيمت زهٔ بې مقدار يم
تهٔ نعمت شوې زهٔ نهار يم صبرڅهٔ غواړې لهٔ ما

---

[1] اص : ...... طلبګار ستا د کار يم )

[2] ( ته دریاب زهٔ د بخار يم ته باران زهٔ د بهار يم )

زهٔ ژوند مے پهٔ تا اظهاریم لهٔ دیٔ حاله خبرداریم
تهٔ دریاب زهٔ دې انهاریم صبر څهٔ غواړې لهٔ ما
تهٔ درخت زهٔ دې اثماریم تهٔ رحمت زهٔ دې جواریم
تهٔ استاد زهٔ ناهمواریم صبر څهٔ غواړې لهٔ ما
تهٔ رحیم زهٔ گنهکاریم شب وروز د نفس پهٔ کاریم
تهٔ غافر زهٔ امیدواریم صبر څهٔ غواړې لهٔ ما
زهٔ دایم زار وزاریم د هجران پهٔ درد گرفتاریم
زهٔ مخلص تل بیقراریم صبر څهٔ غواړې لهٔ ما
زهٔ خاکروب ستا د دربار یم د رتهٔ پروت لیل ونهاریم
تهٔ شراب زهٔ پرُخماریم صبر څهٔ غواړې لهٔ ما

د زړهٔ لار مې پوښیده وې پهٔ کرم دې کشاده کړه
بنهٔ توفیق لهٔ ما سره کړه پخپل ذات مې کړه دانا
د زړهٔ سترگې مې بیناکړه چې د استا ومخ ته گورم
ستا دیدن د زړهٔ راحت دے صَدَّقْنَا وَآمَنَّا

---

له دیده

چې بې تا په څو نوښيږي هغه کس به زر پښېمان شي
ستا ذات باقي دايم دے نور پرلار کښې دي فنا
چې عاشق دا ستا مخ شو کوے حال که په ميدان کښې
د هجران له اوره خلاص شو چې په ذات وکړه بينا
ستا ذات عظيم درياب دے پرهر لوري بې پايانه
منزه له شش جهته پرهر لوري شوه برهېبنا
ظاهر بين يې ليده نشي باطن بين وته څرګند دے
تجلي د دې بې مثله دا په زره کا سندي سنا
زړه بې مثله اينه دے مظهر د تجلي شه
حق دايم پرې تجلي کا دے زيبا منظر رعنا
زړه بې مثله لوے درياب دے بې پايانه لوريه لور دے
حق ځان شه په دا زړه کښې زړه يې جان مولا جانه
زړه قبه يې نوراني شو دے حرم عرش د رحمان دے
د لويو هر څه لوے وي زمکه کوزه پاس مينا
د زړه ترې لوي پورې اسمان څا ځکے په دريا کښې
په دواړه کونه سودا کاندي زړه بازار شه د مينا
من بازار يې دے جوړ کړے که سودا کړې وقت دې دا دے
بنه سودا يې د معرفت ده من له حقه شه اشنا

---

۱ اص : دی

۲ اص : ګوده

اشنايي به دې روزي شي ته پيرود پير کامل شـه
بې کامله به نهٔ مومې که سل کاله کـرې بډ هنـا
پير کامل د حق وکيل دے نن وردرومه تر کامـله
له مولا به دې اشنا کا کامل د پـير په د (توانا)

پر مخلص د حق نظر شه چې کامل پير ئې رهـبر شه
د توحيد پياله ئې ورکړه زړهٔ ئې تـل دايـم پرنـا

در بيان آنکه دل ادمی را در باطن معلم واستاد حق تعالیٰ است وانکه حق سبحانه میداند دل را از راه حواس پنجگانه وانکه دل بادشاه است عقل وزیراست وحواس وکانه سوبیگان است

په بيان د انسان د زړهٔ چې باطني معلم او استاد ئې حق تعالیٰ دے او داچې حق سبحانه د حواس پنجګانه په لار د زړونو خبر دے او داچې زړهٔ بادشاه دے او عقل وزير او حواس وګانه (حواس پنجګانه) ئې برادران اونقيبان دي .

زړهٔ ګويا خبره وائي په ځو بابـه
دے دانا شهٔ د مخفي ګنج له کتابـه

له اص : پوهيـد وتنـا

معلم ئې حق دانا دے ئې عالم کـه — لکه ویلبن چې اوده پاڅوي له خوابـه

ذره گویا له دانایی شه باور وکړه — دانایۍ د ذرې حاصله له لس[۱] بابـه

پنځه بېرون پنځه[۲] درون گوره لس واړه — ناصره شامه اوسامعه[۳] البابـه

ذائقه ،لامسه داپنځه ظاهر دي — د باطن حس دے خیال وهم زود یابه

حافظه ، مفکره ، مذکـره شـو — باطن د پوهې داپنځه اربابـه

هر هر یو د خپل عالم خبر راوړینـه[۴] — دے وزیر ته یې ظاهر کا بې حجابه

ذره بادشاه عقل وزیر حواس سرهنگ دي — داوزیر بادشاه خبر کا له خوابـه[۵]

حق له لسو بابو علم پرې نازل کـه — ځکه[۶] ذره ئې دانا کړے دے هر بابـه

روح وذره سره یو ځینې نامې ئې دوه شوې — لکه علم عقل یو فرق ئې کم یابـه

ذات صفات دي سره یو بیو رائې مه کړه — اوبه یخ دي یخ موجود گوره له آبـه

هستي علم نور ئې سر ظاهر باطن شه — ابر اب دے اب ظاهر شي له سحابـه

روح الطف لطیف مثال عالم ظاهر شه — کثیف تن موالید زېږي له ترابـه

د مخلص د ذرې پرده کړه کامل غوڅـه
حقیقت د اشیا گوري بې نقابـه

---

۱ اص : د لسدیاب

۲ پنځه ۳ اص : سمیع ۴ راوړي

۵ لذواب

۶ ذکـه

## درصفت هفت انواع دل که درمقصود المومنین پیر دستګیر اورده است

دَ زړهٔ داووهٔ قسمونو پهٔ صفت کښې چې پیر دستګیر پهٔ مقصود المومنین کښې ذکرکړي دي .

---

نن کامل لره ورددومه کامل وي کشف القلوب
دے اګاه شهٔ پهٔ کُل زړونو چې بنیا دي یا محجوب
اووهٔ شاني زړونه ګوره نن موجود دي پهٔ عالم کښې
یو مرده دوېم شه مریض سېهٔ دے غافل زړهٔ بې اسلوب
څلورم زړهٔ ترسندهٔ دے پنځم زړهٔ منیب تائب شهٔ
شپږم زړهٔ شهید لیدو نے اووم زړهٔ سلیم مرغوب
دا اووهٔ زړونه وګوره پهٔ قرآن کښې مرقوم شوي
مرده زړهٔ دکافرانو له امواته دي محسوب
داسلام دعوات وګوره غوږ ئې نهٔ دي اوریدلے
صمٌ بُکمٌ عُمیٌ واوره له کښو ړندو منسوب
مریض زړهٔ دمنافق شهٔ دنفاق پهٔ زخمٔ اخته دے
داسلام پهٔ زیادت کښې شي زخور عاجز مغلوب

منافق څلور ایاته دروغژن وعده خلافـــــه
امانت کښې[1] خیانت کا فحش ګوې ګوره معیوب

غافل زړهٔ دګناهګارو لهٔ غفلته ګناه کاندي
غافــل دل پیروي نهٔ کا زړهٔ یې تور پهٔ ډېر ډېر جوب

ترسنده زړهٔ دتقي دے دے لهٔ ویرې پرهېزګار دے
شرع بزرګ ګڼي د زوره زیات یې حب دے لهٔ منوب

منیب زړهٔ دذاکرانو تل یې شوق د دایم یاد ته
زړهٔ یې تل قرار پهٔ ذکر ذکر سور زړهٔ یې مرکوب

شهید زړهٔ دعارفانو تل لیدونې ومولا تـــه
دے دفــتر دمعرفت شهٔ دحق ذات پکښې مکتوب

سلیم زړهٔ د مخلصانو خلاص لهٔ شرکه لهٔ نفاقــه
غیر ورک شهٔ پاتو نشته محبّ[2] یو شه لهٔ محبوب

د مخلص زړهٔ یې سلیم کهٔ داګواهي کامل لو دے
پیر کامل مرید د رب شهٔ خاص پهٔ دهٔ ګوره مربوب

---

[1] اص : امانت کړ
[2] اص : محبت

## دربیان آنکه عطای حق تعالیٰ بي سبب وبی طلب است و طلب موجب استعداد است .

په بیان ددې چې دحق تعالیٰ عطا بې سببه اوبې طلبه ده اوطلب داستعداد په موجب دے

ذرهٔ مې خواست کاندې له ربه
لهٔ مولا نحنُ اقربه[1]

ددهٔ ودُکړه بې سبب دهٔ[2] امید پرې کړه لهٔ سببه
دچا ورکړه په طلب دهٔ[3] دے عطا کهٔ بې طلبه
بې صبرې سبب دخواست دے هم دورې ده له ادبه
دے واقف دذرهٔ په حال دے نهٔ چې ووځې[4] تر دوه لبه

---

[1] وَنَحْنُ اَقْرَبُ اِلَيْهِ مِنْ حَبْلِ الْوَرِيْدِ ۵ ق ایت ۱۶

[2] ر .......... بې سبب دي)

[3] (............ په طلب دي)

[4] اص : ورزي

موسی اور غوښت دهٔ نبي کـهٔ　　دا خبره ده عجبـهٔ[1]
عمر قصد د پیغمبر در　　خدائے ایمان ورکـهٔ اغلبـه
د حق کار کل بې علت شـهٔ　　آدم روغ بې ام و ابـه
حق پیدا تهٔ ځیل خواست کړي　　تهٔ بې خواست وي بې لقبـه
ستا عمل رزق ئې دے کښلے　　کهٔ نیک بخت یې یا عقربه
پهٔ عمل خوی نن خرګند دے　　د ازل ابـد منصبـه
د ازل د ابـد خبـره　　پهٔ دنیـا کښې مرتبـه
کل اقوال افعال ګواهي يي　　د زړګوټي لـه مشربـه
د بینا زړهٔ خبردار دے　　روځ روښانه ده لهٔ شبهٔ[2]
خوي بوي رنګ ئې جدا دے　　پهٔ عجم کښې له عربـه
څو پهٔ خوي سره یو نهٔ وي　　ناسته نهٔ شي لهٔ نسبه
ستا حشر به وي لهٔ جنسه　　نسب ګاندہ بې حسبهٔ[3]

دا مخلص ئې پهٔ قطـار کـړ
چې سني دے پاک مذهبـه

---

---

[1] (دا خبره دي عجبـه)
[2] (روز روښان دي له شب)
[3] (نسب ګاهند بي حسب)

## درصفت ذکر وکم خوردن وخفتن وکم باخلق بودن ودرصفت ذات باری تعالیٰ که دریای نامحدود است ودر صفت امواج اوکه جلال وجمال عبارت از ان است

د ذکر او دکم خوراک ، کم خوب او د خلقو سره دکمې ناستې .

د ذات باري تعالیٰ چې یو بې پایاوه دریاب دے او د موجونو په صفت کښې چې جلال جمال ترې عبارت دے

ن ته خواست کړه له حبیبه
د خوړن زړونو له طبیبه

بد غفلت رنځ اندېښنه ده
روغ به نه شې بې ترکیبه

لوے ترکیب ذکر دوام دے
که دایم ئې کړې لبیبه

د رنځور زړګي صحت دے
دایم ذکر له ترتیبه

له غافله پرهیز وکړه
بل ئې نه شي بې نصیبه!

کم خوردن خفتن اختیار کړه
په وطن کښې شه غریبه

پاس انفاس د زړهٔ ښنه کړه
زړهٔ پرې ژغوره له رقیبه

نوس شیطان په کورکښې غله دي
شه خبر له غلو نقیبه

خبردار د زړهٔ په ملک شه
اندېښنه کړه له جریبه

---

له اص :    له اص : بـلى

ذکر فکر دوه شهپر دي — پري پروان کړه عند لیبه
پاس د عرش په کنګره کښېنه — ای دحق په لور ساریبه
ذر منبرله غبره خلاص کړه — تل پرې ذکر کړه خطیبه
یخپل ذکر درست یقین کړه — حق هستي کښه قریبه
حق جوهر ته یې عرض يې — دے کاغذ ته پرې خضیبه
عرض رنګ مانند دخس شه — جوهر ذات بحر عجیبه
اول موج يې جان ستان دے — لوئے دریاب عظیم مهیبه
بل دووم موج يې جان بخش شه — دے صانع دریا عجیبه
جان ستان موج يې جلال دے — جمال موج جان بخش نجیبه

دا مخلص پرې معطر شه
دخوشبوی جمال له طیبه

## در صفت بیداری سحر و ریاضت و قناعت و مذمت حرص گوید

دسحر دبېدارۍ، ریاضت او د قناعت په صفت
او دحرص په غند نه کښې

خه لذیذ یې دسحر شرینه خوبه
عاشقانو په ځان تریخ کړې له اشوبه

له خه لذیذ دي دسحر شرین خوب

بېد اري د سحرګرانه سود ئ ډېر دے　　تزکيه تصفيه مهٔ غواړه پهٔ لوبه
د مردانو پهٔ دود چست پهٔ عبارت شه　　د کوشش لهٔ رنځه مهٔ کړه توبه توبه
تن پرور سړے مغلوب نفس پرې غالب دے　　دے د نوس پهٔ پنبت غواښه نفسي غوبه
چې د نفس پهٔ مراد ګرځي پهٔ هر لوري　　بد حريص پهٔ حرص خوارد ے له خاکروبه
غني دل سخي نعمت رازق د وچند کـه　　د حريص لئيم اوګره دے تـل دا زوبـه
دا دنيا مثال او بهٔ قانع پرې سېر شـهٔ　　شوم حريص تونګر نشـهٔ بې خړوبـه
مستقي د سيند تر غاړې تږے ګـرځي　　قانع دل پَر ذرهٔ سېراب ګوره پاى کوبه

چې لوٹے ګنج د قناعت ئ پهٔ لاس کښېوت
دُسعيد مخلص بخت نن ويښ شهٔ له خوبـه

---

# درصفت آواز انکه اقرب طريق الله سماع ودر معنیٰ اين بيت ۔

---

د اواز (سماع) پهٔ صفت کښې چې الله تـه (درسېدو) اقربه لار سماع ده
" السماع طريقة وصول القلوب إلىٰ قرب المحبوب "
سرود محبوب تـه د زړونو د نزدې کېدو لار ده " (خېرالبيان مخ ۱۰۱)

---

به آزر وی زیبا است آواز خوش
که این حظ نفس است واین قوت روح[1]

د آواز صفت به وکښم ښهٔ آواز دے دلفریبه
آوازونه کښې دي وتبع ته دا حسن اصوات لهٔ زیبه

د[2] دا ودله ښهٔ آواز چې اغاز ئې کړي لهٔ نیازه
غرونو او نو پهٔ جنبش کهٔ حیوان د پرمړه (به) بې جیبه

د صورت ښائست وګوره که زیبا مخ وي هرګوره
صبر درست لهٔ زړهٔ وانخلي آواز زړهٔ کا ناشکیبه

ښهٔ آواز د ارواح قوت دے ارواح طبر دلاهوت دے
اهبطوا[3] شه پهٔ ناسوت کښې خبر نه وُله پای شیبه

آواز سمه لار وحق ته کړهٔ شوي واحمق ته
د آواز کهٔ پیروي کا یا ربه بیا موېي لهٔ جیبه

ستا پهٔ تن کښې مخفي تار دے ښه آواز دده ګفتار دے
واړه حق غېږئ باطل دي پاس بالا هم کوز نشیبه

تار ناله دے دلو بے بحر ستا پهٔ تن کښې جاري نهر
کهٔ عارف د ژوند پهٔ جوی شوي ته به خلاص شي له عتیبه

تن د جوی سر حد دریابه ته به ورشي تر دریابه
کهٔ شي محوهٔ پهٔ دریاب کښې به فلاح شي له نهیبه

د کثرت ښائسته اونه پاني ګل شهٔ ښاخ لهٔ ښه
درسته اونه زرغونه شوه د وحدت لهٔ یوه سببه

دا مخلص وائی چې (راشه) دا آواز څښتن وګوره
دے بلبل هزار داستان دے هر آوازي دلفریبه

---

[1] ترجمه: د ښکلي مخ پهٔ نسبت ښهٔ آواز غوره دے ځکه چې هغه د نفس یو خوشحالي ده او دا د روح خوراک دے

[2] اص: دا داورل -

[3] قُلْنَا اهْبِطُوْا مِنْهَا جَمِيعًا ۚ فَاِمَّا يَاْتِيَنَّكُمْ مِنِّيْ هُدًى فَمَنْ تَبِعَ هُدَايَ فَلَا خَوْفٌ عَلَيْهِمْ وَلَا هُمْ يَحْزَنُوْنَ ٥ البقره ایت -۳۱

ترجمه :- اوکله چې آدم ته مې داحکم کړے وُ چې ددې ځائے نه کوز شئ د نو درسره مې داهم ویلي وو) که چرې زما له ارخه تاسو ته هدایت راغلو د نو دهغې پیروي کوئ ولې) چې کوم خلقو زما د هدایت پیروي وکړه نو پهٔ هغوي به نهٔ څهٔ یره وي اونهٔ څهٔ غم -

# في المناجات ګوید

---

نن د ذرې داناۍ غوارم له وهابه
له د بېښو رهاۍ غوارم له وهابه

چې څرګنده د اشیاء حقیقت کوردم — د باطن بیناۍ غوارم له وهابه
چې دریافت زه یې تسبیح دهراوان کړم — مدرکه شنواۍ غوارم له وهابه
چې ګویا په تسبیحات په مواعظ وي — فرقاني ګویاۍ غوارم له وهابه
په هر بوی چې شم اګاه مولا مې یاد شي — اینځنن بویاۍ غوارم له وهابه
چې ازاد د واړو کونوله سودا دي — هسې زړه شیداۍ غوارم له وهابه
په هر بوی چې شم اګاه مولا مې وهر شي — ازان څیز جداۍ غوارم له وهابه
چې فاني شي بقاۍ د ابد مو مې — د ابد بقاۍ غوارم له وهابه
چې هیڅ څیز مې په نظر کښې حایل نه وي — د وحدت هواۍ غوارم له وهابه!
معرفت د ذرې افتاب زړه یې روښن دی — د عرفان روښناۍ غوارم له وهابه
چې په خوی شي بناګسته بناګسته تل وي — زه خودي زیباۍ غوارم له وهابه

ګداۍ د حق په دَرلویه شاهي ده
د مخلص ګداۍ غوارم له وهابه

---

در معنیٔ آنکه آمدن مرگ ناگاه است باید که در جوانی تایب شوی توشه پرهیز بسازد آنکه دستک حاصل کند از علم توحید تا در راه بے خطر برود

په دې معنیٰ چې مرګ (یقیني دے) پکار دي چې سړے په ځواني کښې توبه ګار شي د پرهیز توښه جوړه کړي او د توحید د علم سند حاصل کړي چې په لاره بې خطره تېر شي -

مرګ به ورشي هر سړي لره ناڅاپه
په ځوانیه شه درست تایب کوڼ له پاپه

| | |
|---|---|
| د پرهیز طاعت توښه کړه ن حاصله | د رحلت په وقت به شوي له تاپه |
| چې فردا له تا پوښتنه د توحید کا | نن حاصل کړه د توحید دستک له چاپه |
| که دلي دي د توحید حاصل ونه که | د جهنم په اور به ویلي شې له سهاپه |
| یو تل یو د چا په کړه به نه یو کیږي | ته د پر یو کړه که مړه بې هاله لاپه |
| د اکثرت مانند ئې د دره اوبخ شه | لوئے وحدت مثال او به ګوړ سایه |
| د دانا کلام خالص زر دي باور کړه | که دې شک وي نن ئې وره تر صرایه |
| د کامل ازاد ونا په زړه ونغوړه | فرزند علم عقل بیا مومي له بابه |

پیر کامل حاذق طبیب ذکر دارو دي !!
رنځ زده زړه به دي خلاص کاندي له تابه
د مخلص نصیحت داد ے که یې آوري
بد همراه ورسره بد ګمنه له سایه

ـــ اص : ذلي

## دربیان آنکه نفس بے ریاضت سواری رایض ارام نمی شود.

تر څو چي د نفس بها ښکي ریاضت نهٔ وي شوے ترهغې پورې رایض پهٔ ارام سورلي نهٔ شي کولے.

---

نوس نا پخهٔ[1] بها ښکے دے تېزبه (يُ) نهٔ کاندي بي کېبه
د روزي رکېب (يُ) پهٔ خوله کړه چي پهٔ پراتهٔ نه کا تر پېه
سرلیه اموخته شوے ترې[2] تېز نهٔ دے لاندې شوے
روح شهسوار پرې باندې سوار کړه چي پرهې لورې کاربه
چي سوارکارۍ د تېزینه سم پهٔ لاربه هاله ځینه[3]
پهٔ رضا به د سوارکار شي نه پهٔ ښي زغلي نهٔ چېبه
تهٔ بې غم يې ناست مهٔ اوسه تل پهٔ وېره ځني اوسه
کهٔ يُ دار درباندې جوړ شي تا به واچوي پهٔ خرېبه
نوس د ښمن درته په څو دے که هادر دے ستاخهٔ بهو دے
کهٔ سر وخښې لهٔ امره سر يُ ووهه پهٔ زرېبه
د نوس چلې دي ډېرې ته يې کل کړه ترغوږ ستړی
پهٔ وښائي عمل مکړه دائي مرګ دے هم يُ تېبه

---

[1] اص : بهاڼ کېږي [2] اص : ستن [3] اص : ذين

دَ زړهٔ کښت ځني وږغوره لا د پرې بند کړه لور دلوره
نوس زيان کاره دي غوږ نهٔ کا د ايمان غَلَه سرکيږه
نوس بادشاه شيطان وزير دے زړهٔ نائب او روح يې مير دے
(ددوي) هر يو ښکر لرينه د دوي تل جنګ وي پهٔ کړيږه
د زړهٔ قوت حکمت عيان شهٔ د زړهٔ رزق ښت روښان شهٔ
د شيطان خوراک ګناه دے د نوس قوت د دنيا ګيږه
پهٔ خلوت يې اموخته کړه دے پهٔ نه نغوته خپه کړه
د تونګر صحبت ګرمي ده نوس تازه کا لکه سرپيږه
نوس نادان وړوکے تيږي چې څهٔ وګوري ځيږي
لهٔ خلقه يې ګوشه کړه رښا روح کړه پرې تورتيږه
د دنيا پر وړيه رغړي نوس نيموے نشي پرې پرېږي
چې روان حيښه پهٔ ستغ شي پهٔ ځائے وري تيپ تپه
دغه نوس زنګي مرييے دے پرې خدمت کړه ستا پرې ده دے
پهٔ خوراک يې صرفه مهٔ کړه کهٔ سستي کا کم تر ليږه
بله نفسک سګ ديوانه دے ستا پکور کښې هم خانه دے
مخلص وائي خوله يې بند کړه چرې نهٔ کا درته غپه

چې يې سګ ديوانه غپ کا دے لهٔ صافو او بو نږ کا
او بهٔ صافي د وحدت دي بهٔ يې چپ کړي د اور تيږه

---

¹ اص : دی

## دربیان آنکه لاف مردان مرد را دوا است که روح را غالب ونفس رامغلوب دارد

د مردانو لاپې هغه مرد له روا دي چې روح غالب اونفس مغلوب لري .

---

چې د نوس هوا يې زېر کړه په رښتيا ده[1] د مرد لاپه

چې پر زړه يې نوس حاکم وي ناروا ده[2] د مرد لاپه

چې د نوس ښکر زبون کا اومقهور شيطان مغبون کا

روح بادشاه په اندرون کا اوس زيبا ده د مرد لاپه

چې هوا يې ده امېره روح يې تل په زړه دنگيره

مرد ليه کړ څوي بديره ناسزا ده د مرد لاپه

د هغه چې نوس مجبور دے روح قاهر نوس يې مقهور دے

زړه يې ډک د حق په نور دے تل بقا ده د مرد لاپه

چې يې نوس شيطان شائع وي زړه ارواح به يې جايع وي

د نفسک توغ يې رافع وي کړ دهبا ده د مرد لاپه

---

[1] اص : دي [2] اص : دي

چې یې روح عزیز نوس خوار دے روح عشق نوس یې خمار دے
چې یې خولا ندې تر بار دے بې ریا ده د مرد لا پـه

چې شیطان ورسره مل دے چې ځان نه ژغوري اجهل دے
چې دا تنګ د ایمان غل دے نور خطا ده د مرد لا پـه

چې پـه امن ولاړ لـه سکـه کوے یو ړپـه د واړه جنګـه
چې یې ځان وژغور لـه تنګـه تر و صفا ده د مرد لا پـه

شیطان غنې دنیا جال دے ضعیف مچ پري نښتے حال دے
چې دے جال تـه بې مجال دے تښ اوا ده د مرد لا پـه

شهند نـه بندي ورو ره ددې غمې پـه حال ګوره
چې ازاد خلاص شي لـه دوره پس علیا ده د مرد لا پـه

مخلص وویل پـه زوره لـه شیطانه ایمان ژغوره
چې سالم ورشي تر ګوره بن فردا ده د مرد لا پـه

# في المناجات کوید

تـه ژغروے د مخلوقات یې ورسره پـه هر حالات یې
خبې غواړي لـه تا جاهه زه امان غواړم لـه پا پـه

تـه بیني د نیک وبد یې ما اګاه کړه تـه بیند یې
څوک ښنکر غواړي سپاهه زه امان غواړم لـه پا پـه

نوس لذت را یاد دینه بد شیطان مې ورلېږنه
نا صرنهٔ لوم الله زهٔ امان غواړم له پاپه

زما ځان دے ستا پهٔ لاس کښې ګناه ګاریم پهٔ کل ناس کښې
بې غایت لوم ګناهه زهٔ امان غواړم له پاپه

ځنې حور غواړي له خدایه څوک قصور چې دې بر پاپه
چا میوه کړه خاطر خواهه زهٔ امان غواړم له پاپه

ځنې مال غواړي له تا (هم) مهین اس زدین قبا (هم)
دائې خواست صبا بیګاهه زهٔ امان غواړم له پاپه

چې طاعت کهٔ نعمت غواړي ګنګاران پهٔ څه ویاړي
ددهٔ سود نشته بې راهه زهٔ امان غواړم له پاپه

زړهٔ بې غمه دنیا غواړي ګناه نهٔ کا دې ونغاړي
چې ګناه وینم پرکاهه زهٔ امان غواړم له پاپه

پهٔ ګناه مې خبردار کړه له غفلته مې بیدار کړه
چې زاري کړم هر پګاهه زهٔ امان غواړم له پاپه

تهٔ بادشاه لوے مهربان یې پر عموم باندې رحمان یې
لوے عاصي یم د درګاهه زهٔ امان غواړم له پاپه

نا امید له رحمه نهٔ یم ستا د رحم پهٔ کاته یم
پهٔ دا ساه یم نا ویساهه زهٔ امان غواړم له پاپه

---

اص : پرګاه

عمر دم په دم لمبیږي ګناه دوځ په ورځ زیاتیږي
په غفلت تېږي سال و ماهه زه امان غواړم له پاپه

ته دانا د زړه په حال یې هم واقف د خوله په قال یې
په څرګند پټ یې اګاهه زه امان غواړم له پاپه

زه درد من په ډېر ګناه یم شب و روز درته په آه یم
د ګناه به سیاهي سیاهه زه امان غواړم له پاپه

ته صاحب زه دې بنده یم ستا الله امر کړېنده یم
بل ځائې نه لوم پناهه زه امان غواړم له پاپه

ستا رحمت دریا عظیم دې د عاصي څه خوف و بیم دې
زما بس ستا یو نګاهه زه امان غواړم له پاپه

د مخلص خاست په اخلاص دې د اخلاص څښتن تل خلاص دې
دریا چارکل تباهه زه امان غواړم له پاپه

# باب التاء

## فی وصف الروح الجاری

### د "جاري روح" په صفت کښې

نن خبر شه د جاري روح له صفاته
دے په ذات عليم گويا دے له اصواته
دے بينا شنوا توانا سته بې گومانه
ارادت حيات اووه يې دي آماته
دا اووه د کل صفات يې امهات دي
فرزندان د ديو اووه دي بېغاياته
پنځه حس گوره درون پنځه بېرون دي
دا لس واړه د جاري روح مصدر کاته
چې په خوب کښې روح جاري ووځي له تنه
دا لس واړه ورسره يې کل حالاته

---

له اص: ووزي

روح مقيم پکښې مقيم علمي يُ نهٔ وي
بينايُ شنوايُ شي څښتني وفاته
روح جاري تمام صورت کوري په خوب کښې
ورسره وي د صفات هفت امهاته
رنځ راحت ورسره تل دي په هر حال کښې
ده تمام څره شعور دے دهر خيالاته
دا صورت په مثال کته نفس ده دے) مړزے
جاري روح باندې رنځ دے پوره کاته
تل د خوب په وقت روان په ويښه راشي
دا چلن د جاري تل دے تا امواته
چې دا مزې بريده ستون هدم شي
هر عنصر به وخپل ذات وته شي تاته
روح جاري يو دمثال عالم ته کوځ کهٔ
دوباره به بيا ورنه شي تر ساباته
کهي ګاه به يُ په وران محل ګذر وي
بنه ګذر په نبلے ميلے څو کراته
تن کوته د دم په ستن يُ ده ولاړه
روح جاري دکور ځښتن دے بې شبهاته

---

له اص : ذني ٢ه اص: دي ٣ه اص : دي ٤ه
٥ه اص : کوچ ٦ه شبهاته .

کور قائم پهٔ تیر و ستن ئې دے باور کـړه
دے ودان کور پهٔ سړي لهٔ کل آفاتـه
دا سړے روح جاری دے شک پرې مهٔ کړه
ذات صفات، نفس ځرکند دده لـهٔ ذاتـه
دے له امر شـهٔ موجود وجود ئې وینو
بقایې ده تـل ترتـلـه پـرې اثباتـه
دے پهٔ خوب کښې پهٔ هغه جهان ګـذر کا
د هغه جهان احوال وائي هرچا تـه
چې فـلانـه دے پـه دوزخ کښې ليدهٔ شوے
د فلانه نعمت حاصل وٌ لـهٔ جنـاتـه
د هغه جـهان تحقیق خـبر راوړے
چې فـلانـه پهٔ خوب کښې داویـل وماتـه
حق پهٔ هره شپه ارواح قبض کا خوب کښې
دا کلام دے ثابت شوے لهٔ ایـاتـه
خوب نغمه اول اعتبار کړه پـهٔ جهان کښې
ویښیدل ثاني نفخـه لـهٔ حشراتـه
مرګ ژوندون پـه لوے قادر هسې آسان دے
لکه خوب ویښوالے دے مرګ لهٔ حیاتـه
د غـه خوب مثال مردان دے باور وکـړه
ویښیدل ثاني نفخه (ده) لهٔ حشراتـه

دغه خوب مثال مړو دن دے باور وکړه
ویښیدل مانند محشر دي له مماته

و مخلص ته یې ترکند پهٔ هر اوان کښې
مرګ ژوندون حشر قیامت څو مقامات ــــه

★

لږ صفت به درته وایم لهٔ قدرته
ددې ذات مجهول النعت لهٔ صفته
چې پهٔ سترګو لیدهٔ نهٔ شي وصف ئې څهٔ کا
وهم فهم خیال قاصر لهٔ معرفته
ددهٔ ذات بیچون بې مثل لیدهٔ نهٔ شي
پاک لهٔ جسمه لهٔ جوهره لهٔ صورته
دسړي عالم تابع دَ معلومات دے
نامعلوم دریافت محال دے بې رویته
پهٔ قدرت پورې قادر ظاهر معلوم شه
دا قدرت ئې لوے ایات دي پورته ښکته

---

اص : کښته

پاس اسمان سابات ولاړ گوره بې ستنې
کوز و زمکه غولی روغ په څو صنعته
که اسمان ئې ښائسته په ډېر نجوم که
د زمین مخ په نبات دی پر زينته
د اسمان چراغ افتاب مهتاب څرگند دي
د زمین نبي ولي دي له حکمته
د نبي د ولي نور تر افتاب زيات دی
د عرفان روښنائي ډېره بې غايته
د افتاب مخ کله ووره کله تندر نيسي
د عرفان افتاب فارغ له کدورته
کل نجوم د اسمان لار ښائي پر زمکه
هسې نبي ولي د زړه لار کا وريته
چې د زړه پر لارې ځي مولا به مومي
وخالق وته لار نشته له جهته
زړه بې مثله بې جهته دی يقين کړه
دا بې مثله زړه لارنه کاندي غلته
زړه آلت د معرفت صانع ئې مه کړه
هيڅ صفت د صانع نه شي بې الته
د قادر د ښه صفت الت قدرت دی
ښه قدرت ئې ظاهر شه له ارادته

زړهٔ تجـير دلامکان لهٔ خـــزې زغوره
دين دنيـا د زړهٔ خزه دے لـهٔ زحمتـه
زړهٔ ميدان دمعرفت عرش دمولا دے
دے مخـلـص کهٔ پاکيزه له بجا ستـه

## دربيان حديث نبوی (صلی الله عليه وآله وسلم) حاسبوا قبل ان تحاسبوا ايضاً لايقبل عبادت عبد کلّها بغير معرفة -

نبوی حديث : د ځان محاسبه اوکړئ ددې نه مخکښې چې ستاسو محاسبه وشی ايضاً د بندهٔ عبادت بغير د معرفته نهٔ قبليږی.

---

دهر چا آخر دجود دے ويردان ته
عاقبت چوبدار حضور شي وديوان ته
کهٔ تهٔ اوس داخپل حساب کتاب درست نکړې
دانسته بلادې ورورسته و ځان ته
نن حساب ترحساب وړاندې وکړه دروره
په حشر (به) دېرحېران شې وميزان ته
نن داتله ترازو دي ستاپه لاس کښې[ل]
کهٔ عاقل يې (نو) ميل مهٔ کړه وعصيان ته
موتوا قبل انتموتو پېښ له مرګه
په دنيا کښې حضورې کړه وسبحان ته

---

ل اص: نن دتله ترآزو دي ستا پلاس کښې

کهٔ دلې دې زړهٔ اشنا نهٔ وي لهٔ حقه
پهٔ حشر حضوري ګرانه وسلطان ته
بې دید نه اشنايئ غېرې مسکن دے!!
حق پهٔ زړهٔ کښې مخ ځوګند کا وجويان ته
کهٔ دښتيا سره د حق شناخت دغواړې
نن ورددومه دکامل پير و دوکان ته
معرفت دحق حاصل کړه نن يئ دوځ ده
کهٔ فردا دې څهٔ حاجت وي ورحمان ته
تهٔ عرفان لره را غلې يې باور کړه
کهٔ دې شک دے نظر وکړه دقران ته
بې عرفانه عبادت نا قبول ګوره
کل سجده دې پهٔ باطن ده وشيطان ته
کهٔ پهٔ رسم عادت لغ کړې زنګونونه
بې کامله به ورنهٔ شې وعرفان ته
د صفات پهٔ معرفت مهٔ هوسېږه
ځو د ځان عرفان دې نهٔ وي وجانان ته
خدايې خوان پهٔ پورته نهٔ ددو مې يقين کړه
خدايې ځان پهٔ پورته ولاړشې واسمان ته

---

ٔ اص: روز

اوس دژبې ذکر وروله وزړهٔ ته
او د زړهٔ ذکر داخل کړه و روان ته
کهٔ انفاس دې نن داخل پهٔ عبادت کهٔ
پس هالهٔ کهٔ دې زړهٔ ورشي وامان ته
دغه زړهٔ مثال بهه الله پښنه یاد شو!
کهٔ يې چپ بورته جار باسي که راستان ته
خفي ذکر دې خردګاه د زړهٔ امان شهٔ
بې دوامه زړګے مشغلي این وان ته
اے مخلصه زړهٔ ارام پهٔ دايم ياد کړه
دايم ياد دے سمه لار کوره ین دان ته

---

## دربیان آنکه نفس خود فانی است وبنات حق باقی ازخود معدوم وبحق موجود وآنکه معدوم مطلق موجود معدوم نشود - وآنکه واجب چون شخص است وممکن چون عکس است و ممتنع چون ائینه است

---

نفس پخپله فاني دے او د حق په ذات سره باقي دے - پخپله معدوم دے او پهٔ حق سره موجود دے - او داچې معدوم مطلق او موجود معدوم کیږي نه - او داچې واجب په شان دسړي دے - ممکن په شان دعکس دے او ممتنع په شان دائيني دے.

---

ذرهٔ مې هر زمان کشش کا وجانانه
بنهٔ دیدن د ذرهٔ راحت دے وبینانه
ذرهٔ لطیف عکس پذیر دے باور وکره
دیار مخ پکښې لیدهٔ شي بې قنامته
لوئے راحت د حضور یه دے طلب وکره
تو دا بیه راحت ممکن نهٔ دے اشنانه
دانایانو د دوه کونو لذت ترک کهٔ
د دیدن لذت لذین دے ودانانه
دَهلک پهٔ دور پرهو زي زر لهٔ اَسه
کهٔ یک لخته جلب پرېږدي وفوس ته
کهٔ نفس[۱] بویې ومولانه وړاندې درو مې
دے پریشان درسن تاب درو یې وپس ته
هر زمان به دهو ذکر حُسنې اوري
کهٔ دَذرهٔ غوږ دې شنوا دے وجرس ته
دایم یاد بهٔ دې صالهٔ پر زرهٔ قرارشي
کهٔ یک لخته د زرهٔ خپټ کړې وهوس ته
روح پدر پسر د حق پهٔ لوري بولي
نوس مادر فرزند مایل کا وقفس ته
روح توتي[۲] مدام د روح[۳] پهٔ نور خوشېږي
د کور موش نفسک هوس یٔ دے دومس ته

---

[۱] نفس بوي

[۲] طوطي [۳] دریڅ - وریځ

من سلوىٰ نعمت ئې ترک کړ دموسیٰ قوم
مایل شوے وبقل بصل عدس ته
اے مخلصه من سلوىٰ دمولا ذکر
نوس ارزوکا د دنیا وخاروخس ته

---

## درصفت پاس انفاس و مذمت نفس حریص و مدح دل قانع

---

دَپاسِ انفاس (د هرې ساه سره د "الله" دنوم ذکر) صفت، دحریص نفس غندنه او دقانع زړهٔ مدح

---

کهٔ بیدار شې هر زمان وهر نفس ته
نوس شیطان غله به پرنځ وې وجوس ته
پاس انفاس به دې دایم د زړهٔ پهره کا
نوس شیطان به دې جاروخې وبلس ته
پنځه حسه پنځه لارې دي وزړهٔ ته
کهٔ دې بند کړهٔ سددې دوغ که ووسوس ته
چې قانع ته شې ټرګند دکلیم قدر
په هیڅ دود به میل ونهٔ کا واطلس ته

نوس حریص مثال عورته ده باور کړه
په سوځ زړه ئې ډېره مینه باورس ته
نوس طامع په ډېر زر خوښ صبر ئې نشته
دے پر زره کښې ډېر مایل تو نهه ولس ته
حریص دل په دواړه کونه خوار هلاک دے
قانع دل پخپل قصد نه ځي ونفس ته
ځان جهان ئې دخپل یار په مینه بایلو
له هستۍ یې ډېر مایل دے وفنا ته
د صورت په فنایيه کښې بقایي ده
دهستۍ له تیاره تېښتي ورښا ته
موتوا قبل ان تموتوا تش دوست گوره
ستا هستي خودي حجاب شو ورعنا ته
په نفي لا دې جمله هستي نیستي کړه
کړه اثبات دې کل هستي ورتښا ته
کل اشیا د ربنا په هستۍ مست دي
بې هستۍ دي دوان واړه ممنا ته
کل عالم مثال دے عرض دے ئې جوهر شه
هر یوه تکیه وروړے وتوانا ته
هر موجود له ځانه نیست په جانا هست دے
دے اثبات ثابت پرحق نفي له ناته

نیست معدوم موجود هرګز په عالم نشته
هست موجود قائم دایم دے واُنا ته

اے مخلصه واجب مخ ممکن شه عکس
ممتنع وجود آرسي معدوم جانا سته

---

## درصفت روح الامین اضافی وخیرگی چشم ابلیس ازمشاهده او وآنکه عبور کند طالب حق از برزخ صغرا که مرشد است وآن برزخ کبرا که محمد است

---

په بیان د روح الامین اضافي او دده د مشاهدې نه دابلیس دسترګو معذوري او دحق د طالب د برزخ صغرا نه چې مرشد دے او د برزخ کبرا نه چې محـــمد دے ، تېرېدل ۔

---

من طلب د پیر کامل و کړه نیک بخته
چې واقف شې د امین روح له نفخته

دا امین روح اضافي علیم حکیم دے!!
په دا روح شوه د ادم ورحئه سخته[1]

معلم د کل اسمار نائب د حق شه
شه مسجود د ملائک له تاج وتخته

---

[1] پدا روح شود آدم ورز تخت

دابلیس ناري نظر پر آب و گل شه
بې خبر د روح له ذاته دے یک لخته
د جان بینو سترګې نهٔ وې څکه روشنه[1]
بې بصرو د لطیف ارواح له رخته
نابینا د رڼا ورځې قدر څهٔ زده
پهٔ کور موش ده د افتاب روښنا یې سخته
چې کامل د هدایت افتاب څرګند که!!
شو پرک منکر ګوبنه نیسي د وخته
ترکبرۍ بوزخ به څهٔ رنګه تیرېږي
چې حیران دے د کامل صغرا برزخ ته
څو دا دوارِه برزخ طے نهٔ کا د وړاندې
ورته نهٔ شي د ولیانو وشمخ ته
د هستې بهشت به چرې ور څرګند کا!!
څو ورنهٔ شي د نیستیه و دوزخ ته
د کامل صحبت هغه مومي مخلصه
چې پهٔ خوي یارید یې شوي دي له بخته

---

[1] دجان بین سترګې نوي ذک روش

## در بیان هشت صفت که در مقابل هشت مقام است

د اتو صفتونو په بیان کښې چې د اتو مقامونو
په مقابله کښې دے.

مختصر کلام به وایم د کاملو له ملته!
چې په روح ئې رهنمائي شي لار به نه کاندي غلته
د کامل لار ده ځرګنده اے ددین په حال خورسنده
په دالاري به هغه ځي چې پرنوس ئې کښېوه لته
په دا لار اته مقامه چې ورځي ترخپله قامه
چې ترخپله ذاته ورشي دے به خلاص شي له فصلته
د توبې مقام اول دے لوئے تائب ادم مرسل دے
چې توبه یې شوه له غرو سته فلاح له خجالته
دا منزل د شریعت دے تائب پاک له معصیت دے
دادم صفي پر صف شه رهنما ئے شوله مضلته
عبادت دووم مقام دے دعابد بهښت انعام دے
په اخلاص دې عبادت کامخلص خلاص له ملامته
دا منزل د طریقت دے د مرسل افعال طاعت دے
دادریس په صف به پاخي شي ناجي له بطالته
دے دریم مقام د زهد دے دے سخت جبل دا احد
سته رسته چې پاس پرې وخوت د کافرنوس له صولته

حقیقت زاهد ذاکر دے چې له غیره کل طاهر دے
چې نفي يې غیرو غوځ کړه د نفي لا په صلته
دا منزل د حقیقت دے د نبیو بنه حالت دے
په حشر به له عیسٰی شي دے ناجي شي له غفلته
څلورم مقام د صبر دے شه ترینخ سکه د مصر
صابران به بلا خوښ دي فریاد نه کا له علته
دا منزل د معرفت دے په هر دال کښې یې رویت دے
په تېپه به د ایوب شي د صابرو له حالته
د رضا مقام پنځم دے راضي خوښ له بنادي غم دے
په قضا د حق راضي شه په راحت هم له ذلته
دا منزل د قربیان دے د قربت څښتن حیران دے
د موسیٰ په صف به پاڅي په دایم خوښ دے صلته
دے شپږم مقام د شکر لوئے نعمت دے دایم ذکر
د شاکر نعمت مزید شه دے شاکر صاحب دولته
دا منزل د واصلان دے د وصلت نعمت کلان دے
په تېپه به د نوح پاڅي حظ به موي له وصلته
اووم مقام د محبت دے محب تل خلاص له محنت دے
هره چاره په محنت کا خلاص د تن له خجالته
دا منزل د موحد دے موحد مخلص له ضد دے
دے په صف د ابراهیم شه نجات له جهالته

مقام اتم د معرفت دے دے مسکین په سکونت دے
چې قرار په سکونت شه ساکن خلاص شه له رحلته[۱]
د مسکین خوي د احد دے دے په صف د محمد صلی الله علیه وآله وسلم دے[۲]
له صورته گوښه شوے دے واقف شه له عزلته
د مخلص واڼې په زوره په غوږ واوره دیني وروره
دا عارف مسکین خبر دے د مرسلو لـه ملته

---

تل درویش فقیر بیدار وي وسحرته
په دا وخت فائده رسیږي واکثرته!
په سحر و دا درویش دي ودۀ مه شه
په دا آن د ېره زاري کړه و داورته

---

۱ خوي د احد : دا تخلقوا باخلاق الله ته اشاره ده . یعني په "خدایي اخلاص نما تخُل کېدل ."

۲ هر کامل عارف د حضور صَلَّی اللّٰه عَلَیْه وَآلِه وَسَلَّم کامل مظهر وي په هره زمانه کښې د هر کامل په صورت کښې حضور صَلَّی اللّٰه عَلَیْه وَآلِه وَسَلَّم ښکاره کیږي .
ډاکټر محمد عطا الله قادري ، تحقیق الامم فی شرح خصوص الحکم .

مخونه ۲۶۱ - ۲۶۳

تهٔ د زړونو ځنې غواړه کهٔ پوهېږې
پهٔ دا نور به ورځوکندشي وراندې بېرته
چې يو ذات اول اخر ظاهر باطن دے
وراندې دوستو بنسي وکيږې کوره مخ ورته
ته نظر په نورالله کړه پورته کښته
دحق نورګوره پر نور مهٔ ګوره چرته
څو دحق نور دې دليل نهٔ شي دلارې
دحواس پهٔ نور به نهٔ رسې دلبر ته
دا حواس مثال چراغ عقل کوکب دے
دحق نور مثال افتاب ګوره نظر ته
چې افتاب دهدايت پورته وخېژي
لوړ ژور تو رسپين ظاهر شي وبصرته
شريعت مثال دشپې طريقت ستورې
حقيقت مثال څرګند دے وقمر ته
معرفت مانند دنمرشه پهٔ جهان کښې
دا مثال دے ظاهر شوے وسرورته
دکوډ موش نښان څرګند دے کهٔ ئې ګورې
چې پهٔ توره شپه وي خوښ نهٔ دروي نمر ته
بنهٔ رسول وېيل زيان کارهغه سړے دے
چې هر روح ئې ترقي نهٔ وي باور ته

لوئے عاقل سړے هغه دے که باور کړې
چې له لوي ځایه هغه کا بادر ته
چې ناسوت مقام ئې نوښ لاهوت ئې ترک که
د احمق سړي تمثیل کینږي وخر ته
چې د دوو ښو تر میان فرق وکا عاقل دے
د ښه بد تر میان تمیز شته وبېشتر ته
شریعت مثال شوده ناسوت ئې طفل
د عارف په اورنهي بلنبے پروت مادر ته
ظاهري علما مادر عوام ئې پے ښنبي
د مړو خبري څه کړي شیر پرور ته
وبالغ ته د محبوب له مخه وایه
د هلک مینه له شیره یا وغر ته

اے مخلصه شو پرک له نمره تښتي
شا توتي عارف هوس کاندي ونمر ته

---

## دربیان پوشیدن صلاح باطن وکرفتن سلاح از دست شیطان

---

په بیان د باطن د نیکئ د پټولو او د شیطان
د لاسه د وسلې اخیستلو ۔

---

هر نفس لار ده څرګنده وبېچون ته[1]
چې پر لب د نهر چې ورشي جيحون ته
دغه تګ د ذرهٔ په پلنبې دے که روان شي
د صورت لار ده بسته واندرون ته
ددې لارې غولان ډېر دي که باور کړې
د سالک ده ناچارې و رهنمون ته[2]
يو شيطان د لارې ښګ بل يې نوس غل دے
همېشه په لار [illegible] درځه و مغبون ته[3]
په دا لار يوازې مه ځه بې رفيقه
ښګ رهزن دي انتظار دے وبېلتون ته
که جدا شوې له ياراڼو ځان دې بايللو
دښمنان درته په څو دي ستا وخون ته
صبر کوه تقوىٰ دې ذغره شرم خول کړه
دا روژه دايم سپر دے وملعون ته
هر زمان توبه لينده استغفار غشي
رښتيا توره کبنيده اهل قارون ته
اخلاص توغ د شپې قيام يې وبنه فرس دے
د خداے ويره دې نېزه ده وهارون ته

---

۱ هر نفس لار دي ......"
۲ د سالک دي ناځاري ......"
۳ همېشه پلار ها ورځ د مصبون ته."

پاس انفاس (ئې) نګاه بان کړه ځان پرې ژغوره
امر نهي دې ښنکر د ښنښه مقرون ته
د قران لوستن باز و دے ستا په ځ کښې
او مداد له حندايه غوښت جمله مجنون ته
چې دا وره وسله واغوندې مسلح شې
د شيطان ښنکر به مات کړې وبيرون ته
له شيطانه وسله رانسه که مرد ئې
خندئې هم مرني شې وزبون ته
بدګمان ئې ده لينده کينه يې ژيه
جاسوسي دې بدګفتار غشي درون ته
او غضب ئې دے ګوزار پر سرې باندې
دے فساد ئې دسپېدل آدم بنون ته
په فساد کښې غم اندوه ترمېنان پيدا شي
د سرې اندوه بنادې شې بدشګون ته

اے مخلصه نوس شيطان دې لوے دښمنه دے
پناه ور وړه په هر دم کن فيکون ته

---

[1] اص: خندی

## در صفت دریائے عظیم و احاطه او مر انسان کبیر وصغیر را و آنکه شناخته شود اشیا بضد او

دعظیم دریاب او دهغه د احاطې په صفت کښې کوم چې دکبیر او صغیر انسان سره مخصوص ده - او داچې څیزونه پخپل ضد سره پېژندے شي -

زه حیران یم و عظیم دریا کبیر ته
رسیدلے وانسان کبیر صغیر ته
دے دهر حیوان ژوندون هم اب وخورشي
دحیات دریاب ښکند دے وبصیرته
دلطیف دریا لیدهٔ د زړهٔ په سترګو
د سر سترګې دي بینا ظاهر منیرته
که د زړهٔ سترګې بینا غواړې له خدایه
نن وردرومه دے بینا روشن ضمیرته
د مرشد تلقین توتیا د خیره سترګو
د زړهٔ سترګې پرې روښانه کړه نظیر ته
که روښانه دې شي سترګې وبه ګورې
یو لطیف دریا محیط ګدا امیر ته
دے دهر اشیا باطن څیز یې ظهور شه
دبینا سترګې یې وینې پټ ضریر ته
کل ظاهر دباطن ضد دے که باور کړې
ضد له ضد ده دے ښکند بینا خبیر ته

باطن پټ دی په ظاهر پوري معلوم شه
شپه له روځي شوه څرګنده دل منیر ته
کُل ظاهر دي له باطنه موجود شوي
باطن تور يي ظاهر کښل ښکاره فقیر ته
ظاهر بخ باطن اوبه دي بې ګمانه
کثرت یخ وحدت اوبه ظاهر و پیر ته
د باطن وحدت تمثیل ګوره د غوړو
د ظاهر کثرت مانند کیږي وشیر ته
مخلص وائي د کامل صحبت کیمیا دے
ن د ا بيس صورت زر د ورړه اکسیر ته

---

**دربیان خواطر نفسانی وشیطانی که نتیجه وصف جلال است وخاطر ملکی وروحانی که فیض صفات جمال است وآنکه مقام موحد کرسی است ومقام مسکین عرش است .**

---

د نفسياني او شيطاني زړونو په بيان کښي کوم چي د جلال د وصف نتيجه ده او د ملکي او روحاني زړه په باره کښي کوم چي د جمال د صفت فيض دے - او دا چي د موحد مقام کرسي ده او د مسکين مقام عرش دے۔

---

زړه مي ډېره کاندي ځله دل آرام ته
دل ارام موندل موقوف دي و دوام ته

دوام ذکر قراري نهٔ کا پر ذرهٔ کښې
اندېښنه پهٔ ځائے پرېږدي ومقام ته
دغه ذرهٔ مثال دریا فکر يې موج شه
دایم موج کهٔ قرار نهٔ شي صبح وشام ته
دا امواج دي څلور قسمه باور وکړه
دوه جلال دوه دجمال دي وانام ته
د جلال امواج دنفس شیطان وسوسٔه
دملک دروح خاطر دلیل الهام ته
دجمال ظهور ملک ارواح دي واوره
ذرهٔ هر دم پهٔ دم لېږي دارالسلام ته
دا وحدت دارالسلام دے کهٔ داخل شوې
له نقصانه دې قدم کښېښو نظام ته
دجلال ظهور دنوس شیطان عالم شه
یو ګناه وته لېږي بل وحطام ته
چې پهٔ نغوته دجلال دې بشکته[۱] ولاړ شه
دجمال پهٔ امر دے خېژي وبام ته
لوئے وحدت داسمان بام وکرسي غوځے
عرش الله بام وکرسي دیسل انجام ته
ده[۲] کرسي دبهشت غوځے عرش يې بام شه
دساکن مقام پاس عرش پېټ دے وعام ته

---

۱ اص: کښته    ۲ اص: دي

غافل عام و کالانعام شه نهٔ پوهیږي
ډېر حیران دے د عارف د قیق کلام ته
د معنیٰ د څښتن ډېر لذیز لګیږي
سخت و تلخ لګي په وړکی طفل خام ته
د عارف په کلام دا دانا خوښیږي
چې ئې علم رسېدلے دے تمام ته
د ظاهر د باطن علم باندې کښلے
د مخلص د زړهٔ تمثیل دے جم و جام ته

---

## دربیان آنکه عذاب خدائے را واصلان دانند والم دوریوا قریبان دانند که میدانند

---

په بیان د دې چې د خدائے په عذاب واصلان پوهیږي او د دورې په تکلیف قربیان پوهیږي ځکه چې دوي په دې پوهیږي -

---

زړهٔ مې ډېره وسوځیده لاندې حبیب ته
د رنځور په دور مشتاق دے و طبیب ته
بنسهٔ دیدن ئې د رنځور زړګي دوا ده
شب و روز ئې منتظر یم و ترکیب ته

چې مانع شه د شرين اشنا له مخه
هر زمان مې اه سرد وي ورقيب ته
لوئے راحت دې حضورې ده باور وکړه
دګل مخ خوشبوئ بهشت دے عندليب ته
بد عذاب دې جدائي ده پناه غواړم
هر ساعت ډېره زاري کړم د مجيب ته
بعيد انو دا عذاب نهٔ دے ليدلے
د دورئ عذاب ښکاره دے وقريب ته
ناداني کوره لوئے رنج نادان پرې خوش دے
د نادان عذاب ښکاره دے وليب ته
که سپاهي شي خوارنقيب دائ خوارې ده
د سيس عزت خوارې دهٔ ونقيب ته
اے مخلص د دوزخ تر عذابو سته
د حجاب عذاب بهتر دے وجيب ته

---

ك اص : دى

کهٔ پهٔ دا حیات خبر شې له دلدار تهٔ
پهٔ هر چا به مهربان شې تر مور پلار تهٔ
کُل اشیاء د حق مظهر پکښې جلوه کا!
پهٔ هر څیز کښې به څرګند وینې خپل یار تهٔ
پهٔ څو اناو کښې ظاهر پټ شه پرا کښې[۲]
پټ څرګند به اشنا ګورې بې غبار تهٔ
عارفان پهٔ هر اشیا کښې اشنا وینې
کهٔ عارف یې غبن[ي] مهٔ ګوره نظار تهٔ
د دنیا ځوانۍ بنایُست د نماز دیګر دے
پرې مغرور (مه) شه څرګند دایم زنهار تهٔ[۳]
د بنایُست افتاب به زر سر پهٔ غروب کا
پهٔ ځوانۍ شه لهٔ مقصوده برخوردار تهٔ
بنهٔ مقصود دے معرفت کهٔ ئې حاصل کړې
چې فردا پهٔ حشر نهٔ شې شرمسار تهٔ
د اشنا پهٔ اشنا د پر مهر پیدا شې
کهٔ عارف شې حق به مومې هم ګلزار تهٔ
کهٔ عرفان غواړې کامل لره ورد رومه
شب و روز کړه د کامل صحبت اختیار تهٔ

---

[۲] اص: پخواناو کښې ظاهر پټ س پیر کښې
[۳] اص: بې مغروره ش څرګند دایم زنهار تُ

د کامل خدمت په ځان په مال ئې هم کړه
سر و مال کړه د کامل په مخ نثار ته
معرفت دې سرمایه سود دې لقاشه
په جهان کښې یې راغلي په تجارت ته
که ضائع دې سرمایه کړه په دنیا کښې
پس له مرګه امید مه کړه د دیدار ته
دا دنیا ئې زراعت پټي دي وار وه
په قیامت کړ له چرې شې هوښیار ته
که دلې دې شه زرغون د عرفان تخم
په فردا به ئې په روخوري د بر اثمار ته
معرفت په مثال تخم د لقاشه
بې له تخمه به حاصل نه کړې هیڅ بار ته
په دا عالم معرفت څه لره نازیږي
په تقلید به روزي نه کړې یارغار ته
بې لیدله د ذره یقین نه شي باور کړه
په دنیا کښې ئې حاصل کړه د شه یار ته
په جهان کښې د حق دید د ذره په ستر ګو
پس له مرګه به دوست وینې اظهار ته

اے مخلصه حضوري له خدایه غواړه
چې داخل شې د خاصانو په قطار ته

در صفت بیداری شب خصوصًا ہنگام سحر و در منفعت ذکر خفی و مجاهده نمودن با نفس کافر و در معنے حدیث لا یسعنی فی الارض وَلا فی السماء ولکن یسعنی فی قلوب المؤمنین ه

---

پهٔ صفت کښې دشپې دبېدارۍ خاص کر دسحر پهٔ وخت او دخفي ذکر پهٔ فایده کښې - او دکافر نفس سره مجاهده کښې - او ددې قدسي حدیث پهٔ معنیٰ کښې چې — زهٔ پهٔ زمکه او آسمانونو کښې ځائے نهٔ شوم خو دمومنانو پهٔ زړونو کښې ځائے شوم -

---

کهٔ پهٔ هره شپه بېدار وسې سحر تهٔ
روښنائی به دې زړهٔ بیا موقي اکثر تهٔ
پهٔ خفي ذکر مشغول اوسه خوب مهٔ کړه
دفقیر خبره وا زمیه دا ور تهٔ
نن کوشش جهد اختیار کړه پرنوس باندې
دسحر خوب پرې حرام کړه پر کافر تهٔ
کم خوردن خفتن اختیار کړه کهٔ طالب ئې
کم گفتن خلوت فائده کړه بېشتر تهٔ

د غافل سړي صحبت د زړهٔ سیاهي ده
د غزلت ذکر په زړهٔ کړه منور ته

کهٔ د زړهٔ ارسي روښانه کړې په ذکر
د یار مخ به پکښې ووینې اظهر ته

زړهٔ ارسي اندېښنې زنګ دې کهٔ باور کړې
د پېټ ذکر په صیقل یې کړه مظهر ته

چې د زړهٔ مخ دې صفا کدورت ورک شي
دواړه کونه به پکښې ګورې انور ته

زړهٔ بې حد لطیف دریا ګوره بې مثل
دواړه کونه یو حباب وینه اصغر ته

تر بې حد پورې د حد مقدار څرګند دے
کل عالم پکښې ذره کښه لر بر ته

د بې مثله زړهٔ صفت به درته څو کړم[1]
پکښې ځاے ګوره د دوو کونو داور ته

کهٔ بې مثل زړهٔ دې پیا موند صاحب دل شوې
دا د غوښو زړهٔ په زړهٔ مهٔ کړه باور ته

دا د غوښو زړهٔ پهٔ هر حیوان کښې زوړند
په دا زړهٔ نشوې تر نور دم دار بهتر ته

---

[1] اص : دا تمثیل زړوې صفت څو کړم -

که طالب یې د لوی ذړهٔ خبر ي واوره
د کامل په لوري ور وکړه سفر ته
د مخلص نصیحت ونغوږه نیک بخته
د کامل په تفحص شه در په در ته

---

د دین بخره به حاصل کړې په کمال ته
که د مال په ورکېدهٔ نه شې ملال ته
که د مال په بیا موندل نه هوسېږې
په زوال به یې بیا نهٔ مومې کوشمال ته
که په تلهٔ ورتلهٔ دې زړهٔ په یوهٔ حال دے
بختوریې خوښ به وسې په هر حال ته
د کافر عزیزی مال خوار دے بې ماله
د مومن خواري ګناه ګڼه وبال ته
چې په مال به ځان عزیز ګڼې کافر دے
د مومن عزت ایمان ګوره وصال ته
د دنیا په کمېدهٔ د دین زیاتے دے
او نقصان ګڼه د دین زیاتې د مال ته
د دنیا خواري اسانه تلهٔ یې ذر دي
د عقبی د خوارید مهٔ ګڼه زوال ته

د دنیا راحت د خوب دے زر به ویښ شې

اے د خوب په راحت مه شه ډېر خوشحال ته

دنیا یو ساعت ویلې پېغمبر دې

دغه لږ زمان اوږد مه ګڼه الحال ته

اوږد د امید پرېکړه له ځانه حریص مه شه

په څلور لینده ناست ګوره قتال ته

په فرمان یې دے ګوزار خطا به نه شي

که په کوټ زغره وې پټ یا له جبال ته

که په تښت ګرندے تښتې خلاص به نه شې

که له ډېره وېره وکړې پروبال ته

که یقین دې په مرګ شته امید کوتاه کړه

په لږ عمر قبلوې ولې جنجال ته

تونګري په ښه عمل یا په یقین ده

غني مه ګڼه سړے په ډېر اموال ته

مال تر مرګه پورې مل یاران تر ګوره

د سره ګڼه په هر حال کښې اعمال ته

ښه (عمل) به د سره په ښه صورت وي

بد عمل د سره وګڼه دجال ته!!

که دې نن په دا خبر باور وُ نه شي

پس له مرګه به یقین کړې دا اقوال ته

بیا هالهٔ کهٔ ډېر ارمان کړي سود به نهٔ وي
پهٔ حیات د ذرهٔ تصدیق کړه دا مقال ستهٔ
د مخلص خــبره پند دے لهٔ قرآنــه
مهٔ یېږ ګوره د شاعر وقیــل وقال ته

---

**دربیان ایت: اللّٰه نورالسمٰوٰت والارض** (سورهٔ نور ایت ۳۵)
**وفی حدیث قدسی (انا مکان المکان لیس فی مکان) درآن چیزی که خدا نباشد آن چیز هم نباشد**

---

په بیان دایت: اللّٰهُ نورالسمٰوٰت والارض (سوره نور ایت ۳۵
قدسي حدیث: زهٔ د ټولو ځایونو مرجع یم بیاهم به کوم ځائے کښې وسېد ونکے نه یم په کوم ځیز کښې چې خدائے نهٔ وي هغه ځیز هم نهٔ وي-

---

کهٔ دې ګورم پهٔ هر ځیز کښې یې عیان ستهٔ
د بینا وته حضور په هر مکان ستهٔ
نهٔ پهٔ هر مکان موجود مکان پهٔ تا کښې
لامکان یې مکان نهٔ لرې سبحان ستهٔ

تهٔ ظاهر ترهر ظاهر یې وعارف تهٔ
او باطن دهر باطن جان جانان تهٔ
زرهٔ پهٔ تن کښې روح پهٔ زرهٔ کښې موجود شوے
پهٔ لطیف ارواح کښې پټ په سر پنهان تهٔ
هر اشیا دې اینه پکښې ځرګند یې
هم پکښې هم ترې چاپیره درخشان تهٔ
هغه ځیز وي هله ځیز چې پکښې ته وي[1]
موجود نشته چې پکښې نهٔ وې تابان تهٔ
لهٔ غیرته دې کل غیري پر دوهٔ[2] کښېښو
یو الله یې په دوو کونو کښې سلطان تهٔ
تا الله نور د اسمان ګورم د زمکې[3]
شوې ظاهر کوز په زمین پاس په اسمان تهٔ
ستا پهٔ نور ګورم ځرګند زهٔ پورته ښکته
ناپدید شي کهٔ یو دم (له شي) پنهان تهٔ
د ستا نورګورم هستي عالم پرې هست دے
یې بېشک دکامل ژوندٔ[4] بحرالحیوان تهٔ

---

[1] اص : هغه ځیز ځیز پاتې نشي چې پکښې دي
[2] اص : دو
[3] اَللّٰهُ نُورُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ۚ النور - ایت ۳۵،
[4] اص : ژوندون

پرورش دکل عالم کړي هم يې ژغوري
کل عالم دي رعيت شهٔ جهان بان ته
نوس شيطان کوره دښمنه راته په څودي
خلاصئ چري که مي نشي نگهبان ته
دغفلت په رنځ رنځور زړکے فرياد کا
لوئے طبيب يې دخوږ زړهٔ لوي درمان ته
ستا رحم غالب پر قهر دے رحيمه
پر مخلص شوي په دووکونو مهربان ته

---

## دربيان صفت قدرت حق و ظهور او در عاشق و معشوق ۔

---

دحق دقدرت او په عاشق او معشوق کښي دهغهٔ دظهور په حقله ۔

---

بنا ستہ انسان پيدا کړي له علق ته
څهٔ عجب يې ښهٔ صانع حکيم مطلق ته
هر اندام دي دے له ميني موجود کړي
پر اوبو يا دي نقشونه کړي الحق ته

---

ك اص: خلاص چرکه مي نشي نگهبان ته

پاس اسمان دې په هوا کښې معلق که
پر اوبو باندې ذبر کښېښ دې طبق ته
کوه قاف دې کړه حصار زمکه پرسنا کښې
کړې چاپېر[1] تر کوټ عظیم دریا خندق ته
پر اسمان کښې دې افتاب چراغ روښان که
په گردش یې کړې دنیا کښې غسق ته
سپین نور دې بنا ښته د سحر وقت که
د نما ښام خوبي ظاهر کړې په شفق ته
د قدرت لاس دې په هر چار غالب دے
د نبي په اشارت کړې قمر شق ته
ته قادر شاهان تر تا پورې عاجز دي
د نمرود د سر ما غزه خوروې په بق ته
سرے ظلم پخپل نفس کاندې ظالم دے
بنه عادل یې ظلم نه کوې ناحق ته
د خزان په باد شجر کړې بې ورقه
د بهار په باد ور واغوندې پلمق ته
وا ره ستا په هستۍ کوبې پورته بنکته
په دریاب باندې دوان بیایې زورق ته
د خوبانو په لباس کښې زړونه نیسې
کجک زلفې کړې پرمخ باندې و بق ته

---

[1] اص : چوپېر

کله جلال کله د جمال موج پرې نازل کړي
لټ پلټ يې اړوي د ذره ورق ته
کله لباس د مجنون واغوندي عاشق شي
کله د دبر کړي د ليلى صورت قرطق ته
د عاشق معشوق سر ده لوا وړاندي
د مخلص ته ښوې څرګنده عذرا وامق ته

---

حديث قدسى : فَيَنبَغِىْ اَنْ يَذْكُرَنِى بِالوَاحِدِيَةِ كل اِنْسَانٍ احَدٌ، قول مشائخ : وَفِى كُلِّ شَيئٍ لَهٗ آيَتِه تَدُلُ عَلٰے انه وَاحِدٌ .

---

حديث قدسي : مناسب ده چې هر انسان په يو والي (توحيد) ياد کړي او ماله صفت د احديت راکړي .
د مشائخو قول : په هر څيز کښې د الله تعالی شان دے . دا (شان) په دې دلالت کوي چې الله يو دے .

---

هر نقش که بر تخته هستی پیدا است
این صورت آنکس است کین نقش دراست

---

هر هغه نقش چې خیــله هستي لري دا هغه
کس صورت دے چې په دې نقش کښې دننه دے

---

دشاهد شهود حضور که دې نظر شــته
دے نقاش له نقشه یو که دې باور شــته
کُل ظاهر یې له باطنه ظهور شــوے
یو لطیف ګوره لطیف کثیف اظهر شــته
په ګمـان سرے سرے دے که باور کــړې
یقین راوړه په ګمان کښې دې ضرر شــته
دانقاش ګوره مصـدر دکُل نقشـونو
په نقشونو کښې ظاهر ګوره مصدر شته
کُل نقشونه له نقاشه ظاهـر شـوي[۱]
دنقاش په ذره کښې هنر هسې هنر شته
په کُل نقش کښې نښانه دنـقاش ګوره
په هر څیز کښې ایاتونه داکبر شته
هر ایت ګوره دلیـــل داحدیت دے
دسـړي دپاره هــر هسې رهبر شته[۲]

---

۱ اص : کل نقاش نقشون له ظاهــر شوي
۲ اص : دسړي دپاره هونبره هر هسي رهبرشت

انسان لوئے نبنان رهبر دے که یې کوری
په سری کبنې د مولا ظهور بشتر شته
حق په خپل صورت روغ کړے دي باور کړه
د احدیث مې لۀ رسوله (صلی الله علیه وآله وسلم) معتبر شته[1]
د انسان په لیدۀ ذات د مولا یاد کړه
د مولا د ذات څرګند انسان مظهر شته
مفلسان د خدائے پۀ امر دي باور کړه
له سارقه ویره (ته) کاندې چې زر شته
موتوا قبل ان تموتوا وصال غواړۀ[2]
د وصال امید غلط دے څو دې سر شته
خپل وجود عظیم ګناه ګڼه بې قیاسه
تر دا لوئے عظیم ګناه دیګر کمتر شته
پیر روښان د توحید ونه د ه باور کړه
دے مخلص ثمره ددې ونې ثمر شته

---

[1] حدیث شریف : خَلَقَ اللّٰهُ اٰدَمَ عَلٰی صُوْرَتِهٖ (انسان خدائے خپل صورت پیدا کړو.)

[2] امر : موتوا قبل ان تموتوا تش وصال غواړه

د دنیا په دولت ډېر عالم خوشحال شته
په خوښۍ پسې یې زر قریب زوال شته
د اوو رو په سایه څه لره خوښېږې
د اوورو د سایې تګ رفتار درحال شته
د دنیا په دولت ډېر عالم غولېږي
چې زما د دولت تل سره وصال شته
عاقبت پرې باندې مرګ زوال نزول شي
په ضرور یې جدایي له زرومال شته[1]
(۱۰) واړه به یې تور مارشي په لحد کښې
تکبر په مال عظیم ګناه وبال شته
د کافر لویي په مال خوښي په زر وي
د مومن خوشي په علم په اعمال شته
د عابد خوشي طاعت د ذاکر ذکر
د عارف خوشي دیدن د ذوالجلال شته
د عابد د خوښۍ حد ترمرګه پوري
د عرفان خوشي قایمه په هر حال شته
بادشاهان چې ومري نوم حکم یې ولاړ شي
د سرور حکم جاري نوم یې الحلال شته

---

[1] اص: پس دوري جدای له زرومال شت

کهٔ عاقل یې دنیا مهٔ غواړه لهٔ خدایه
دحساب د ورکولو لوے جنجال شته
بهترین رزق خوما دهٔ پهٔ جهان کښې
پهٔ قیامت به پر عتاب نهٔ ئې سوال شته

اے مخلصه پهٔ بهشت ترغنې وړاندې
دفقیر سړي دخول پهٔ پانصد سال شته[1]

---

حدیث : حب الدنیا حرام علٰے اهل الاخرة والاخرة حرام علیٰ اهل الدنیا وهما حرامان علٰے اهل الله ایضاً همت المرء یقلع الجبال ایضاً الطیر یطیر بالجناح والمرء یطیر بالهمته

---

د دنیا حب داخرت پهٔ اهل حرام دے او اخرت د دنیا پهٔ اهل باندې او دا دواړه حرام دي پهٔ اهل الله. د سړي همّت غرونه د وېښته وباسي. مرغۍ پهٔ پړو الوزي او سړے پهٔ همّت .

---

[1] ص : د فقیر سړي دخوبي پهٔ پانصد سال شته .

اے طالبه کۀ دې مینه پۀ مولا شته
د مولا پۀ لار کښې ډېر لونه بالا شته
کۀ صادق ثابت قدم يې شکيبا شه
د صابر مقام پۀ دوه کونه بالا شته
نا صبور له بلا تښتي کم همت دے
د همّت د څښتن دين هم يې دنيا شته
چې روان د نمر پۀ لور شي يقين وکړه
دين دنيا مثال سايه پسې پويا شته
د مردانو همّت غر له همايه واخلي
الواتۀ يې پۀ همّت پاس پۀ هوا شته
د دنيا پۀ فاني ملک زړۀ قرار مۀ کړه
تر دا بهه ملک يې باقي بهتر عقبیٰ شته
تۀ يقين پۀ دا کلام کړه ايمان راوړه
لوئے گواهان د دې خبرې انبيا شته
چې باور يې د نبي پۀ گواهی نۀ وي
پس له مرگه تود دوزخ د دۀ ما واشته
پۀ دنيا پورې څرگند د عقبیٰ قدر
تر تياره پورې معلوم رڼا صبا شته
د گرمۍ راحت به هاله پرې څرگند وي
چې يې ناسته پۀ سردۍ کښې داشنا شته

چې يې عدل د عمر ليد لې نهٔ وي
پهٔ نظر يې د حجاج عدل رښتيا شته
چې مزه يې د انجير کتلې نهٔ وي
پهٔ مذاق يې دکوللړ ميوه زيبا شته
د دنيا د عقبی مهر له زړهٔ واخلي
کهٔ لږ ډېر د زړهٔ مايل پهٔ کبريا شته
د عقبیٰ پهٔ اهلو[1] ده دنيا حرامه
د مولیٰ پهٔ اهلو دواړه ناروا شته
کهٔ د حق پهٔ مينه دوه کونه ترک نه کا
د طالب پهٔ لاره کښې د ټوال بر پا شته
ملک به څهٔ کړې مالک غواړه کهٔ خرنه يې
ډېره مينه پر ملک بانډې دچارپا شته
دواړو کونو د لذت شهوت مکان دے
پهٔ لذت شهوت د نفس ډېره رضا شته
نوس صفت د بهيمه لري باور کړه
دچارپاے له خوبه ښېښته د دانا[2] شته
نوس عظيم او د پهٔ لار کښې دے يقين کړه
د پناه ځاے دې بل ويمه خدا شته

---

[1] اص: دی

[2] اص: دنا معنې ئې ده کمينه

دونیا دعقبیٰ مینه لوئے حجاب دے
دیار مخ به صحیح نهٔ کړي څوهبا شته
دوارهٔ کونه کم د نړوکي دي مخلصه
پهٔ د نړوکي اودس مهٔ کړه چي دریا شته

---

## درباب حدیث الموت بابٌ اناسٌ داخلهٔ

### د مرګ په بابله چي پهٔ دي دروازه بانديٰ ټول خلق ننوتونکي دي

چي ئ ورځ د وړاندي لويه دقيامت شته
نن پسو دهغو زړونو فراغت شته
مرګے سکه دروان وګوره پهٔ لاس کښي
پهٔ دا تنګ[1] در دلطيف ارواح رحلت شته
روح پوښه تن پمدانه مرګ الاجي دے
پهٔ دا تنګ دردي دښي تلهٔ پهٔ محنت شته
پمدانه بيچاره پرېوزي پهٔ ځائے باندي
جدائي دروح صورت پهٔ ضرورت شته
ده تلخي د ځنکدن تنګي د لاري
سخت منزل ئ تنهائي دکور وحشت شته

---

[1] ام : تنګه

شوه دګور تنګي عظیم عذاب باور کړه
دنکیر منکیر پوښتنه په هیبت شته
په لیده یې د سړي اوسان غلت شي
دځواب طاقت یې چرې د صورت شته
په هر ګور کښې به عذاب یا به راحت وي
دا کلام مې له رسوله دلالت شته
چې دا هسې لار منزل لرې د وړاندې
بې غمي یې لوئ نښان د حماقت شته
بل دووم منزل قیام د قیامت دے
په دغه روځې ندامت هم ډیر حسرت شته
نیک و بد به کل ارمان کا په حشر کښې
د هر کس په خپل عمل کښې ندامت شته
کل نیکان به د نیکۍ په تقصیر ژاړي
دبدانو په بدی ډیر ملالت شته[1]
دغه روځ د تغابن زیان به خپل کوري
د سړي پیري پکښې ډیر خجالت شته
چې میزان د عدل راوړي په میدان کښې
په حساب کتاب د ډیر عالم آفت شته
د تمام عمر عمل به ورخړګند کا
په حساب کښې (نه) زیاتے نه کماهت شته

---

[1] اص : دبدانو په بدي کښې ډیر ملالت شته

په خپل خوئ عمل به ودرې قاموته
جدايي د نيک وبد هغه ساعت شته
په دوزخ باندې به لاروي وبهشت ته
پر صراط باندې رفتار په مشقت شته
کل سړي پيري به ورشي په دوزخ کښې
د مومن ځني نجات هم عافيت شته

اے مخلصه لوے خطر لري په لار کښې
تر بهشته رسيدل په ډېر رحمت شته

---

دربيان آنکه کثرت که از وحدت صرف ظاهر شد سه اند يکی انرا غيب الغيب گويند ان کثرت عالم ارواح است. دويم کثرت غيب است که انرا عالم مثل خوانند وسيم کثرت شهادت است که انرا عالم محسوسات دانند.

---

په بيان د کثرت چې د وحدت نه ظاهر شي په درې قسمه دے يو کثرت د غيب الغيب دے د غه کثرت ته د ارواح عالم وائي دويم کثرت د غيب دے هغې ته د مثل عالم وائي دريم کثرت د "شهادت" دے هغې ته د "محسوسات عالم" وائي.

---

دے وحدت د سِرّ دریا عیان یٔ نشته
پهٔ شپږ لوري دے بې حد پایان یٔ نشته
دے څرګند تر هر څرګند دے وعارف ته
بې نشان دے هیڅ مانند نبنان یٔ نشته
کل عالم دحق ظاهر حق یٔ باطن دے
ظاهر(یٔ) نور سِرّ یو وجود هجران یٔ نشته
دے باطن عالم سِرّ ظاهر (یٔ) نور دے
سِرّ وحدت نور یٔ کثرت ارمان یٔ نشته
نورٔ پهٔ څولوسه ظاهر یو رنګ یٔ نهٔ دے
دهر رنګ رنګ یٔ کمال نقصان یٔ نشته
کثرت درست دنور جامه وحدت اغوستې
دعارف په داباور ګمان یٔ نشته
دغه نور هر دم تازه تازه ظهور کا
دظهور دنهایت بیان یٔ نشته
دا کشیر کور یٔ درې لونه کهٔ باورکړې
یو دے دووم زیات پټ اعلان یٔ نشته
دے دریم کثرت څرګند له چار عنصره
شهٔ محسوس تمام ظاهر نهان یٔ نشته
پټ عالم عالم مثال ارواح زیات پټ دے
چې یقین یٔ پهٔ غیب نه ایمان یٔ نشته

ـــــــــــ
ئے اص : سر

دالطيف لطيف دے غيب ليدهٔ يې نهٔ شي!!
څو پرې کشف نهٔ وي پټ غيب عرفان يې نشته!
دا پټ غيب عالم باقي دے مرګ يې چرې
دے کثيف کثرت فاني اَمان يې نشته
ودانا وته څرګند ظاهر باطن دے
د عارف فکر ازاد زندان يې نشته
ظاهر بين جاهل منکر لهٔ غيبه خلقه
د ذرهٔ فکر يې کوتاه ميدان يې نشته

اے مخلصه لهٔ نادانه لرې تښته
حماقت عظيم علت درمان يې نشته

---

پو غافل سرې تل شپه سحر يې نشته
دے ذَرهٔ پهٔ سترګو روند بصر يې نشته
چې د ذکر چراغ نهٔ لري پهٔ زرهٔ کبنې
نوس شيطان يې زرهٔ لوټي خبر يې نشته
څوک پاس انفاس د زرهٔ پهرودار نهٔ وي
غل زرهٔ ور وَزر ته څې حذر يې نشته

دا پاک نوم چې په ذره یاد کا ذره ئې پاک شي
د حق نوم د ذرهٔ صفا کدر ئې نشته

کدورت کل الله پسبنه د غېرېدار ده
چې ئې ذره له غېره پاک تقش ئې نشته

پوست د غېرې ګمان کوره پس ذره باندې
څو یې غېرې ګمان دے باور ئې نشته

چې ئې غېرې کړه نفي اثبات ئې حق که
پرهر لور وینې مولا څادر ئې نشته[۱]

و عارف وته ښرکېند په هر جهت دے
له غافله په حجاب نظر ئې نشته

لوے حجاب دسرې ځان په لار کېنې ورکړه
بد حجاب کوره وجود همسر ئې نشته

لوے خطر حجاب هستي ګنه په لار کېنې
چې وجود یې کړې نفي خطر ئې نشته

چې له خپلې هستۍ نست په مولا هست شي
د مولا هستي باقي کدر ئې نشته

اے مخلصه حق د کل هستي مصدر دے
دے ده هستي قدیم مصدر ئې نشته

---

[۱] اص: پرهر لورې وینې ۰۰۰۰۰۰

در بیان آنکه فرق میان ناقص و کامل نتواند کرد مگر آنکه
عقل کامل داشته باشد و آنکه جهل دروی است که دوای
ان نزد مسیحا نیست و ترجمه این بیت .

---

په بیان دهغه چې د ناقص اوکامل ترمنځه فرق نهٔ شي کېدلے
مګر هغه چې کامل عقل لري او هغه چې جهل لري د هغهٔ دارو بغیر
د مسیحا نه بل چا سره نشته .

---

دیدن دوی تر چشم جهان بین باید
این کجا مرتبه چشم جهان بین من است

---

د حق ذات قدیم دریا فنا یې نشته
دے مکان دهر مکان ما وایې نشته
کُل عالم په دهٔ کښې غرق وینم باور کړه
هم پکښې هم ترې چاپیر خلا یې نشته
دے په هر ذره محیط درون بیرون دے
و عارفو ته څرګند اخفا یې نشته
د جان بین سترګې یې ګوري بې جهته
صورت بین سترګې که دي صفا یې نشته

---

ك اص ، چوپېر

د لطيف دريا ليدهٔ د ذرهٔ په سترګو
د ذرهٔ په سترګو څره مخ قفا يې نښته

بد روند والے دے د ذرهٔ نبي وينلے
په ذرهٔ روند سړے جاهل دوا يې نښته

مسيحا اوبهٔ د هر رنځور دوا ده
د جاهل رنځ له دوا شفا يې نښته

چې د دوو بنسو تر ميان فرق نهٔ کا جاهل دے
نابينا دے کور دسو ضيا يې نښته

قلب سرهٔ سيم دي يکرنګه فرق يې صراف دے
د مردود ناپوهه خوش ابا يې نښته

د ناقص د کامل فرق دانا لبيب کا
چې يې عقل وي کامل هوا يې نښته

بنيا دل عارف حاسد پرې الصعف نهٔ وي
دے مرضف دکل عالم اعدا يې نښته

د مخلص خبرې پند کړه سود به موې
هر کلام يې بې بها بها يې نښته

در معنی ایتہ کریمہ اَفَحَسِبْتُمْ اِنَّمَا خَلَقْنَاكُمْ عَبَثاً (المؤمنون۔ ایت ۱۱۵)

یعنی شمارا عبث نیا فریدم معنی صورت کہ دروی حقیقت نبود چون صورت وہمی و خیال وصورت شماز حقیقت محمدی و ازہستی حق تعالیٰ فانی نیست ابو بکر واسطی قدسی اللہ سرہ روزی این ایتہ میخواندہ فرمود خلق را عبث نیا فرید بلکہ خواست کہ ہستی وی اشکارا شود۔

---

ترجمه :- ددې ایت کریمه پهٔ معنیٰ کښې چې " ایا تاسو دا خیال وُ چې مونږ تاسو عبث پیدا کړي یئ - یعنې تاسو مونږ عبث نه یې پیدا کړی د معنیٰ دا صورت چې پهٔ دې کښې حقیقت نهٔ وُ لکه د خیال او وهم - او ستاسو صورت د حقیقت محمدي او حق تعالیٰ د هستې نه خالي نهٔ دے - یوه ورځ ابوبکر واسطیؒ دا ایت لوستلو او دې فرمائيل چې مخلوق يې عبث نهٔ دے پیدا کړے بلکې غوښتهٔ يې چې د هغهٔ هستي ښکاره شي -

---

یار پهٔ هر لوري حاضر دے اغیار نشته

هر اشیا د وحدت گل دینه خار نشته

د وحدت کټلو نه دېر دي پهٔ څو لو نه

ددهٔ گل واړه پکار دي بېکار نشته

د حکیم فعل هرګز بې حکمت نهٔ وي

د دانا بے عبث کار سره کار نشته

دا عالم چې طلسمات یا خیال ئې بولي
د عارف په دا دنیا اعتبار نشته
هر صورت بې معنیٰ نهٔ دے کهٔ باور کړې
پهٔ هر تن کښې معنیٰ پټه اظهار نشته
باطن بین په هر صورت کښې معنیٰ گوري
بې اوبو پهٔ دا جهان کښې گلزار نشته
دا معنیٰ دی پهٔ صورت کښې گویا شوي
د خرې صورت قوت د گفتار نشته
دَ وحدت کثرت جامه دے پهٔ څو رنگه
د وهمي په دا خبرو د ښار نشته!
دا ستین حرکت چرې وي بې لاسه
د ژوند یو بې هستیه رفتار نشته
چې پهٔ دا حیات له ژونده خبر نشهٔ
پهٔ جهان تر دهٔ بې عقله حمار نشته
د خپل ژوند دانش تر کل دانش بهتر دے
تر دا بهر دانش کهٔ غواړې تیار نشته
دَخپل ځان عرفان د حق عرفان دے قطعیٰ[۱]
د نادان پهٔ دا گفتار کاروبار نشته

---

[۱] من عَرَف نفسه فقد عَرَف ربَّه ہ حدیث شریف
(چا چې خپل نفس وپیژندو هغه خپل رب اوپیژندو)

د حیات دشته نږدې تر شهه رګونه
له ژوندونه دېر عالم خبردار نشته

د بې حد ناله په هر کور کښې بهیږي
نابینا وهي ناره چې انهار نشته

اے مخلصه وړاندہ ته بې کامله
د انهارو د سنبلو غمخوار نشته

---

در معنیٰ ایه کریمه: كُلُّ مَنْ عَلَيْهَا فَانٍ ۝ وَّيَبْقٰى وَجْهُ رَبِّكَ ذُوالْجَلَالِ وَالْإِكْرَامِ ۝ رحمان - ایت ۲۷

ددې ایت کریمه په معنیٰ کښې ز یه زمکه باندې چې څه دی تول فنا کېدونکي دی ، صرف ستاسو د پروردګار ذات ، د عظمت او احسان والا به باقي دي .

---

په دنیا کښې د وفا اشنائی نشته
د هیڅ څیز به دا عالم دهایي نشته

هغه څیز چې عاقبت درسه جدا شي
په تحقیق د هغه څیز وفائی نشته

وفادار جهان هغه دے که باور کړې
د اشنا له اشنائیه جدائی نشته

دے هر څيز پکښې زنده وفادار کوره
په باقي کښې د هيڅ څيز فنائي نشته

په دنيا کښې رنګ صورت تغير تبديل شي
د دنيا په څيز[1] د عشق بقائي نشته

د باقي هر څه باقي دي بې زواله
د فنا د زوال هيڅ ځائي نشته

په عقبیٰ[2] کښې رنګ صورت پروحال دے
ځکه عشق په هغه ملک هوائي نشته

د فنا د بقا ډېر تفاوت کوره
ستر آسمان پورې د غرهٔ بالائي نشته

اخرت خپراً بقا دے تل ترتله
په دنيا کښې له فنا رهائي نشته

په دنيا کښې محنت لهو کفت بسيار دي
په بهشت کښې کفت وګو دنيائي نشته

د دنيا د عالم حال احوال بدلېږي
د عقبیٰ د عالم دل سودائي نشته

د مولا د اهل زړهٔ صفا مظهر دے
په دوو کونو الود زړهٔ صفائي نشته

---

[1] اص : څيه

[2] پعقبے

چې د دوه کوسه ګرد کښېني پر زړهٔ باندې
پهٔ تحقیق دهغه زړهٔ بینایي نشته
چې حب د دوارو کونو (یې) ځایي دے
پر هغه زړهٔ کښې دوستي خدایي نشته

اے مخلصه چې یې زړهٔ پهٔ ملک مایل دے
بلا شک دهغه زړهٔ دانایي نشته

---

درمعنیٰ ایت کریمه : اَلَّذِیْنَ اٰمَنُوْا وَتَطْمَئِنُّ قُلُوْبُهُمْ بِذِکْرِاللّٰهِ ط اَلَا بِذِکْرِاللّٰهِ تَطْمَئِنُّ الْقُلُوْبُ ۞ الرعد - ایت ۲۸

ترجمه : هغه کسان چې ایمان یې راوړے دے او دالله پهٔ ذکر سره سطمینَ دي - بېشهٔ واورئ چې دالله پهٔ ذکر سره زړونه رخاطر) اطمینان مومي -

---

دغافل زړهٔ کے پرېشان ارام یې نشته
دے پهٔ هر لوري روان قوام یې نشته
دغه زړهٔ مثال توسن تند دے ناتیځے[1]
وهر لود ته دے روان لګام یې نشته

---

۱ص : ناتېزي

دے کشش دویم جلب ذکر لجام شهٔ
دغافل روح باندې سور لجام ئې نشته
بې جلبه اَس پخپله رضا ځغلي
پهٔ هيڅ حال کښې قرار نه مقام ئې نشته
پهٔ خفي ذکر دَ زړهٔ ارام حاصل کړه
چې ئې زړهٔ نهٔ وي آرامٌ دوام ئې نشته
څو يې دم ذکر پو زړهٔ کښې قرار نشي
پهٔ تحقيق د پرېشان دل بسرام ئې نشته
شهٔ خفي ذکر چراغ د زړهٔ ارام دے
چې ئې دا چراغ روښان دے شام ئې نشته
چې پهٔ دا خبره شک کاندې غافل دے
لهٔ قرانه دے منکر اسلام ئې نشته
زړهٔ قرار کانهٔ پهٔ ذکر خدائے وسيلې
چې د حق امر کا ترک اکرام ئې نشته
دلسان ذکر جلي دوام ئې چرې
دزبان ذکر تعليق قيام ئې نشته
که هفتاد هزار ځله ياد کا خدائے پهٔ زور
يو ځل ياد خفي بهتر قسام ئې نشته

---

لهٔ اس - حرام

بهترین ذکر خفي دے په اذکار کښې
له ریا څخه دوي خلاص المرام يې نښته
تر څو کند خبر ري، پېټ به هم دے په خیرات کښې
د پېټ خبر ثواب (يې) ډېر اشام يې نښته
پېټ طاعت عبادت دوست لره مخلصه
عبادت د ښېي ډېوه ظلام يې نښته

---

**معانی یقین و ایمان کہ آن دو اسم اند بیک معنیٰ و معنیٰ هردو باور داشتن بریگانگی حق سبحانہ تعالیٰ تا کسے بمقام وحدت نرسد واز وحدانیت واقف نشود مومن موحد نگردد .**

د یقین او ایمان معنی چې دوه اسمه په یوه معنیٰ دي او د دواړو معنیٰ د حق سبحانه تعالیٰ په یګانګۍ باور لرل دي یعنې ترڅو چې یو سړے د "وحدت" تر مقامه نه وي رسېدلے او د وحدانیت نه اګاه شوے نه وي هغه موحد مومن نه شي جوړېدے -

---

چې ئې ځان کهٔ پهٔ لا نیست جانان ئې وکوت
گرد غبار شي بر طرف عیان ئې وکوت
لا نفي نفحهٔ دل د اسرافیل دے
چې یې نیست کهٔ ځان جهان سلطان ئې وکوت
ځان جهان غیرې گمان چې یې نفي کهٔ
پهٔ دوو کونو کښې موجود دیّان ئې وکوت
چې پرده دې د گمان شوه لهٔ ذرهٔ لرې
پهٔ هر لور ئې یار ظاهر عریان ئې وکوت
ځان جهان غیر پهٔ گمان گڼي جاهل دے
چې گمان ئې کهٔ نفي ایقان ئې وکوت
د یقین معنیٰ ده دغه کهٔ باور کړې
چې یو ځان گڼي جهان ایمان ئې وکوت
د ایمان معنیٰ یقین پهٔ یګانګۍ ده
چې حاصل ئې یګانګي ایمان ئې وکوت
پهٔ وحدت کښې امنیت گوره لهٔ شرکه
ځان جهان سر پهٔ ودان اعلان ئې وکوت
کم انسان د لوئے انسان پهٔ صورت روغ دے
هر چې کم کاندي ضحي کلان ئې وکوت
من رائی محمّد صلی اللہ علیہ وآلہ وسلم وویل پهٔ زوره
چې یې زهٔ سوم پهٔ دیدن سبحان ئې وکوت

---

له من رانی فقد رائی الحق ( چا چې زهٔ اولیدم هغه حق ولیدو )

محمد صلی الله علیه وآله وسلم مظهر د کل کل تري ظاهر شه
چې احمد ئې شه منظور کل کان ئې وکوت
د ے ثمر کان د شجر شجر تري ووزو
په ثمر کښې د شجر وکان ئې وکوت
کم انسان کوره مصدر د لوے انسان شه
په پدر کښې د پسر اوطان ئې وکوت
د احمد نور ئې پدر جهان پسر د ے
د احمد تر نور ظاهر جهان ئې وکوت

اے مخلصه د احمد بزرګي وګوره
پر عرش باندې استوار مکان ئې وکوت

## ترجمه حدیث قدسي الانسان سري وانا سره

د حدیث قدسي ترجمه ؛ انسان زما سِرّ دے او زهٔ دده

چې ئې شک شه برطرف دلدار ئې وکوت
شک دغیرئې شه ناخښن[1] سردار ئې وکوت

---

[1] اص ؛ ناخښن

بد ګمان ګوره خس پروت دَ زړهٔ په بحر
د تلقین په یاد خس ولاړ مجار يُ وکوت
د زړهٔ بحر صاف الطف ګوره بې حده
په صاف دل کښې حق عیان دیدار يُ وکوت
په پاک زړهٔ کښې دهر څېز پر تولیده شي
زنګ کدرشه زدوده نګار يُ وکوت
یو نګار دے په هر لوري جلوه کاندي
چې یقین يُ شه قوي استوار يُ وکوت
حق د کل عالم ستار عالم پکښې دے
هم پکښې هم ترې جاپېر ستار يُ وکوت
حق ظاهر ظاهر باطن دے وعارف ته
په عظیم دریاب کښې پټ دیار يُ وکوت
په لطیف دریاب کښې غرق ماهي لیدهٔ شي
هم په تن دماهي پټ انهار يُ وکوت
دا ماهي دے په اوبهٔ اوبهٔ په دهٔ کښې
یو د بل په ځان پوشاک اسرار يُ وکوت
شش جهت يُ بې مشله مثل په میان کښې
په شپږ لوري معلق سینسار يُ وکوت

---

ك اص : چوپیر

بې مثلې شوه دايره عالم مـرکز دے
پر مرکز باندې چا پښ پرکارې وکوت
دے درون بيرون محيط په کل وخار دے
د بې حد په نور زرغون بهار يې وکوت
د مخلص وته څرګند درون بېرون شه
په شپن لورې جلوه کر دلدار يې وکوت
بنده ديدن يې د ګناوو کمامت دے
په دنيا کښې د ګناه غمخوارې وکوت

---

## حديث قدسى : رحمتى سبقت على غضبى - ايت شريف
## مَنْ يَّتَوَكَّلْ عَلَى اللّٰهِ فَهُوَ حَسْبُهٗ ط طلاق ايت:۳

حديث قدسي : زما رحمت زما په غضب مخکښې دے - ايت شريف:
چا چې په خدائے توکل وساتلو هغه دهغه د پاره کافي دے.

د رحيم د بنده رحمت وسعت مې وکوت
پر غضب باندې سبقت رحمت مې وکوت
د ګناه په سبب رزق د چا کم نه کا
بنده عجب د رب کريم صفت مې وکوت

کهٔ ګناه دي تر حد تېر نا امید مهٔ شه
پر مجرمو مهربان حضرت مې وکوت

نا امیدي پهٔ دا درګاه کفر تمام دے
پر ګمان پهٔ خدائے عظیم افت مې وکوت

له رحمته نا امید عین شېطان دے
د شېطان پهٔ ګروه واجب لعنت مې وکوت

د رحمت دریائ تېر دے پر ګناه دے
د عاصي پهٔ ځان شفا شربت مې وکوت

د رحمت درې پرانتے همواره دے
پهٔ دا درګنبي د تایب عزت مې وکوت

پهٔ بل دري د فقیر حرمت کم تر دے
پهٔ دا درګنبي د فقیر حرمت مې وکوت

عاجزي پهٔ دا درګاه کښې سروري ده
د عاجزو دستګیر سنت مې وکوت

حق چاره د بېچاره دے پهٔ جهان کښې
د زهیرو درماندهٔ مدت مې وکوت

د بېکسو زیرمهٔ کارنګاه بان دے
د رنځور د رنځ دوا صحت مې وکوت

د تنها دلارې مل د زړهٔ تکیه دے
د مظلومو فریاد رس همت مې وکوت!

توکل چې پر خدائے وکا خدائے ئې بس دے
پهٔ قران کښې داکریم ایت مې وکوت
چې وکیل ئې خپل تښتي کهٔ خوښ دی ومې
پهٔ دوه کونه دتسلیم عظمت مې وکوت

اے مخلصه توکل پخپل خالق کړه
د سبب دخښتن ډیر زحمت مې وکوت

# فی المناجات گوید

پهٔ زارۍ پهٔ عاجزۍ عرض کړم وتاته
د رحمت پهٔ نظر وګوره وماته
کهٔ نظر د مرحمت رابانديې وکړې
لهٔ اسفله به پرواز کړم وعلاته
کهٔ پهٔ پورته یې رانه ښکوې جذبه ستا
د اسفل پهٔ لوری به ځم تحت الثرا ته
زهٔ موبوب تهٔ دبنایې پهٔ دوه کونه
دے مربوب دایم محتاج ستا و عطاته
ستا عطا پهٔ سبب نهٔ ده بې سبب ده
بې سبب عنایت دکړې وګداته

فقیران بادشاهان ستا د دَرګدا دي
د بیمار په دود محتاج صحت دوا ته
د مطیع عاصي امید ستا په کرم دے
د نېک خو بد خو فرزند رجا بابا ته
ته د کل مخلوقات رب هم یې رازق یې
د دولت پرورده ستل امید عفا ته
که ګناه د بنده عفوه کړې لائق یې
تر خپل ځان مایله نه وینم خطا ته
نوس دایم د ګناهان وته مایل وي
هېر عاجز فرمان بردار دے و هوا ته
مسکن ستا کرم یې وکړې له آزه
د حرص له تیرو ووځې و دنیا ته
قناعت صبر دنیا ده[1] پر زړه بانډې
د دنیا قدر معلوم دے وبینا ته
څو یې ته د زړه پرده له زړه پرې نکړې
د غفلت له تیاره ستلے نشي ضیا ته
ته رحیم کریم بنده له تیرې خلاص کړه
د خپل یاد په لار یې وروله صبا ته

---

[1] اص: د د قناعت صبر دنیا دي ......)

معرفت مثال صبا دے نمر ختلے
خپل بنده دي ارزومند دے ولقاتـه
تهٔ صاحب غریب نواز آرزو رسان یُ
د مخلص ارزو دیدن چې کوري تاته
دا دعا یې مستجابه کړه خبتنه
دَ رنځورپه خپر مشتاق دے وشفا ته

---

## درحدیث، نفسُ عبد الدرہم و نفسُ عبدالزوجه برمردی که بگفته زن کارکند اوراز زن دان

---

حدیث : یو نفس ددولت بنده دے او بل نفس د ښځې بنده دے هغه سړے چې د ښځې خبره مني هغه ښځه گڼه ـ

---

د ناصح نصیحت ونغوږه چمغه
دنفسک په آرزو مهٔ تره خرته
کهٔ د نفس په آرزو لوئے دستاربهٔ سرکړې
د دانا پهٔ نظر دي تمکړې دوبته
نفس اورته پهٔ ارزو لسي یې مهٔ حه
د ناقص مطیع ناقص گوره پرگهته

(۱) زن ناقص العقل د دین یاد شوے[2]
د ناقص په نغوته ولې ګرځې جمته
چې بنده د سیم وزرو شه هلاک دے
عبیده د زن فرزند نښتے په خمته
دا دنیا کهن خلاب خلق په ګند دي
دیوانه تو زنګنو هوشیار لټ پته
چې په دا خمته کښې غرق تمام پلید شي
په ازل یې د پاکۍ بخره ډکته
د دانا په نظر لوئے نادان ځرګند شه
چې وران یې اخرت دنیا یې کوته[2]
په دنیا اخرت وپېره سودمند دي
چې فردا په حشر یوسي بخره غته
دا دنیا د اخرت د کښت پټے دے
ن حاصل کړه په دنیا کښې د دین ګټه
د دنیا (دا) تخت وبخت (یو) لوئے ازمېښت دے
زرجوهر یې د دوزخ بله سکروټه
چې له تخته عاقبت پر تخته پرېوزي
د دانا په نظر تخت کښه دے له کمته

---

[1] اس: زن ناقص عقل د دین یاد شوي
[2] اس: چرې وران بې آخرت دنیا یې کوټ.

تهٔ لهٔ حسې ژوندون څهٔ لره غره یې
چې پهٔ لږ ساعت کښې ځان وکړې چټ پټه
د اجل ساعت څرګند پهٔ سړي نهٔ دے
ذر له سوه کړه پرتاؤ د امل څټه

د مخلص د وینا قدر با ندې نشته
چې پکار د دنیا چست د دین دے متّه[۲]

## وفی معنیٰ حدیث الهویٰ عند الله ابغض من جَمیع ۔

پهٔ نزد د الله تعالیٰ خواهشات پهٔ هر لحاظ ناپسندیدهٔ دي ۔

تن ازاد سړے هغه دے چې د نوس لهٔ آزه پټوته
چې بنده د ارزو هشه د ازاد دعویٰ يې جوته
دهوا پسرۍ بنده دے دا بنده هر محکو رګنده دے
د سړي بندهٔ ازادشي د ارزو ده سخته غوټه

---

لهٔ اص : چه

[۲] اص : مقصا

چي څښتن وائي ازاد شي چي ظاهر دچا غلام شي
دے ازاد په ګفت کلام شي شي ازاد بند ي شه پوهه
د شهوت بنده تل بند دے که باداشاه د سمرقند دے
کل ارزو مي دي طوقونه دے بسته پکښي سوڅ بوته
د ارزو طوقونه پڅ دي که د ښو دي يا د رڅ دي
په اقوال افعال ښکاره شي د خو بزيينه له پوهه
ښه ارزو بيايي وحق ته د اسري وښه سبق ته
چي د بد ارزو مطيع شه د ايمان سودا کا تروهه
دا ارزو نفس وشيطان شي هم فرښته ارواح عيان شي!
نوس شيطان په غبڑ لور دي روح فرښته وحق ته تووته
چي په نغوته د فرښته شه دے ازاد مرغه رسته شه
چي د نوس په ارزو بند شه له مولا کرځي تل روته
نوس شيطان سره خپلوي ده د زړه روح پر بل ملوي ده
چي د روح لښکر غالب شه کا ټوکيه د نوس کټ کوهه
نن دا نامړو نه وينه چي هوا د پسـتړ نينه
چي عارف د کل هوا شه د عرفان پياله ئي ګوټه
حق باطل سره ضد دينه روحي شپي څرګندي شينه
له نفي اثبات ثابت شي کور ظاهر معلوم له هوته

مولا حق هوا باطل دهٔ[1] د اخر گنده و عاقل[2] ده

د هوا باطل الله شه بیا یې کوسي د لاکو سته

بنه او بد ترجل ظاهر دي دے مخلص وته باهر دي

بد بنده د ارزو باشه بنه ازار لهٔ ارزو جوته

حدیث: لا سبیل الی الله (الا) البلاء ایضاً یُجَرَّبُ المومنین بالبلاء کَمَا یُجَرَّبُ اَحَدُکُمْ ذَهبُ بِالنَّار[3]

حدیث: الله ته لار نشته مگر په تکلیفونو، مومنان په تکلیفونو سره خالص کولے شي لکه څنگه چې څوک په اور سره سرهٔ زر خالص کوي.

---

دَ مولا پهٔ لاره ځئ یو یو پهٔ مخې
دغه لار پوره ته پهٔ ستغ شوي پهٔ ځتې
څره رو سره پهٔ ډېر محنت پرې ځنې
نادانانو پر لار ولښې درنې ځتې
پهٔ دغه لاره کښې تګ پهٔ شوا خون دے
دې پهٔ لاره کښې پرتې د بلا کتې!

---

[1] اص: دي

[2] اص: دي [3] اص: إلى النار

څو تو ځان و مال تر زن فرزند تېر نهٔ شې
د مولا د دهٔ تر میان کانې دې کوټې
پوداً لاړې ازمېښت ډېر دے مردانه ځه
پرکمکي پتمکی راضي دمه) شې تر خرتي
د لذت پهٔ سبب درپهٔ دړ مه کړځه
ترقلیه پولاو خوشنود وسه پهٔ بهتې
مومنان به بلا وزمائي خدائے هسې
لکه زرچې وزمائي په سرو سکروټې
چې صابر شي پهٔ بلا دوستي قبول کا
ناصبور له بلا ژاړي ورتښي ورټې

اے مخلصه فهم درست باندې زر وکړه[1]
د سر سترګې کړه د زړهٔ پهٔ لوری غټې

---

## درمعنی آنکه گره کشای شک وگمان تلقین پیر کامل است۔

پهٔ معنی د دې چې ز دشک او ګمان وضاحت د کامل پیر پهٔ تعلیم او تلقین دے۔

---

[1] ص : اے مخلص فهم درست باند زرنکړ

سختې ټینګې دي مضبوطې د شک غوټې
د تلقین په ګره کشاد کشاد شي چوټې
څو اوبه تر لوټې نه وي رسیدلې
تر هغې پورې باقي وي نوم د لوټې
دا سړے په شک ګمان کښې زه زه یم
په ګمان سراب اوبه ګڼي په تروټې
دا سړے له ځانه نیست په مولا هست دے
د اوبو په نو تازه وي د ګل بوټې
ګل که وائي چي له ځانه نو لرمه
د خزان په وقت یې دا دعوې وي جوټې
که په روځ مناري سپینې لوړې برېښي
د نماښام په وقت ښکاره شي تورې سوټې
که په نمر کانې رنګین ورځ کنډرې
په غروب شي په مانند د مسنو سوټې
د صورت د کوټو حسن زیب په روح دے
بې ارواحه کنډوالے دي ټوټې پوټې!
اے مخلصه هستي منځ عالم خیمه دے
دا خیمه دایم ولاړه ده په کوټې

---

## در بیان آنکه وحدت چون باغ است وکثرت سبب (منه) است ووحدت گل است وکثرت اجزاے ان

په بیان د وحدت چې د باغ په شان دے کثرت سبب دے
وحدت کل دے او کثرت د هغې اجزا۔

د وحدت د باغ منې دي برې چوتې
په یوهٔ دریاب ژوندی ګوره ګلوتې
دیوهٔ دریاب ماهي تور سپین لیدهٔ شي
په یو او بو کښې ئې غرق کړې دي لوتې
دیوهٔ وحدت بساط دے غوړیدلے
دي حیوان نبات جماد پرې پاندې کوتې
د وحدت په نو زرغون ګلزار لیده شي
په دا باغ کښې که پتله وینې یاموتې
لکه ګل په نو تازه په ځائے ولاړ دے
هسې شان په روح ولاړ د تن کوتې
د روح جوړ به بن په ځان کښې ورڅرګند شي
که د ذکر په صیقل زړګے وګهوټې
که دې د ژوند له جوینې واقف نهٔ شوې
په فردا به د حسرت په خاورو لوټې

۱ اص: سې ۲ اص: ګوړې ۳ اص: نو

اے مخلصه چې حاصل يې ايمان نهٔ وي
پهٔ قيامت به ارمان ډېروکه بهٔ چوتې

---

## دربيان آنکه نام محبوب بر محب شرين نيز از عسل است وخوشبودار ازمشک .

---

پهٔ بيان دهغې چې ز پهٔ محب، دمحبوب نوم دشاتونههم زيات خوږلګي اوخوشبودارهم دمشکونه زيات .

---

د يار نوم تر شهد ډېر شرين دے ميټه
کهٔ محب يې پر زبان دل يې کړه بليټه
زړهٔ زبان به دې شرين شي که باور کړې
دحق نوم د زړهٔ پاسبان کړه اېښه
کل دا غېره انديښنه به بر طرف کا
زړهٔ به خلاص کا له شېطان نوس هېښه
زړهٔ لهٔ غېر فکر پرې وبنځه چې پاسبان شي
دکامل تلقين صابون ګنړه يا ريټه
له ناديده ملک کم وزيات وېل شي!
يو پهٔ يو نښان وروښائي لهٔ دېټه

---

له اص : ډيټهه

د ظاهر د اهلِ خاک رنګ دکُسُم دے
د باطنو اهلِ زړهٔ رنګ لهٔ مجیټه
دا مجیټ صبغت الله رنګ د بې رنګ دے
دا کلام دے ارو یډ ئے له لبیټه
چې یې رنګ د ہرنګي واخیست یکرنګ شهٔ
سپینه وللې جامه بنه ده له دړي چیټه

اے مخلصؔ غیرې یاد زهرِ قاتل دے
دحق یاد د زړهٔ شفا شربت دے میټه

---

# فی المناجات گوید

---

و ئښتن وته یارې کوم پهٔ پټه
خلاصے غواړم لهٔ شېطان نوسه خرټه
زه جهول ظلوم د نوس پهٔ ختهٔ بوخت یم
پروت ضعیف سړے قوي یسې ملټه[له]
تهٔ قوي رؤف رحیم پر عاجزانو
زهٔ عاجز پهٔ ختهٔ نښتے یم ساړیټه
زهٔ نادان شېطان مکار نوس حیله ګر دے
تهٔ دانا یې ما کړه خلاص لهٔ مکره رټه

---

له اص : ملیټه

د دنيا د خــلقو مينه تنگ زندان دے
زن فرزن په ښښي کنــده دي لوړے سمه
مګر ستا جذبه مې خلاص کړه له دې بنده
لکه باز چې دراج ونيسي له ښته
غېږ يا د تــوره تيــاره ده پر زړه بانډې
دا ستا ياد د زړهٔ چراغ دے له ډېوته
دخپل ياد چراغ مې بل کړه پر زړهٔ باندې
په تيارهٔ کښې ويره ډېره شي له خته
دا بد خته کوره د نوس شيطان وسواس دے
په چراغ پورې څرګند شي سم له ښتــه
په خپل ياد کښې ځان جهان مې له زړهٔ وېر کړ
چې مشغول په اندرون کښې شم خوله پته

دا مخلص ستا په ديدن حيات باقي دے
د هجې ژوندون محال دے بې لــهٔ وته

---

أَلَمْ يَرَوْا إِلَى الطَّيْرِ مُسَخَّرَاتٍ فِي جَوِّ السَّمَاءِ ط مَا يُمْسِكُهُنَّ
إِلَّا اللَّهُ ط (النحل ايت ۷۹) وَبَثَّ فِيهَا مِنْ كُلِّ دَابَّةٍ (البقرة ايت ۱۶۴)

ترجمه:- اے نهٔ ګوري دوي پهٔ طرف د مرغانو چي تابع کړے شوي دي پهٔ هوا د اسمان کښې نه ساتي دوي لره له پرېوتو نه مګر خدائےتعالیٰ او پهٔ دې زمکه کښې يې دهر قسمه څنا ور خوارهٔ کړهٔ .

---

ﻥ به بيا کړم د مولا ثنا احدا ثه
طالبان دي پهٔ غوږ وکاندي رِعاشه
ددې ذات بېچون بې مثل پاک درياب دے
نهٔ هستي دے د ژوندو ذکور اناثه
پهٔ هوا کښې يې مرغونه قبض نيولي
د اسمان زمکې ترميان څۍ بې لباثه
پهٔ اوبو باندې جهاز ګرځند ے بيايي
پهٔ اسمان کښې نمر قمر وري استغاثه
د هيڅ څيز حرکت نهٔ شي بې قوته
کهٔ پهٔ دويا پسينه دروږمي يا جاثه
کل لاحوله لاقوت قوت لهٔ حقه
کهٔ پهٔ غوښه وي د ننګر يا وي اثاثه
چي دوه کښېني مصلحت يا راز پټ وائي
حق عليم ورسره مل ګوره ثلاثه
حق عليم بصير هيڅ څيز له دهٔ پټ نهٔ دے
کهٔ پهٔ کور کښې دې تنګه وي يا اثاثه

---

نهٔ اص: پهٔ هستي د ژوند وي ذکور اناث

ستا په مال بصیر دانا دي په هر حال کښې
که پر خوان دې قلیه ینبې یا کراشه
د بې کس غریب له حاله خبردار دے
د مظلومو بېچارو دے غواشه

اے مخلصه د صوفیانو مذهب دا دے
چې ځان زمکه په جهان کښې کا دیاشه

---

**دربیان آنکه تمام عالم مظهر اسماء حق است و اسماء و اسماء الامر باعث او اشیاء مبعوث اشیانست.**

په بیان ددې چې تمام عالم دحق داسماو مظهر دے - اسماءالامر ددې باعث او اشیاء ددې مبعوث دي -

---

اے دکل عالم باعثه
پر زمین کړې حیوان بثه

ستا دکن په امر وشو کل عالم چې دي حدثه
پر دا زمکه دي پرېشان که کل حیوان ذکور انثه
کل حیوان دې سره زوج کړه دي د نسل کل حادثه
د رزاق نوم دې ظاهر دے ددې زمکې له عنکثه
د حیوان قوت له نباته که غله میوه ده قثه

| | |
|---|---|
| د رحیم اسم مظهر شهٔ | د باران نرم د ثشه[1] |
| د رحمت نښان څرګند دے | هر باران دي کهٔ ولشه |
| د محي اسم وګوره | او اوبو سره علڅه |
| هر څیز له اوبو وشهٔ | دي اوبه د څیز حنبڅه |
| د حي نوم کهٔ باور وکړې | پهٔ هوا کښې ګوره حڅه |
| هر حیوان پهٔ دهٔ ژندهٔ دے | کهٔ مېرهٔ دے یا دغڅه |
| د محبت د نوم مظهر شهٔ | سخته زمکه یا بوڅه |
| چې پر زمکه دي به ومري | کل به ورشي ترجذڅه |
| د قوي نوم دي ښکارهٔ شهٔ | د ملائکو د جنڅه |
| د جبرائيل قوت څرګند شهٔ | د لوط قوم لهٔ حڅه |
| د مزل حیوان مظهر دے | کهٔ ګاوان دے یا حرڅه |
| غوښه تیزيٌ دواکړې | هم يُ شیں غوړ له غبڅه |
| د لطیف نوم باور وکړه | پهٔ پیري کښې دے بعڅه |
| د جامع اسم مظهر شوي | د انسان صورت حدڅه |
| پهٔ انسان کښې حق کړهٔ جمعه | خشک وتر مثال ضغڅه |

حسن لطیف دے لیدهٔ نهٔ شي

کهٔ پهٔ کور کښې دے شُبڅه

دي مخلص وته څرګند شهٔ

څیز مبعوث اسم باعڅه

---

[1] اص : د باران نرم د ثث

[2] اص : ددې تهکې پهٔ معنیٰ پوے نهٔ شوم

## دربیان آنکه کلام که موافق ایت وحدیث است عمل کردن بدان هیکل -

---

پهٔ بیان ددې چې (دا) کلام دایت او حدیث موافق دے او پهٔ دې هیکل عمل پکار دے -

---

دفقیر وینا ثابته لهٔ ایاته لهٔ حدیثه
چې پهٔ دا وینا عمل کا پهٔ محکم برې تثبیته
نن مضبوط نیسه دابرے چې برې نهٔ شي بنکته مړیے
چې له لاسه ووځي ویاسته بنکته دروي بې مکیثه
کهٔ دا ویاسته کړې مضبوطه وربه شي تر ملکوته
نفساني صفت به پرېږدي دنفس خوي پلیت خیثه
نفس لیږي تاوجهه ته لسي طفل پورته بنکته
دمردارو طلبګار دي اول سګ دووم بلغیثه
کهٔ سګ نه یې پهٔ ځائے کښېنه له مولا کړه لیږدینه
حق دارزق روزي دسان دے نن ارزو کړه دنفس دشیه
ته کار وسپاره وحق ته فهم وکړه دې سبق ته
کهٔ دغه سبق دې ضبط کهٔ تهٔ به خلاص شې له تعیثه
چې مولا دې زیر مګار شي ستا زړګے به پهٔ قرار شي
پهٔ زړهٔ جمع به طاعت کا پرېشاني به کړې شعیثه

د هغهٔ زړګے پرېشان دے چې لیدهٔ یې خپل توان دے
کهٔ لاحوله لاقوت شي رزق به مومي بې بلیشه

چې قوت د طفل نهٔ وي دده تل تیار خوارهٔ وي
چې قوت یې د ځان وکوت لهٔ رازقه شه به ضیشه

چې زهٔ هم قوت لرمه زهٔ به هم زیرمه کومه
پهٔ محنت یې خبر کښېوت وخپل ځان وته یې عیشه

داسې د خدائے عیال دي بیا پهٔ رزق یې ملال دي
پهٔ قران یې باور نشته د رسول پهٔ بنهٔ حدیثه

چې عیال د مخلوقات دي له روزیه زړهٔ بخات دي
د جهان رب یې ضامن دے دے خپل زړهٔ نهٔ کا تدنیشه

اے مخلصه دا متین دے چې پرخدائے یې درست یقین دے
چې د زړهٔ یقین یې نهٔ دے دانه نه لري تش لیشه

---

**تعجیل از شیطان است وآهستگی از رحمان است قانع دل فراغت است دل اوکه فراغت ندارد شهد شکر دردهن او بی مزه است .**

---

تلوار د شیطان خویٔ دے او صبر د رحمان . د صابر زړهٔ فراغته وي د چا زړهٔ چې فراغت نهٔ وي نوشات او شکر هم دهغهٔ پهٔ خوله کښې بې مزه وي .

پهٔ لطيف درياب کښې تن کثيف ومونځه
پهٔ فنا کښې خلاص به شي تهٔ له حدوثه
عارفانو پهٔ فنا کښې قديم بيا مونده
تهٔ د تن پر سيوري خوښ کرځه ديوثه
پهٔ فنا کښې به لهٔ غيرهٔ فکره خلاص شي
د فنا مثال او به فکر برغوثه
دا پټ ګنج د معرفت به پکښې مومي
تهٔ د ذکر پهٔ الماس زړګے دلوثه
دا وحدت ګوره جوهر کثرت يې عرض دے
د وحدت مثال درخت کثرت کتوثه
پهٔ ځيل ځان چې بار کښي ګوره قبول کا[1]
هغه کس مثال ناقه کښه نڅلوثه
عارفان د کافرانو بد نهٔ غواړي
اهل الله که تا ازار وينې هليوثه
کل تعجيل دے د شيطان کهٔ باور وکړې
د رحمان د اهل چار اهسته لوثه
کهٔ شيطان وسوسې دروَلي پهٔ زړهٔ کښې
هر زمان پر زړهٔ پناه غواړه لهٔ غوثه
لوئے ملک د ازادۍ کهٔ يې وركه
د قانع زړهٔ فراعت وي له معبوثه

---

[1] اص:- چې بمار بار کښې به او علي قبول که

اے مخلصه چې يې ذرهٔ فراغت نـهٔ وي
شهد شي تر حـلق پيکه دروې لهٔ طوشه

# في المناجات گوید

پهٔ سحر کړم ومولاتـه لهٔ شيطانه الغياث[1]
نوس فرعون هامان دے له فرعون هامانه الغياث[2]
نوس اژ درلـه زهرو ډک دے وګوزارتهٔ سرک دے
تـل پهٔ کور کښې راسره دے له ثعبانه الغياث
نوس پهٔ هر سر لوے مار دے هر ارزوې سرخونخوار دے
دهرسرکوے يې اور دے لهٔ نـيرانه الغياث
د ارزو عالم بندهٔ کاستا له لارې يې راندهٔ کا
دے چوګان عالم يې ګوے دے له چوګانه الغياث
دهوا د نوح طوفان دے پکښې ډوب سروجوان دے
يې کشتيه بـه خلاص نهٔ شي له طوفانه الغياث
ستا عصمت د نوح کشتې ده دضعيف پناه پشتې ده
کهٔ مې يار نګاهبان نشي له خذلانـه الغياث

---

[1] دمطلع ددې مصرعې سـره يې بله مصرعه هم ليکلې ده
شيطان هتک نوس نامان دے لهٔ شيطانـه الغيـاث

[2] اص : نوس فرعون دي ها ماندې له هامان الغيـاث

پهٔ لسان ده موکله کل بلا چې ده پربله
داو ېنا رسول ويله له لسانه الغياث

پهٔ زړکي ېې نسيان دېرشه لوستي علم ځني وېرشهٔ
حافظه پر موکل کړه له نسيانه الغياث

نهٔ جهول ظلوم نادان يم تا ياد کړے پهٔ قران يم
ګران (او) درون ورے مې واخستهٔ له ګرانه الغياث

امانت ورے دې درون دے اسمان زمکې ځنې ژون دے
کهٔ مې يار مدد ګار نه وله هجرانه الغياث

امانت واخله لهٔ مانه زهٔ به خلاص شمه له تانه
دغه ځان صفات مې بار دے لهٔ دې ځانه الغياث

دا سړي يو تش ګمان دے پهٔ ګمان کښې يې دېر زيان دے
ګمان لوے حجاب دلارې لهٔ ګمانه الغياث

دا مخلص دېره زاري کا دے لهٔ ځانه بېزاري کا
دغه ځان دعصيان کور دے له عصيانه الغياث

---

يَاأَيُّهَا النَّاسُ أَنْتُمُ الْفُقَرَاءُ إِلَى اللَّهِ ۚ وَاللَّهُ هُوَ الْغَنِيُّ الْحَمِيدُ ۝ فاطر ۳۵ - ۱۵

ترجمه :- اے خلقو تاسو دخدا ئے محتاج يئ الله غني او دټولو خوبو خاوند دے .

---

۱ اص : ګران درونړې ورې مې واخست له ګرانه الغياث

پهٔ دنیا کښې که سلطان غني دے راج
کل وحق ته دي عاجز غریب محتاج
هر سړے کوره فقیر مولیٰ غني دے
درویشان ګدایان سوال کاندي لهٔ خواج
داسړي لهٔ ځانه هیڅ نهٔ لري خوار دي
چې لري واړه دحق کوره بې ساج
ددې ذات صفات عطا واړه دحق ده
داسړے ځکه فقیر یاد دے بې کاج
دے دحق په هستۍ هست لهٔ ځانه نیست دے
هم لاحول لا قوت دے بې علاج
داسړے مثال دنے مولا نایي دے
دنایي پهٔ دم آواز ظاهر لهٔ باج[1]
کل عالم کوره صورت مولا یې روح شهٔ
بې ارواح صورت یې توره شپه ده داج
د صورت بې روحه هیڅ حرکت نهٔ وي
حرکت دحباب نهٔ وي بې امواج
دا انفاس ددریا موج عالم پرې کوبې
پهٔ پوکي سره موجود دتن زُجاج

---

[1] اص: دنای په دم آواز ظاهري له باج

ونفخت من روحي له خدايه واوره
په دا روح ادم لايق له تخت وتاج
په دا روح زنده عليم بصير سميع شه
ورځرګنده شوه د نېک وبد انهاج
د ے مسجود د ملايک هم خليفه شه
د پېريانو بادشاهي يې کړه تاراج
د يو دد ځنې په غرونه تېښته وکړه
ځنو ځنو لره يې زمکه کړه اوراج
پر دریاب يې د کشتيه مرکب روغ که
پرې سواره شي روانېږي تر حجاج
پر خشکي کښې يې مرکب اسپ شتر شه
اوږده لرې پرې کوتاه شي منهاج
د هوا مرغونه کوزکه حيله کر دي
په او به کښې ماهي ونيسي امتاج
فيل وشېر پورې عاجز مايې نهنګ دي
په انفاس کا اژدها غره اعراج

---

له فَاِذَا سَوَّيْتُهٗ وَنَفَخْتُ فِيْهِ مِنْ رُّوْحِيْ فَقَعُوْا لَهٗ سٰجِدِيْنَ ٥ ص ۳۸-۷۲
کله چې زهٔ دے پوره جوړکړم او دخپل روح نه پکښې پوک وهم نو تاسو
دهٔ ته په سجده کښې پرېوځئ -

پهٔ جبال وکښې غارونه لاره وکه
پهٔ حکمت لهٔ کانیو زر کاندي اخراج

اے مخلصه کل حکمت واړه دحق دے
دا انسان وته يې وښو انفراج

---

## حدیث: القناعت کنز الغنا

توجمه: قناعت دغنا خزانه ده

---

کهٔ خبر شي د مولا لهٔ پټه ګنجه!
نور به خلاص شي پهٔ حیات له دستِ رنجه
قناعت توکل لوے ګنج دےکه يې مومي
فراغت پهٔ کړي حاصل له کسب ونجه
توکل قناعت ګنج عطا د حق ده
پهٔ دهر زر نښکر حاصل نشي لهٔ بنجه
وخښتن وته زاري کړه کهٔ يې دړکه
د شاهانو تخت به کم ګوري لهٔ منجه
د شاهانو زړهٔ لړے پهٔ حرص دے
کهٔ يې هفت اقليم پهٔ حکم وي ترنجه

د قانع دل اسوده له حرصه اَزه
لهٔ مولا روزمره تل مومي بې رنجه
چې یقین یې د رازق پهٔ ورکړه نهٔ وي
د ایمان دعوی یې واړه ده باد سنجه
ستا گمان دے چې بې کسبه به خهٔ مومم
دغه کسب خپل رازق گڼې ضلنجه
تا د مور پهٔ نوس کښې کوم کسب کهٔ وایه
اوس کسب گڼې رزق پیسې د ښنجه
ستا هستي قدم لهٔ کومه دي چې ناخې
تهٔ په خوب کښې نهٔ خلاصېږې له فرنجه
تهٔ لاحوله لا قوت قوت دې چرې
کهٔ دانا یې په پردې کالي مهٔ منجه
تهٔ ضعیف جهول یادشوې پهٔ قران کښې
ذر عاجز زبون بیمار شي له نیرنجه
دیوې تبې طاقت نهٔ لرې واروه
بیا لهٔ کبره کوږ دستار کښېږد لهٔ کنجه
کهٔ لږ باد دې پهٔ درون کښې بند شي زاړې
پهٔ علاج یې گهې سونړ خورې گهې هنجه
پهٔ داهسې عاجزئ غره کې مهٔ کړه
وقادر وته عاجز اوسه بشنجه

---

ـه اص : کړی

په دا لاس پښې امید مهٔ کړه غوږ مهٔ شه
په یوه ساعت کښې شل شي له قلنجه
کهٔ مومن یې توکل پهٔ خپل خالق کړه
توکل ښه لار ګوره ستر فنجه
لهٔ اسمانه سنهٔ باران پر زمکه وکا
پر زمین کا ذرغونه غله کا ګنجه
ابر باد مه و خورشید فلک پکار دے
چې میوه غله ظاهر کاندي لهٔ شنجه
کل عالم دستا په زیرمه دے حریص
تهٔ پهٔ رزق پسې روان یې بحر زنجه
دخدائے په عبادت مشغول شه کښېښه
حق به رزق درسوي تل لهٔ لشنجه

اے مخلصه شکرانه دحق پهٔ ځائے کړه
چې پرتا باندې مزید کاندي لهٔ ګنجه

---

کهٔ واقف شې د مومن د زړهٔ لهٔ حجه
حقیقي کعبه به ګورې لهٔ ښحه

دا کعبــه يې حقيقي د نور دریاب دے
محيط شوي له بحنورا هــم لهٔ همجـه
او وهٔ زمــکې آسمانونـه پکښې غرق دي
وراستانو ته څرګند پټ دي لهٔ کجـه
په باطن کښې کج هغه دے کهٔ باور کړې
چې پــر لور د معرفت نهٔ ځې تولجـه
د صفات پهٔ معرفت پورې دوي نښتي[ل]
دي صفات د ذات پرده نور يې مخرجه
د صفات پـه اروېدهٔ يې صبر مهٔ کړه
ځو ديدن دې شي دوزي د ذات لهٔ سجـه
د عاشق پــر زړهٔ کښې صبـر قرار نهٔ کا
ځو ديــدار يې حاصل نهٔ شي لهٔ ابرجـه
عاشقان چې د معشوق ښـــهٔ صفت واوري
د ديدن شوق يې پر زړهٔ کښې شي دمجـه
کهٔ عاشق يې په صفت يې صبر مهٔ کړه
د طعام لـذت بـه نـهٔ مومې بې سلجـه
دے صفت مثال د نها ذات يې قبــه شهٔ
د قبـــه ونـه نظر وکـــړه تهٔ لجـه

---

[ل] اس : د صفات پهٔ معرفت پورې دي تښتي

هیڅ صفات بې ذاته نهٔ دي که پوهېږې
بې افتابه پهٔ جهان توره الدُّجه[1]
ته د اصل طلب وکړه که سړے یې
تل پهٔ صرعه پورې څهٔ نښلې خرخجه[2]
که طالب د محبوبا یې دیدار غواړه
بې دیداره به ورنهٔ شې تر فرجه
بې وزیره له بادشاه اشنایي ګران دے
پر خپل زړهٔ باندې دې وګوره بلجه
معرفت د ذات ربنا صبا دے واوره
پر خاطر به د دیدار نور شي مدرجه[3]
بیا هاله چې له بادشاه سره اشنا شې
د وزیر د وړاندې بږده د سر جلجه

اے مخلصه پهٔ دا نور به ورښکاره شي
د مولا پهٔ هر اشیاء کښې ده غشجه

---

۱؎ اس: الدجه    ۲؎ اس: بخرج
۳؎ اس: صدرج

**حدیث نبوی: الصلوت المعراج المومنین حدیث قدسی: الصلوٰت لمن لا معراج له لمن لا صلوٰت له بدانکه معنے کفر حق پوشی است و معنے کافر حق پوش پس وجود وجهان هر دو حق پوش اند و هر دو حجاب وپرده اند**

نبوی حدیث : مونځ د مومنانو معراج دے - قدسي حدیث: په نمونځ کښي چي معراج نه وي هغه نمونځ نمونځ نه وي. پوه شه چي د کفر معنیٰ حق پوشي ده او د کافر معنیٰ حق پوش پس وجود او جهان دواړه حق پوش دي او دواړه حجابونه او پردې دي -

---

که خبر شې د ړکوتې له عروجه
پر زمین باندې به نکړې د حق لوجه
دا صلوٰت ګوره معراج د مؤمنانو
پاس پر عرش باندې سجده کوي ا جوجه
د هغه چي معراج نه وي نونځ ئې نشته
دا وجود د روح کنده ګوره سهوجه
د مولا په یاد کښې ځان جهان نسیان کړه
د غه نمونځ ذکر اکبر پر زړه ملوجه

دا صورت مثال تیارهٔ ذکر افتاب دے
لهٔ افتابه . تیارهٔ تنبستی دے ماروځه
دغه ځان ګوره کافر جهان حق پوش دے
پهٔ تکبیر تحریمه ځان جهان کړه جوجه
دَ مولا پهٔ هست هست رکوع سجود کړه
پهٔ هر څهٔ کښي د مولا هستي ده موجه
ځان جهان د (دي) یو په جود موجود دے
د اوبو پهٔ نو زرغون وا بنهٔ باد دوجه
پهٔ توفیق قوت دحق قیام قعود کړه
نهٔ لاحوله لا قوت پهٔ ګمان سوجه
ستا طاعت به لهٔ ریا مخ رویه خلاص شي
چي دي محوه پهٔ نظر غیري شي دوجه
ریا یي پهٔ دوګانګی کښي ده باور کړه
موحد یګانه خلاص دَ شرک لهٔ بوجه
اے مخلصه نوس شیطان یا جوج ماجوج دي
دغه ذکر دي لوے سد دے لهٔ یا جوجه

---

له اص : اصل کښي "د المارج" دے خو داسي ښکاري چي
دشوي ضرورت لهٔ مخه یي "ماروج"

د وحدت له یوهٔ بیجه
د کثرت اونه نهیبجه

د اکثرت مثال نبات شه
د وحدت لهٔ آب هیبجه

د نبات اصل اوبهٔ دي
پهٔ آب هست ولاړ پهٔ هیجه

د خپل اصل شناخت فرض شوے
پهٔ طلب ئې شه سیبجه

دا ستا ذات عظیم دریاب دے
تهٔ یو لوے دریا خلیجه

د ناله اصل دریاب دے
لهٔ دریابه دے تخریجه

روح د لوے دریاب ناله دے
پرې سهراب د صورت بیجه

ذرهٔ په دا اوبهٔ پاک نورشي
ذرهٔ پرې وونځه ضریجه

کهٔ دي دا اوبهٔ ترخوله شي
د ذرهٔ مخ به کړي تریجه

دا سخت دل به دي اوبه شي
شي به نرم ستر لیبجه

پهٔ هر چا به مهربان شي
کهٔ نېکو وي یا سمیجه

نېک خواهي به د هر چا کړي
کهٔ انسان وي یا کیبجه

پهٔ یوهٔ نو زرغونه دي
کهٔ حنظل کهٔ سما هیجه

پهٔ هستهٔ د حق آواز کا
کهٔ بلبل توتي[2] دے نیجه

حرکت کل پهٔ هستهٔ کا
کهٔ حمار یا عنا جیجه

هر (یو) رنګ له بې رنګۍ دے
کهٔ زیرشین دے یا تضریجه

د وحدت پهٔ خُم رنګینه
سرجامه دې کا اصریجه

کل کثرت د وحدت کل دے
دا مخلص شهٔ باندې ریجه

---

۱ اص : دوی
۲ اص : طوطی

# في المناجات

تهٔ كريم غني يې خواجه ‏ ‏ زهٔ ضعيف درویش محتاجه
زهٔ ژوندے تل ستا پهٔ دم يم ‏ ‏ بې دې دمه نيست عدم يم
تهٔ عظيم دريا زهٔ نم يم ‏ ‏ ته كريم غني يې خواجه
زهٔ ضعيف ماهي محتاجه
زهٔ محتاج ستا پهٔ كرم يم ‏ ‏ زهٔ نادارہ بې درم يم
ستا پهٔ وركړه ډېر خرم يم ‏ ‏ تهٔ كريم غني يې خواجه
زهٔ ضعيف درويش محتاجه
ته تښتن زهٔ دې بنده يم ‏ ‏ ستا پهٔ دركښې خواهنده يم
ستا لهٔ جوره پابنده يم ‏ ‏ تهٔ كريم غني يې خواجه
زهٔ ضعيف درويش محتاجه
زهٔ پهٔ خواست ډېر كړندے يم ‏ ‏ طمع دار ناسهندے يم
ستا وخوان ته جهندے يم ‏ ‏ تهٔ كريم غني يې خواجه
زهٔ ضعيف درويش محتاجه
تهٔ سخي زهٔ طمع دار يم ‏ ‏ مدام ناست دې پهٔ دربار يم
لوے سائل زهٔ د ديدار يم ‏ ‏ تهٔ كريم غني يې خواجه
زهٔ ضعيف درويش محتاجه

تهٔ طبیب زهٔ تل بیمار یم    دهجران پهٔ درد گرفتار یم
زهٔ لهٔ درده بې قرار یم    تهٔ کریم طبیب یې خواجه
زهٔ ضعیف بنده محتاجه

تهٔ مجیب زهٔ دُعا گوے یم    که دیدار که غبرجوے یم
تهٔ چوګان زهٔ درته گوے یم    تهٔ قوي چوګان یې خواجه
زهٔ ضعیف بنده محتاجه

ماهم لیبي ودُعا ته    زهٔ بنه ستا وبوا ته
که مې پورته کا که کښانه    تهٔ قوي هوا یې خواجه
زهٔ ضعیف بنه محتاجه

زما علم زیات کړې خدایه    زهٔ جهول ظلوم بې رایه
وقدرت وته بې پایه    تهٔ تعلیم قادر یې خواجه
زهٔ جاهل عاجز محتاجه

تهٔ دانا زهٔ لوئے نادان یم    بې خبر له سود و زیان یم
زهٔ بې علم بې زبان یم    تهٔ دانا علیم یې خواجه
زهٔ نادان مخلص محتاجه

---

**دربیان آنکه حقیقتانی را مؤمنان از بهشت خواهند دیدیاند در بهشت ومقام معرفت بهشت آنست هر که**

نخواهد درین بهشت در اید کوکد در پیروی کامل باشد یعنی در اٰید درصحبت او فَادْخُلِی فِی عِبٰدِی ہ وَادْخُلِی جَنَّتِی ہ (الفجرآیت ۲۹-۳۰) اشارت بدین بهشت است شک نیا رید که موجب کفر است .

په بیانِ د هغه حقیقت چې مومنان به يې په جنت کښې ويني يا نه - او د معرفت مقام هغه جنت دے چې هر څوک که وغواړي دې جنت ته راتلے شي خو چې د کامل پیر په پیروۍ کښې وي يعنې چې د هغه صحبت ته داخل شي ( بیا ته زما په خاص بندګانو کښې شامل شه او بيا زما په جنت کښې داخل شه ) دا اشاره هم دې جنت ته ده - په دې کښې شک مه کوئ چې دا د کفر موجب ده -

---

چې نيولے يې د مرشد ګوډ دے باچ
د مولیٰ ديدار به مومي له اجماچ
بنه بهشت د عارفانو معرفت دے
د ديدار ميوه به مومي له دې ملاچ
که طالب د دې بهشت يې په دنيا کښې
د کامل د هغه نمائي بيرمه پري حُه پاچ
پير کامل دانا حکيم دے که باور کړې
روح به خلاص کړي د صورت له بدا[1] ماچ
چاچ صورت ارواح غوړ دي که دې بيل که
د روح غوړ به دې جدا کاندي له چاچ
څو د رياضت په اور کښې پخته نشي
ناسوتي شولے اوړے اوشو ده کاچ

---

[1] اص : ناصوتي اوړکے اوشوده کاچ

چې د طریقت پر لاره روان نهٔ شي
نوس په لوږه خالي نه کا له نتماچ

حقیقت ورته به څرګې ورسېږي
تصفیه به د زړهٔ نه موږي پهٔ ساچ

د فرښتې آواز به نهٔ واروې پهٔ قطعي
چې په غوږ کښې یې دایم د نوس بناچ

چې د سګ آواز په زړهٔ کښې مقام وینو
ملائک د هغهٔ زړهٔ نهٔ شي یېلواچ

روحاني فرښته به حال پر زړهٔ یې ورشي
هر چې زړهٔ په دایم یاد کا سراماچ

چې یې زړهٔ د نفساني وسواسه پاک شي
پرې به وبخښي رحمان خېمه سراچ

چې خېمه د بادشاه وبخښي پر زړهٔ کښې
د دووم بساط به نهٔ شي پاتو راچ

یو الله به یې په زړهٔ کښې تجلّی کا
پرهر لور به وجه الله ګوري پاک اچ

اے مخلصه پر عارفو امر دادے
چې دیار مخ کا په شپږ لوري اناچ

---

## دربیان آنکه توحید و ہستی حقیقتانی کہ یکانگی اشیاء بد و است تا آر ہستی نشناسد واقف توحید الہی نشود و انکہ قانع دل عزیز است و حریص خوار درهر دوجہان -

پهٔ بیان دتوحید اوهستۍ : حقیقت کښې د اشیاو (ذوات) پهٔ هغه دي تر څو چې هغه هستي څوک ونهٔ پېژني هغه د الله دتوحید نهٔ نشي خبریدے او دا چې قانع زړهٔ عزیز دے او حریص پهٔ دواړه جهانه خوار -

---

څو دې نښتې ده پهٔ سر کښې دشرک رحیه
دے توحید وته به نهٔ رسې ملیحه
هره ګوته پهٔ هستیه حرکت کاندي
پهٔ صورت کهٔ څو کندیږي لویه نجه
پهٔ یوه هستۍ کل هست لوے وهلک دي
کهٔ پهٔ تن غټ ترسیمرغ وورشی ترچچه
دحق ذات دے پهٔ معنیٰ دوحدت توره
دواړه کونه پهٔ مانند دي توره نجه
ده هستي دعالم مغز عالم ئې پوست شهٔ
شه بې مغزه څرهٔ پوس سپوره خمچه

تهٔ خپل ځان ګوره هستي که موحد یې
که دې دوښې دیقین سترګې لهٔ لحیه (۱)
د وحـــدت په نو تازه دکثرت‌ونه!
بې اوبه شي سرتاپایه ونه اوچه
کهٔ پهٔ دا حیات لهٔ ژونده خبر نهٔ شوې
پهٔ معنی کښې خپس کم ګوره تر پچه
تل پهٔ حرص (دا) الوده زړګے غشوے دے
د قانع زړګوټے پاک دے لهٔ لالچــه
د قانع بخره په دواړه کونه لوئې ده
د حریص د طامع بخــره کمه کچــه
اے مخلصه د عارف نښان دغه دے
چې سینه یې وې خالی لهٔ غـــله غچه

---

دربیان آنکه ملک طالوت دربنی اسرائیل بادشاه شد بجنگ ملک جالوت فرستاده هنگام تابستان بود ملک طالوت راالهام رسید که درپیش جوی خواهد رسید آمد هرکه ازان جوی یک کف اب بنوشد همراه شما بجنگ جالوت خواهد رسید واز ثواب غزابهره‌مند خواهد شد وهرکه زیاده خورد اب تشنگ شده برلب جوی خواهد ماند اواز دولت غزا بی نصیب و بی بهرا شود .

---

(۱) ص . که دروغ دیقین سترګې للچ

پهٔ بیان ددې چې : ملک طالوت دبنی اسرائیلو بادشاه شو د جالوت سره دجنګ دپارهٔ ولېږ لے شو، دګرمیو ورځې وې ملک طالوت ته الهام وشو چې وړاندې دروکي سیند ته ځان ورسوهٔ چاچې ددغه سیند نه پوهٔ لپه اوبهٔ وڅکلې دجالوت پهٔ جنګ کښې به ستا ملګرے شي او دغزا د ثواب نه به بهرمند شي او چا چې زیاتې وڅکلې دهغوئ ) ترې شول او د سیند پهٔ غاړه پاتې شوهٔ او دغزا د دولت نه بې نصیبه او بې فایدې پاتې شول.

---

تـل دنیـا دهٔ ددفا لهٔ مغـزه پوچـه
دهٔ غولوونـکي بې وفا بناسُته لوچه
لو ئے تونـګر قارون سینه پرې سره نکړه
زرهٔ سوے خواروان شدّاد شه چهوچـه
د ثمود دعاد لهٔ قومـه سره نهٔ تله
لهٔ نمرود فرعونـه پاتو شوه سموچه
د عجم بادشاهان تـرې ځـنې ولاړشو
پـهٔ سـراب د ترې نم نهٔ شي کاکلوچه
دا دنیـا د طالوت رود لښ کړي پهٔ شوکي
د جالوت پهٔ جنګ به ورشي غاړه اونچـه

---

له دا دنیا د طالوت رود که لښ کړي پښوکي )

چې یې دړې اوبۀ وڅښې له دې جویې
مستقي شه په دود پاتوشه له کوچه
د طالوت د ملګرییه پاتو بیل شهٔ
د غازي مرتبه ولاړه حسنې سوچه
نوس کافر ګوره جالوت طالوت ارواح دے
لهٔ طالوته سره مل شه حینبه بوچه
د غازیانو مرتبه به کړې حاصله
کهٔ دې نوس په هوا کم کړځې په کوچه
دا دنیا د نوس کوڅه ده کم پرې ګرځه
د ارواح پهٔ لوړې والوځه کلیوڅه[1]
د نفسک کوڅه پلیته[2] سر تا پا یه!!
د روح باغ دې پر میوه ډک دے لهٔ خوچه
تل پېرو د عقل په تر فرښته دے
شه مطیع د نوس بتې څرګند له تعوجه

اے مخلصه پهٔ دنیا کښې مقام نشته
وعقبیٰ وته رفتن دے کوچ پهٔ کوچه

---

[1] اص : کلوچیه
[2] اص : پلید

قوله المشائخ : طالب الدنيا جاهل و طالب العقبیٰ ناقص وطالب المولیٰ کامل ۔ حدیث نبوي ۔ اهل الجنة تلک ۔ درمعنی ایت کریمه : ما زَاغَ البَصَر ۔ (النجم ایت ۵۳)

دشیخانو قول دے چي ددنیا طالب جاهل دے دعقبیٰ طالب ناقص دے او مولیٰ طالب کامل دے ۔ نبوی حدیث دے ۔ " جنت واله دغه دي " او ددې ایت شریف په معنیٰ کښې چي (دهغه پیغمبر) نظر ونهٔ خوځېد ۔

---

دَ مولا طالب کامل مېړهٔ دے سچه
چي لهٔ دوؤ کونو لهٔ مینې یې زړهٔ بچه
چي یې مینه په دنیا وي لوے جاهل دے
دعقبیٰ طالب ناقصه مړ دے کچه
اهل الجنت تلک رسول ویلي
چي طالب ددیدار نه دے کولو کچه
دوه حجابه ظلماني نوراني داوره
یوه عقبیٰ دویم دنیا کوره برخچه
دمعراج تښتن هغه دے په جهان کښې
هر چي ما زَاغَ البَصَر دے له مرچه
هر چي ملک الموت ددار ورته عرض کا
دے دسترګو نظر نهٔ کا ورته لیچه

د مولی عاشق پر غیرې نظر نهٔ کا
دین دنیا دي د عارف د زړهٔ خفیه
د مړونو د طعام لذت يې څهٔ زده
هغه طفل چې پرتې يې دي پلیه
شو پرک چې پهٔ تیارهٔ کښې خوي نیولے
څهٔ خبر دے لهٔ ضیاء روښانه کچه
لهٔ معراجه ابوجهل سخت منکروُ
ابوبکر د یقین علم زړهٔ هیچه
د صدیق لقب يې وکړانه لهٔ حقه
یارِ غار نوم يې حاصل شهٔ لهٔ سبیه
د یقین ښتن عزیز پهٔ دواړه کونه
د گمان بخره پهٔ دووکونو پلیه

اے مخلصه لوے یقین لهٔ مولی غواړه
چې د نوس هوايُ نهٔ کاندی پهٔ بچه

---

قوله نوری علیه رحمت الله ما رایت حجاباً اعظم من بین عبده و مولاه سوی الدنیا حدیث النبی صلی الله علیه واله وسلم ز طالب الدنیا لا یکون طالبا المولیٰ ایضاً لعنت الله فی الدنیا وما فیها الامن یذکر الله فی الدنیا کان محبت الدنیا و اصله هو النفس۔

---

دنوريؒ قول دے چې ما دبنده اوخدائے ترمنځه ددنيا نه بغير بل لوئ حجاب ونهٔ ليدو ۔ حديث النبي صلى الله عليه وآله وسلم ددنيا طالب دمولیٰ طالب نهٔ شي کېدے ۔ سيوا د الله د ذاکر په دنيا اومافيها لعنت دے ۔ د دنيا دمحبت اصل نفس دے۔

---

مثنوی حضرت جلال الدين رومیؒ

اب درکشتی هلاک کشتی است
اب اندر زیر کشتی پشتی است

ترجمه:-

---

په کشتۍ کښې اوبهٔ دکشتۍ دهلاکت سوب دے
او دکشتۍ لاندې اوبهٔ دکشتۍ دپشتۍ سوب دے۔

---

کهٔ نن خلاص شې د دنيا له بده کچه
دمولا نه به دوان شې پاک له ځچه
دبنده دخدائے ترميان بل حجاب نشته
بې دنيا چې لويه ګورمه له پيچه
د دنيا طالب دخدائے طلب کار نهٔ وي
دمولیٰ طالب پرې ليښے ددې پيچه
هريو څيز چې شي حجاب ديار له مخه
عاشقان تر هغه توپ کاندي بلبچه

دادنیا مولیٰ یاد کړي په لعنت ده
چې پکښې دي بې ذاکره[1] اونخه نیچه[2]
محبان د دنیا عین دنیا دار دي
که خوراک يې نان جوین وي یا کلیچه
دا دنیا د زړه د لاندې څه پکار ده
پرې د پاسه د زړه بند کانده وریچه
دا دنیا مثال او به زړه یې کشتۍ شه
په کشتۍ کښې او به زیان سوا له مچه[3]
د دنیا اندېښنه مه پرېږده په زړه کښې
د دنیا اندېښنه سپېره کښه رېچه[4]
چې د نفس هوا يې ترکه کړه مېړه دے
که يې ږیره وي پر مخ یا په سرېچه[5]
د لیچن سترګې به چرې او نه ګوري
څو بنه نشي په تلقین له بده لیچه[6]
اے مخلصه د نفسک هوا کېچې دے
بې مولا به ردي څوک خلاص نه کا له کېچه[7]

---

۱ اص: بې الذکر ۲ اص: نیچه ۳ اص: مبچه ۴ اص:
۵ اص: پیچه ۶ اص: ییچه ۷ اص: یچه

# في المناجات

پر خاطر دې نفساني اند ښښنې ريچه
په خپل ياد ئې کړه له تخته کوزه ښيچه

دخپل ياد ن مبحځ پرېڅي راځکوه چې ووځي
ورته وتړه دخمس حواس دريچه

مګر ستا رحمت ئې پيش کا تر سابقو
په عمل خوی يم تر ټيچو لا ډېر پيچه

که دا ستا جذبه مې ونيسي له لاسه
له سابقو به سابق شم زر په ګريچه

چې تا وړاندې کړه سابق مقربان شوه[2]
که ئې ډېره وي پر مخ يا په سر ښيچه

---

لغات : باندې . [2] وَكُنْتُمْ اَزْوَاجًا ثَلٰثَةً ۝ فَاَصْحٰبُ الْمَيْمَنَةِ ۙ مَآ اَصْحٰبُ الْمَيْمَنَةِ ۝ وَاَصْحٰبُ الْمَشْئَمَةِ ۙ مَآ اَصْحٰبُ الْمَشْئَمَةِ ۝ وَالسّٰبِقُوْنَ السّٰبِقُوْنَ ۙ اُولٰٓئِكَ الْمُقَرَّبُوْنَ ۝ فِيْ جَنّٰتِ النَّعِيْمِ ۝ الواقعه ۵۶ ايت : ۷، ۸، ۹، ۱۰، ۱۱، ۱۲

ترجمه :- او تاسو به درې قسمه شئ يو اصحاب الميمنه (يعني هغه خوش بخته ډله ده چې اعمال به ورته په ښي لاس ورکړے شي) دا اصحاب الميمنه څومره خوش بخته دي. او يله ډله د اصحاب الشمال ده (دا هغه بد بخته ډله ده چې اعمال نامه به ورته په ګس لاس ورکړے شي) دا اصحاب الشمال څومره بدبخته ډله ده او دريمه ډله د سابقون ده هم دا سابقون مقربان دی او دوی به د نعمتونو په باغونو کښې دي -

چې قالین دَ حساب وغوړوي په حشر
بنهٔ مریم به اول وریښي پر لیچه
د مخلص تمام امید ستا په کرم دے
د ذرهٔ باغ يې دیقین په آب ورسیچه

---

ذات حق چتر عسل و عالم مانند خانهٔ زنبور، وآنکه محبت به زر و سیم دارد روح مانند موش وصورت سوراخ او ، روز قیامت بصورت موش خواهد شد .

---

د حق ذات د شاتو گبین او عالم د مچو دکور په شان دے هغه څوک چې دَ زرو او سپینو محبت لري د هغه روح د مږ ي په شان او صورت يې د سوري پشان دے - د قیامت پهَ ورځ به د مږ ي په شان وي -

---

کهٔ سړ نه یې د کامل په آوان پاڅه
د غفلت له خوابه ویښ خوشحال شه ناڅه
کل عالم دیار مظهر دے په شان لوري
د حق ذات پکښې عسل جهان دے پیاڅه

هغه کس چې نن مائل پر زر و سیم دے
په معنیٰ کښې روح مړ ک صورت یې راخته
که بد نوس کراس د زرۀ برم ته وکه
ته په ډېر جهاد کړه خلاص د زړګي بناخته

اے مخلصه په ذات اب په صورت یخ یې
د توحید په نور اوبه شه نن و څاخه

---

## دربیان اینکه ایت و حدیث جواهر بی بها است وانکه بیش زر دوست خوانی خشنود نشود ۔

---

په بیان د ایت او حدیث چې بې بها جواهر دي او دا چې که زر دوست ته یې ولولې نو خوشحالیږی پرې نه ۔

---

د دنیا په زېرمه تند کرځې په کوخه
د دین کار دې په سستۍ کښې کورم پوخه
په ظاهره موړ یېټ کرځې په دنیا کښی
په باطن کښې وږے خوار هر کوره لوخه

هر ایت حدیث جوهر که ورته کښېږدے
خوښ پرې نهٔ شي بې د سیم وزرپهٔ خوځه
زر ورته ده له فرعونه پاتو شوې
دانائي مې د نبي صلی الله علیه وآله وسلم ورته ده هوځه
دا د علم چراغ تل لره د وړاندې
په دا نور به ورځرگند وي سم نگرو ځه
د دانا په نظر لهو ولعب هیڅ دي
د هلک خوښي په د ېره لوبه موځه

اے مخلصه چې ئې زړهٔ پر زر مایل وي
پهٔ باطن ئې روح موشک صورت ئې بنوځه

---

دانانه دے له جهانه بې خبر هیڅ
ورځرگند وي این جهان وآن دیگر هیڅ
حقیقت د کل اشیاء ورته ځرگندو !!
پهٔ دووکونو نظر نه وکړهٔ سرور هیڅ
دواړه کونه دي حجاب د حق پهٔ لار کښې
پهٔ شمشیر دلائې مه پرېږده اثر هیڅ

ذرۀ مهر څنې واخله که دانايې
د ښتن په نسبت ملک وي سراسر هيڅ
چې يې رنګ د بې رنګۍ دهر ګوره کښنوت
کل رنګونه د اشياء دي په نظر هيڅ
بې رنګي د کل رنګونو اصل خم دے
دے د اصل په حضور بناخ د شجر هيڅ
د مهتاب نور له افتاب دے باور وکړه
د افتاب د ورانديې نور دے د قمر هيڅ
د نفسک خوښي لذت شراب شهوت دے
د ارواح د ته خوښي ده د بشر هيڅ
په خدائے خوئ ددې ارواح خوښي ده قطي
د ماغزۀ لذت يهتر دے د قشر هيڅ
د خدائے خوي د کل خويونو مغز زده دے
له دې مغزه واقف نۀ دے جاهل خر هيڅ
د دانا خوشي په علم په حکمت ده
د نادان تو فهمه زدکړه ده هنر هيڅ
د نادان مينه په مال خوښي پر زر ده
د جاهل بې هنر مال فاني دے زر هيڅ
دے حکمت خيراً کثير که خدائے يې درکا
د دنيا متاع قليله ده اکثر هيڅ

هغه خیز چې عاقبت له نا جدا شي
دل بستګي په هسې ځین پورې شته هیڅ

---

دربیان انکه اهل ناسوت که ازجبروت واقف نیستند، صورت ظاهررا درمی پابند واز دریافتن باطن که آن حقیقت است بي بهره یابند وجنش را می بیند وجنبیده از ایشان نهان است وآوازی شنوند ازصاحب آواز بی خبر اند وکامل رحمت برعالمیان است.

ناسوت داهلو په بیان کښې چې دجبروت نه ناواقفه دي ظاهر صورت يې مونده وي. او دباطن چې حقیقت دے د مونده نه بې برخې وي. حرکت وینې خو محرک نهٔ وینی - آواز اوري خو دآواز د ښتن نه بې خبره وي او داچې کامل دخلقو دپاره یو رحمت دے.

خبر نهٔ دے ناسوتي له جانِ جان هیڅ
ظاهربین دے واقف نهٔ دے لهٔ زمان هیڅ
جنبش ګوری جنبدهٔ ځنې نهان دے
آواز اروي اګاه نهٔ دے لهٔ ګویان هیڅ

د باطن سترګي يې نشته چي پټ ګوري
دا هر سترګي بنيانه دي په پنهان هېڅ

ارواح پټ صورت ښکند دې په جهان کښي
لهٔ حياته ني خبر نهٔ دے نادان هېڅ

حرکت دليل د ژوند دے په صورت کښي
لهٔ محرکه واقف نهٔ دے هر حيوان هېڅ

(۱) مرکب ګوري (چي) پټ دے لهٔ حيوانه
سور مرکب (يُ) څهٔ غيب نهٔ دے لهٔ انسان هېڅ

معرفت د سړي بخره باوجن دے
د ثقلين (۱) عبادت دے بې عرفان هېڅ

ځان جهان سره يو ځان په مولا هست دي
بې هستيه قائم نهٔ وي يو زمان هېڅ

د ځپل ځان عرفان د حق عرفان دے قطعي
فريقين پوري ښکند دے چي ګمان هېڅ

دا سړي په تش ګمان ګني زهٔ زهٔ يم
په هستي د حق موجود بې هستي وران هېڅ

د هستيه طلب وکړه لهٔ کامله
بې کامله غم خوار نشته د جهان هېڅ

پير کامل رحمت د حق دے په عالم کښي
طالبانو وته نهٔ پريږدي ګمان هېڅ

دَ کامل یقین اوبهٔ دي گمان خیرے
دَاوبهٔ دوړاندې خیرے دابدان هیځ
د گمان له بده چرکه به نن خلاص شې
د رحمت نښان تر دا نشته عیان هیځ

اے مخلصه کاملان مهربان ډیر دي
پر مرید مهربان نشته تر روښان هیځ

---

فی وصف اسرار ثابت . ایت کریمه . فَاَنْزَلَ اللّٰهُ سَکِیْنَتَهٗ علیٰ رَسُوْلِهٖ وَعَلَی الْمُؤْمِنِیْنَ وَاَلْزَمَهُمْ کَلِمَةَ التَّقْوٰی (فتح ایت ۲۶)[۱] ایضاً لَا یُحِبُّ اللّٰهُ الْجَهْرَ بِالسُّوْٓءِ مِنَ الْقَوْلِ[۲] (النساء ایت ۱۴۸) حدیث مَنْ خَرَجَ کَلَامُ اللَّغْوِ والفحش بِلَا فهم فَهُوَ م و ډ د[۳] ایضاً جمال الرجال فصاحت اللسان[۴] ایضاً المرء محبوب تحت لسانه[۵] .

(۱) الله تعالیٰ په خپل رسول او مسلمانانو باندې ارام او جمعیت نازل کړو او په دوي ئې د پرهیزګارۍ خبرې لازم وګرځولې -
(۲) الله تعالیٰ په وازه خوله د چا بد ویل یا غیبت کول نهٔ خوښوي (۳) خدائے پاک بې هوده او فحش خبرې اوهغه خبرې چې خپله پرې پوهٔ نهٔ دی اوبل پرې پوهوي نهٔ خوښوي (۴) د یو سړي جمال د صفت د ژبې فصاحت دے ، (۵) یو سړے د خپلې ژبې دلاسه محبوب کېدے شي .

که ته ډېر په يوه ياد کړي موحد ئې
دے هر يو له يوه دلته کښې بسيار هيځ
هر چې ډېر په ډېرئې ياد که عيب ئې نشته
چې تنها ځان په ډېر ياد کاندي تکرار هيځ
موحد په يګانه کلام څرګند دے
د مشرک کلام پرېشان دے ناهموار هيځ
د ميړه کلام جمال د فصاحت دے
بد کلام لره بناسته نقش ونګار هيځ
د مؤمن کلام دے پاک له شرکه فحشه
لوار کلام فحش په زوره د کفار هيځ
شريعت ثابت کلام د پيغمبر دے
ناروا کلام به نه وائې ديندار هيځ
چې د لغوه کلام ووائې بې فهمه
بې هوده کاندي طاعت د کردګار هيځ
لوے ملعون سړے هغه رسول ويلے
چې له فحشه وېنا نه لري انکار هيځ
د کلامه زغري ګرانه ده تر هر څه
په خبرو فهم نه وي د اغيار هيځ

---

اص : دي هر يو له يول دي بسيار هيځ

دسرېي عيب و هنر کل پوشيده دے
بې کلامه ښکاره نهٔ شي پټ اسرار هيڅ
نيک و بد تر ژبې لاندې دي باور کړه
پهٔ گفتار پورې څرگند شي چې اشرار هيڅ
داسړي پهٔ کلام بزرگ دي لهٔ حيوانه
بدگفتار سړے بهه نهٔ دے تر دُم دار هيڅ
داسرار پوهه داوړې پيغمبر ده
دمعراج پهٔ شپه چې نهٔ وُ بل دربار هيڅ
خاص ياران رسول صلی الله علیه واله وسلم خبر کړل لهٔ دې پوهې
دعامې وته راز نهٔ وائي هوښيار هيڅ
اے مخلصه د اسرار پته خبره!!
ميا روښان پوشيده نکړه لهٔ خپل يار هيڅ
هرچې فهم پهٔ گفتار کا هغه يار دے
دبې فهمه پهٔ ياری دے کاروبار هيڅ

---

دربيان اين رباعي که پير دستگير درصراط توحيد اورده است .

پهٔ بيان ددې رباعی چې پير دستگير پهٔ صراط التوحيد کښې راوړې ده -

---

کر شدی سلطان عالم باز چیست
گنج قارون جمع کردی باز چیست
چون یقین دانی که مردن لازم است
تا قیامت زنده مانی باز چیست

---

که د ټول عالم سلطان شې نو بیا څه
که د قارون خزانه راجمع کړې نو بیا څه
هر کله چې په یقین سره پوهیږې چې مرګ حق دے
نو که تر قیامته ژوندے پاتې شې نو بیا څه

---

چې اخر له تا جدا شي مال و زر څه
چې له مرګ به پرې خلاص نشې دېر بنګر څه
که په دېر بنګر کوشش مسخر ملک کړې
چې اخر شي له تا پاتو ملک کشور څه
چې په مرګ رنځ بن شریک درسره نه وي
زن فرزند کره اواره مادر پدر څه
چې دګور ملونه به نه وي په تیاره کښې
په دنیا کښې خویش عزیز خواهر داور څه
په اخر له سره پرېوزې کوز پر زمکه
پاس په سر له کبره کون هسې افسر څه

---

له اص ؛ به یَ

کهٔ حشم خدم دې ډېر وي څهٔ پکار دي
چې په ګور کښې دې خدمت نهٔ کا نوکر څهٔ
چې د مرګ د غشي تیغ پرې منع نهٔ شي
زغره خول چلقد جېبه زانوبند سپر څهٔ
چې له عمره مرېد ۃٔ پهٔ جهان نشته
کهٔ زرکاله وي حیات یا ډېر بشتر څهٔ
کهٔ شاهي تر نمرخاتهٔ پرېوا ته ستا شي
چې آخر حتي رحلت کړې سراسر څهٔ
چې آخر دې پر زمین کښې وي استوګه
کهٔ پر زمکه باندې پورته کړې لوړ کور څهٔ
چې پر زمکه دې نماستې وي بې نهالیه
اوس دې سرته ډک بالښت ورېښمین بستر څهٔ
چې اخر دې جنازه پهٔ مرکب سور شي
نن سورلي پهٔ بیل شتراسپ و استر[1] څهٔ
چې پهٔ ګورې توري خاورې وي پهٔ خوله کښې
کهٔ پهٔ ډېره مینه خورې مېږې ثمر څهٔ
چې زوړ والې رنځ له تا پسته نهٔ کا
پهٔ صورت باندې جامه اطلس زېور څهٔ
چې اخر دې شوي سپین کفن اغوندې[2]
نن زرین حریر اغوستې پهٔ بشر څهٔ

---

[1] اص : بهٔ ې

[2] دڅه آخر د شوي سپین کفن اغوند

چې په تښت حصار له مرګه نهٔ خلاصېږې
په مېدان کښې ورته ودره حــــزر ځـهٔ

اے مخلصه اوس رضا د قضا ورکـــړه
زهٔ تر دا عمل بل نهٔ وينم بهـــتر څـهٔ

---

**در ترجمه حديث نبوی مَنْ اَحَبَّ شيئًا اَکْثَرَ ذِکْرَهٗ) ذوقی حديث قدسی : انا جليسُ معهٗ (من) ذکرنی حديث . لِکُلِّ شيٍّ سببٌ و سبب معرفت ذکراللّٰه تعالیٰ .**

(دې نبوي حديث په ترجمه کښې ز يوسړے چې د کوم څيز سره مينه کوي نو اکثر يې ذکر کوي . په قدسی حديث کښې راځي چې زهٔ د هغهٔ سره يم څوک چې زما ذکر کوي . حديث ز د هر څيز يو سبب وي او د معرفت سبب د اللّٰه تعالیٰ ذکر دے (ر دا حديث نهٔ دے د صوفياؤ قول دے .)

---

دَ غفلت له خوبه ويښ بېدار شـه پاڅه
د خپل يار په ياد مشغول بسيار شه پاڅه

لوئے نښان د محبت ذکر دايم دے
د دوستانو په قطار شمار شه پا څــه

پهٔ نفي خزان کړه ځان جهان کل محوه
د اثبات پهٔ نور تازه کل ګلزار شه پاخه

کهٔ تهٔ خواست د حضورېږه لري وارو
نو د ذکر پهٔ دلدل سوار شه پاخه

د ذکر پښته لاره عین ده وحق ته
پهٔ دا پښته لار روان بسیار شه پاخه

حق جلیس له ذاکرانو دے باور کړه
پهٔ مجلس د حق داخل حصار شه پاخه

بشه سبب د معرفت شه دایم ذکر
نو پهٔ نور د معرفت انوار شه پاخه

دایم ذکر تل پهٔ ژبه ممکن نهٔ دے
پهٔ خفي ذکر مشغول زنار شه پاخه

دَ زړهٔ ذکر دے خفي حق پرې خبر دے
پهٔ پټ ذکر د خپل زړهٔ غمخوار شه پاخه

نوس شیطان لوے قاصدان د زړهٔ پرتخت دي
تهٔ هر دم ورته بېدار هوښیار شه پاخه

اے مخلصه لوے دولت دے د خدائے ذکر
پهٔ دنیا کښې د دولت خزین ار شه پاخه

---

## دربیان آنکه تا به مرگ معنوی نمیرد بوصل دوست نه رسید وچون از وجود خود خلاص شد مظهر ذات وصفات حقیقتا نے گشت .

دا بیان چې په معنوي توګه مړ نشي دَدوست سره به وصل نهٔ شي او کله چې دخپل وجود نه خلاص شو نو دحق د ذات او صفاتو مظهر وګرځېد .

---

ن دیار په دیدن خوش خوشحال شه ناشهٔ
له هوسه کړه سماع قوال شه ناشهٔ
تهٔ خیال دَ بل ځینې مه پرېږده په زړهٔ کښې
کهٔ عاشق يې درست دیار په خیال شه ناشهٔ
پس لهٔ مرګه د مولا وصال محال دے
پیش لهٔ مرګه لهٔ جانا وصال شه ناشهٔ
دستا ذات صفات وحق وحق يې وډکړهٔ
نهٔ لهٔ خپله ځانه نیست کنګال شه ناشهٔ
چې (دا) دروند بار امانت لهٔ سره واخلې
نور مظهر د ذات صفات افعال شه ناشهٔ
حق فعال ته يې آلت ددهٔ په لاس کښې
پهٔ قوت دحق قوي ګوپال شه ناشهٔ

پهٔ خپل خواست قوت اختیار له میانزواخلي
ن پهٔ لاس کښې د جلال جمال شه ناځهٔ
حق دې رب ته یې مربوب پهٔ دواړه کونه
تهٔ د رب رحیم مربوب عیال شه ناځهٔ

تهٔ خپل کاروبار ن وسپاره وحق ته
د مخلص پهٔ څېر دایم خوشحال شه ناځهٔ

# في المناجات

تهٔ علیم حکیم قادر یې پرتا چار نهٔ دی مشکل څښتنه
تهٔ پهٔ کُن هرڅهٔ موجود کړې ستا پهٔ کار نشته شامل څښتنه
تهٔ خالق د انس وجان یې هم د زمکې د اسمان یې
تل پر زیرمه د جهان یې پر زمان نهٔ یې عاطل څښتنه
مهربان تر مور و پلار یې پر سړي هم پهٔ جان دار یې
مسافر ددې دګل وخار یې ته پکار نه یې کاہل څښتنه

تهٔ غني سړے فقیر دے کهٔ بادشاه دے کهٔ قدیر دے
له تا خواست د میر نامیر دے بې بهرٔ نهٔ دے سائل یم

بې سواله دې عطا ده ستا نظر د مس کیمیا ده
د فقیر رجا پهٔ تا ده پهٔ احوال نه یې غافل یم

درست تمام درته ښکاره یم ستا پکار کښې هیڅ کاره یم
و نفسک ته بېچاره یم پهٔ عمل د روح عامل یم

زهٔ ناکس یم تهٔ مې کس کړه د نفسک هوا مې پس کړه
د رحمت مې پهٔ جوش کړه خپسر نهٔ گورم قابل یم

زهٔ توفیق غواړم لهٔ تا نه اے د دوو کونو سلطانه
تهٔ توفیق راکړې د ما ته تو دا بهره نشته حاصل یم

ستا توفیق د عمل سیاره بې سیاره بویې بې کاره
تهٔ توفیق راکړې کوتاره بې دینه نشته لیدل یم

زهٔ مادح سایل یم خدایه ستا په خوان مایل یم خدایه
پخپل حال قایم یې خدایه ستا د خوان نشته زایل هیڅ

د مخلص دعا قبول کړه د مقصود کارې حصول کړه
پهٔ خاصانو یې دخول کړه پر تا چار نهٔ ده مشکل یم

# درمعنی این بیت شیرازی

غنیمت شمار این گرامی نفس
که بی مرغ قیمت ندارد قفس

دنفس سخا یو غنیمت وګڼه ځکه چې
قفس بغیر د مرغی هیڅ قیمت نهٔ لري

در ترجمه ایت کریمه فرقان :- وَمَا أَسْأَلُكُمْ عَلَيْهِ مِنْ أَجْرٍ إِنْ أَجْرِيَ إِلَّا عَلَىٰ رَبِّ الْعَالَمِينَ ۝ (الشعراء ایت ۱۰۸)

او زهٔ پهٔ دې ستاسو نه څهٔ صله نهٔ غوارم زماصله
خو د رب العالمین پهٔ ذمه ده -

کهٔ تهٔ نوش کړې د عرفان له پیاکر راحه!!
د صورت قدر یه وینې لمه ارواحه!!
د قفس (خو) بې توتي هیڅ ابرو نهٔ وي!
د قندیل عزت څرګند دے له مصباحه
بقائي د صورتونو پهٔ ارواح ده
بې او بو ماهي هلاک (دے) لهٔ اُحاحه

روح مقیم ناله دلوے دریاب روانه
دصورت ژرند پرې کرځي څو صباحه

کهٔ لږ ډېر اوبه ترحد شي کم وزیاته
زر د زرکاندي روحال شي بې صلاحه

دا بې مشله اوبهٔ یو یو مرید کوري
چې مرشد یې ورته وړي لهٔ مجاجه

دنـــبي وارث هغه عالم بـلـلے
چې پهٔ لاس یې دلدن علم مفتاحه

چې لهٔ ځانه مرید نیست پهٔ مولیٰ هست کا
دپیري نامه جامه بانذي مباحه

هر چې طمعه لهٔ مریده کا څه غواړي
دشیخی نامه یې نهٔ ده پرې صحاحه

هیڅ نـبي ترې دشیلو واجرنه غوښت
وارثان یې له رازق کا استماحه

چې دَ دین پهٔ کار دنیا کا نذي حاصله
پهٔ قیامت یې نصیب نشته لهٔ فلاحه

چې قدم یې دمرسل پهٔ قدم البنيے
د روښان روښنايي زیاته لهٔ وحاحه

---

ے اص : لدون

دا مخلص یې د رحمت په نظر وکوت
په جامه کښې نه ځایږي له مراحه

## درمعنی این حدیث

## عامة[1] الناس مرضی[2] والشیخ الکامل طبیبة

دَدې حدیث په معنی کښې چې عام خلق مریضان دي او کامل شیخ طبیب دے۔

لوے بې مثل زره روښان کورم له یو حه
چې څرګنده دَ باطن لار شي وضوحه
دَ آفتاب په نور بر سره مخ روښان شي
دَ زره نمر ته دي درون بیرون مفتوحه
دَ بې مثل زره تر هر څه نظر پریوزي
دَ کلام معنی ښکاره کوري مشروعه

---

[1] اص۔ عامیون

[2] اص : مریضه

زړهٔ آلت دمعرفت دے بنه یې ژغوره
چې شیطان نفسک یې نهٔ کاندهٔ جروحه
کل د نوس شیطان وسوس پو زړهٔ پرهار دے
د پرهار علاج بهٔ ذکر کړه مجرو حه
د مولیٰ ذکر ملهم د خوږو زړو خو
د ذاکر زړګي نجات بیا موندله طوحه
د غافل زړګے مجروح حلاجي نهٔ زده
لهٔ وسوسه یو زمان یې (دے) رکوحه
پیر کامل د زړهٔ طبیب عاصي بیمار دے
خفي ذکر یې دارو دي له صبوحه
د غفلت لهٔ امراضونو به ناجي شي
کهٔ دے درګه[1] د پټ ذکر تر صبوحه
د غه معنی د حقیقت کهٔ دې روزي شي
ماهیت به دَ آشیاء کورې دد روحه
حیواني نباتي بل جمادي واروه
پرې موجود کوره حیوان نبات ملوحه
حقیقت د هر اشیاء ورته څرګند شهٔ
دے مخلص کشائش بیا موند له فتوحه

---

[1] اص : درکه

در بیان انکه مرده دل کیے است که محبت حقیقانی ندارد اگرچه به ظاهر زنده است اما در باطن مرده ز حدیث : انا ملیح و یوسف صبیح ور در معنیٰ ایت کریمه : وَلَقَدْ خَلَقْنَا الانسانَ فِیْ اَحْسَنِ تَقْوِیْم۔

---

پهٔ بیان دَمرده دل ز مرده دل هغه دے چې حقیقي محبت نهٔ لري ۔ (داسي کس) اګرچې پهٔ ښکاره ژوندے وي ۔ مګر دښه مروي حدیث : ‌ زهٔ نمکین ښکلے یم او یوسف ښکله د نمر یا درنها پهٔ شان ښکلے وُ ۔ ددې ایت کریمه پهٔ معنیٰ کښې چې ز انسان خدائے پاک ډیر ښکلے پیدا کړے دے ۔

---

بن حاصل کړه دَ ژوندون دم له مسیحه
چې مرده زړهٔ دې زنده شي له تسبیحه
مرده دل سړے ژوندے پهٔ مړهٔ شمیر سے
چې دحق محبت نهٔ لري صریحه
محبت دحق نمک د زړهٔ پهٔ خوان کښې
افسرده زړګے طعام دے بې ملیحه
چې دَ محبت پـه بوی معطر نهٔ دے
بـڅ مرده زړهٔ ئې ریحان دے بې ترویحه

ښا ښُسته يوسف صبيح سرور مليح وُ!
د مليح خوبي ښښتس وي تر صبيحه
د انسان په باب احسن تقويم نازل شه[1]
په معنا ګوره زيبا صورت قبيحه
د مهتاب په نور آرام د خاطر نهٔ شي
د انسان په دور ګويا نه دے فصيحه
ښهٔ انسان په ګويايي عقل ښتس شه
په صورت تر نور حيوانو دے ترجيحه
سواليه له چار عنصره جن لهٔ اور
د ارواح فرښتي صورت پيدا لهٔ ريحه
هيڅ صورت بې ماده نهٔ وي په عالم کښې
په جهان کښې چې سياه دے يا ښهيجه[2]
د ارواح فرښتي صورت پټ خس خوا دے
ديو پيرے دے د سړي دښمن کسيحه
يګانه بېګانه وپيژنه څهٔ دے
روح ملک دے يګانه ديو دين کسيحه

---

[1] لَقَدْ خَلَقْنَا الْاِنْسَانَ فِیْ اَحْسَنِ تَقْوِیْمٍ ٥ التين ٩٥-٤
ترجمه : مونږ انسان ډېر ښکلے پيدا کړو

[2] اص : په جهان کښې چې سياه دے يا ښهيجه"

پهٔ بلا محنت غمناک مهٔ شه مخلصه!
د سړی پهٔ غم اندوه شیطان تفریحه

# فی المناجات گوید

زهٔ بیمار تهٔ لوئے حکیم یې ستا حکمت ظاهر واضحه
پهٔ قدرت حکمت وګورم شوره زمکه شي صالحه

زما تن دے شوره زمکه اے ددوو کونو سالکه
پهٔ قدرت یې مرغزار کړه اندرون هم جوارحه

زړهٔ مي خلاص کړه له غفلته ستا قبول دي بې علته
زهٔ صحت عاقبت غواړم تهٔ دَهر مشکل فاتحه

تن مي ډیر ضعیف بیمار دے په وسواس مي زړهٔ ګرفتار دے
له وسوسه یې فارغ کړه تهٔ ممدوح سایل مادحه

مدح ګوے سایل محتاج دے کهٔ پرسر یې ایښے تاج دے
کهٔ عالم یې شي پهٔ حکم زړهٔ یې دن دے نوس طامحه

داسړي کل فقیران دي کهٔ ګدائے یا بادشاهان دي
امیدوار ستا له کرمه کهٔ صالح دے یا طالحه

د مخلص رنځ لا دوا دے پهٔ عظیم درد مبتلا دے
مګر تهٔ یې علاج وکړه زړهٔ یې سور کړه بادبارحه

بمیر تا برہی اے حسود کین رنجی است
کہ از مشقت او جز بمرگ نتواں رست

---

اے حاسده مړ شي چي ازاد شي ځکه چي دا یو دنګ
دے او ددې تکلیفه علاوه له مرګه خلاصے نشته

---

په ظاهر علم که ځان کوري دا سخنه
نن حاصل کړه پټ علوم له مشائخه
په ظاهر علم که هر څو رسیده شي
بې باطنه خپس بت کوري بې مخنه[1]
شریعت مثال شجر حقیقت ثمر دے
بې له نوه اونه اوچه شي بې زخه
څو د حقیقت مایه پرې کړه نه کا
خام شوده د شریعت شي اخر تخه
ظاهري علم بر سر مخه صفا کا
باطني علم زائل کا له زړه رخه

---

[1] اص (ق) بې باطن خپس نوبت کوری بې مخنه

چې کينه حسد غيرت لري په زړه کښې
مبتلا په غم اندوه لري له سخه
د کينې په رنځ ګرفتار دے نه پوهيږي
د حسد رنځ لا دوا ګنه تر زخه
درنده صفت د سګ يا د ليوه دے
دا مؤمن له ځانه سګ لري کړه چخه
نوس تمام د سګ صفت لري په ځان کښې
په جيفه پسې تيز ګرځي تر سيزرخه
په مراد سره جنګ تل سبا بېګاه کا
تر تمام پرهار رشحه کا نسکه نخه
له شاهانو حسد مکړه که سګ نه يې
سرنګون به کيشته پريوزې له شا مخه
چې ئې عدل انصاف نه وي په کشور کښې
با دشاهان ناحق په سر ږدي تاج کوټ مخه

حقاني باد شاه هغه ګڼه مخلصه
د يار مخ ګوري ښکاره له هره مخه

فی معنیٰ ایت کریمه ز وکانَ اللّٰهُ عَلیٰ بُکُلّ شَیٍّ مُحِیْطاً ۱ (انساء ایت ۱۲۶) ایضًا فَاَیْنَمَا تُوَلُّوْ فَثَمَّ وَجْهُ اللّٰهِ ۲ (البقره ایت ۱۱۵) در معنیٰ حدیث نبوی ز الناس غرق بماء الحیاته لا یقد ربشرٌ اِلا بید ه المرشد الکامل ۳ ایضًا . لِکل شیٍّ سببٌ ومسببٌ شیخ الکامل ۴

---

(۱) خدائے پاک په هر شي محیط دے (۲) تا سو چې چرته مخ کړئ هغه خوا د الله تعالیٰ ذات دے . (۳) نبوي حدیث : ټول خلق د حیات په اوبو کښې ډوب دي هیڅ سړے بغیر د کامل مرشد د امداد نه ددې اوبو نه وتے نهٔ شي . (۴) د هرڅیز سبب وي او (ددې دپاره) سبب کامل شیخ دے .

---

دحق ذات تر تا چاپیر دے رُخ لهٔ رُخه
پر هر لور دے وجه الله مخ درته مخه
وعارف ته پهٔ ښېن لوري تجلّي کا
بې مولا کورم عدم کاني کلوخه
دیوهٔ پهٔ هستي هست تمام عالم دے
دَ اوبو پهٔ نو تازه دے خرما لوخه
د هستیه نو تر هر چا رسید لے
پهٔ دا نو کورم قایم شوله شموخه
چې هستي دمولا نهٔ کوري پهٔ ځان کښې
پهٔ معنیٰ کښې بې خبر حیوان کالوخه

بې مرشده به دغه اوبهٔ ونځښې
د هستیه علم زده کړه له شیوخه
کهٔ طالب دکوثر جوی پهٔ صورت کښې
پهٔ جهان کښې کړه حاصل مرشد رسوخه
نن صورت د معرفت پیر کامل دے
بې مرشده د عرفان پیاله ده سوخه
وکامل وته تر مال وسر ورتېر شه
دهستیه خراشکے لرې کړه دتوخه
دنیستیه تښتن سپک پر اوبو ګرځي
د هستیه صاحب سر تر پایه شوخه
د درویش مذهب نیستي حق پرستي ده
د خودي هستي وینا (ده) پرې منسوخه
د خودیه پوست کهٔ لرې کړې لهٔ ځایه
د مولا هستي به وګورې مسلوخه
له مغزو تمام صورت دوغ شي مخلصه
درسته اونه شي ظاهر له یوه خوخه

ایت : وَقَالُوْا قُلُوْبُنَا فِيْ اَكِنَّةٍ مِّمَّا تَدْعُوْنَا اِلَيْهِ وَفِيْ اٰذَانِنَا وَقْرٌ وَّ مِنْ بَيْنِنَا وَبَيْنِكَ حِجَابٌ فَاعْمَلْ اِنَّنَا عٰمِلُوْنَ ہ السجدہ ایت : ۵

در معنی حدیث . من یدخل نفسه فی العبادت لم یدخل جسده فی النار ابداً - حم السجده ایت ۵ - در معنی حدیث من یدخل جسده فی النار ابداً - (چا چې خپل نفس په عبادت کښې داخل کړو د هغهٔ بدن به د همېشه د پاره په اور کښې داخلېږي -)

او دوي وائي چې زمونږ زړونه د پردو دننه دي . د دې خبرې نه کومو ته چې تاسو مونږ راغواړئ او زمونږ غوږونه بند دي . او زمونږ او ستاسو ترمينځه يو حجاب دے . ته خپل کار کوه او مونږ به خپل کار کوو -

چا چې خپل نفس په عبادت کښې داخل کړو د هغهٔ بدن به د همېشه د پاره په اور کښې نه داخلېږي -

---

د جاهل زړکوټي سخت کورم له لا خه
چې ترخوله يې شي ظاهر وېنا گستاخه
د زړهٔ حال تل په گفتار پورې ښکاره شي
په کاله کښې څېز توصېږي له سورا خه
غابن بکر ژبه يې پنه دے که باور کړي
سوزنده وېنا يې اور ده يې څخما خه

لهٔ خدايې گفتار ئې خوله تنګه تړلې
پهٔ غيبت فحش کلام ئې خوله فراخه
د عرفان ګفتار ئې نهٔ دروي و زړهٔ ته
د غافل غوږ ونه ډک دي له صما خه
چې کامل د معرفت کلام اغاز کهٔ
د جاهل زړګې پرهار کاندي صد شاخه
د راحت امید دې نهٔ کاندي لهٔ خدايه
هرچې پرېوت د کامل د زړهٔ لهٔ کاخه
خفي ذکر معرفت شهٔ باسندي سېل
د رسمي دنيا طاعت لهٔ ډېره طاخه

څو (دا) نفس ذرهٔ ئې پهٔ ذکر شاغل نشي
و مخلص ته د صورت عبادت ماخه

---

در بيان اثبات ونفی ماسوی الله نکتها اثبات حقيقتا قی
نتوان نمود تا غبار غيرت را ازميان برندارد روی دوست بی حجاب
نتواندید چون حجاب ماسوی الله به تيغ لااله برطرف شد الاالله
رامکشوف کرد

---

داثبات او د ماسوی الله د نفي په بيان کښې : هرهغه کس د حق د اثبات نکتې نه شي موندلے چې ترڅو د غيرت ګرد له مينځه لرې نه کړي - دوست بې حجابه نه شي ليدلے کله چې د ماسوی الله حجاب د لا اِلٰه په تېغ غوڅ شي الا الله مکشوف شي .

---

په هر څه کښې به تابان ګورې ديار مخ
په (دا) لا نفي نفي کړه د اغـــيار مخ
بد ګمان د غيريت تر ميان غبار دے
شرک غبار کړه بر طرف ګوره اظهار مخ
که حجاب د غيريت له ميانـه واخلې
پر هر لور به عيان ګورې د نـګار مخ
چې موجود دې په يقين کښې غير نه وي
ځان جهان به يې (تل) ګوري د دلدار مخ
د نفي اثبـات معنې به ورښکاره شي
په مولا به ګورې هست د ګلو خار مخ
(دا) د بو په هستي هست هرنيک وبد دے
په عالم کښې (که) سياه دے يا انوار مخ
د بېرنګ په خم رنګين دے باور وکـړه
په جهان کښې سور فربه دے يا نزار مخ

د نفي اثبات معنیٰ دغه یقین کړه
چې موجود بې خدایه نشته پټ اشکار مخ
حق د هر څیز دے باطن څیز یې ظاهر دے
یو باطن دے چې ظاهر شه په هزار مخ
تن ظاهر ارواح باطن د هر صورت دے
د او بو پر رنګ رنګین شه د ګلزار مخ
کل ظاهر او باطن یو ګوره په ځان کښې
په خفي ذکر که پاک کړې د منظار مخ
که د زړهٔ سترګې بینا کړې وبه ګورې
موجود نشته بې مولا په هر دیار مخ

کُل اشیاء مثال آرسي مظهر د حق دے
په هر څه کښې مخلص ګوري دخپل یار مخ

---

بیان فی ایت کریمه : هُوَ الْاَوَّلُ وَالْاٰخِرُ وَالظَّاهِرُ وَالْبَاطِنُ (حدید آیت ۳)
ایضًا وَاَشْرَقَتِ الْاَرْضُ بِنُوْرِ رَبِّهَا (الزمر ایت ۶۹) در ترجمه حدیث :
خلق العالم مِن ظلمةٍ ثُمَّ رشَّ علیه مِنَ النور

---

د دې ايت کريمه په بيان کښې. هغه اول او اخر دے او هغه ظاهر او باطن دے. ايضاً - او زمکه به د خدائے په نور ځليږي.
حديث : عالم خدائے د تيرو نه پيدا کړو او بيا ئې پرې د نور
چړکاو وکړو.

---

که په ذره کښې د رڅرګند شي دايـقان مخ
نور به نه ګوري په وجود کښې د ګـمان مخ
تاريـکي له مخه يوسي بې د رنـګـه
چې څرګنـد شي د افتاب په دا جهـان مخ
که افتاب د معرفت دې په ذره وخوت
پټ څرګند به عالم ګوري د جـانان مخ
هر ظاهر به د باطن په سـترګو ګوري[1]
ديقين په ديد به وينې پټ پنهان مخ
دا عالم ظاهره تن باطن ارواح دے
په ارواح ګوره باطن په تن اعيان مخ!
حق اول آخر ظاهر باطن موجود شـه
وعارف ته ئې څرګند که پټ اعلان مخ
دمولا په نور روښن د زمکې مخ دے
هم په نور دمولا زيب کا داسمان مخ

---

[1] اص : هر ظاهر به د ظاهر باطن پسترګي ګورے

دا جهان کوره نیستي مولا هستي ده
له نیستیه شهٔ ظاهر د جانِ جان مخ
دا عالم کل له نیستیه څرګند شوے
دا نیستي عین هستي وینم تابان مخ
نور هستي ظلمت نیستي (ده) که داور کړې
له ظلمته شهٔ ښکاره د نور روښان مخ
هستي پټه په نیسته کښې ده یقین کړه
په صورت د تن (دې) پټ څې روان مخ
د نیسته په شراب مست شې او به ګورې
په عدم کښې بې ذواله جاویدان مخ
پټ معدوم ظاهر موجود دې وجاهل ته
و دانا وته ښکاره پټ شهٔ عیان مخ
ممتنع وجود موجود په جهان څرې
یو واجب وجود موجود شهٔ درخشان مخ

---

دربیان آنکه درباغ کثرت هیچ گاه مانند انسان نیست بصورت نه برسیرت لیس کمثله شئ - وایضاً وَخَلَقَ اللّٰه آدمَ علیٰ صورته[1]
بیت اذری علیه ارحمت اذری [2] ایت اللّٰه کلام ناطق یم .[3]
ما کلام اللّٰه عالم سر بر تعبیر ماست [4]

---

(۱) په بیان دکثرت دباغ چې په صورت او سیرت کښې هیڅ ژوندۍ سر یکښې د انسان برابر نشته - هیڅ څیز ددهٔ په شان نهٔ دے - ایضاً الله تعالیٰ آدم په خپل صورت پیدا کړو -

(۲) بوج زما په دهٔ باندې دے - ایا کهٔ تاوکړو رحم زما پهٔ بوج باندې مونږ دخدائے پاک خښتې یو او دصفهٔ ناطق کلام یو -

(۳) مونږ دخدائے پاک خبرې یو او دراز عالم زمونږ تعبیر کونکے وے -

---

څو عجب د نور دریاب دے دمولا مخ
لهٔ امواجه ئې کثرت شهٔ هویدا مخ
بحر پټ امواج ښکاره شهٔ ونظرته
له غایبه شهٔ رنګین د دې صحرا مخ
د کثرت ګلونه رنګ پهٔ رنګ ظاهرشو
د انسان پهٔ څېر وبل نشته زیبا مخ
پهٔ صورت سیرت ئې نشته پهٔ دا باغ کښې
په دوه لاسه ئې رغ کړے خود خدا مخ
حق پهٔ خپل صورت جوړ کړے دے رسول دے
هیڅ اشیا ئې پهٔ مانند نهٔ دے رعنا مخ
درست صورت ئې دقرآن لهٔ حرفو روغ دے
نن ګویا قرآن څرګند د اصفیا مخ

پهٔ صورت کښې ګوهرونه يُ آيات دي
مجموعه دا اياتونو شـه صـفا مخ[1]
لوے ايات يُ پهٔ صورت کښې بيناسترګې
چې پهٔ کسې کښې يُ ځاے شـهٔ دسـما مخ
اروېدهٔ يُ بل ايات د ربـانی دي
درخرګند شي پهٔ ګفتار د زړهٔ اخفا مخ
ګويا يې بزرګ ايات دي پهٔ وجود کښې
له حيوانه شه ممتان پهٔ داګويا مخ
بويا يې د محکمه[2] ايات پهٔ تن کښې
چې له نورو ګلو بيـل کا دبويـا مخ!
بل ايات مشبهات[3] يُ لاميـه دي
پرې خبرېږي د صورت درست مصفا مخ

---

[1] (ص) : (مجموعه د اياتونو نش صفا مخ)

[2] محکم ايتونه :- محکم ايتونه د قران شريف هغه ايتونه دي چې دلغت او بيان لهٔ مخه معنیٰ او مطلب يې واضح وي او تـاويل ته يُ حاجت نهٔ وي -

[3] متشا به ايتونه - متشابه ايتونه د قرآن شريف هغه ايتونه دي چې هغه ديوې معنیٰ نه علاوه د نورو معنو احتمال هم لري يعنی تاويلونه يُ کېدے شي - (الاتقان) داسې ايتونه پهٔ فهم کښې مشکلات لري - او ددې وضاحت دلويو عالمانو کار دے -

كه په تن باندې دې نرم ښخېز وبلوسي
يا پرې ورشي دګرمۍ يا دسر ما مخ

كه درون سبک ښخېز باندې پرېوځي وچوېږي
دا ايښان شه په صورت كښې داحبا مخ

نور شپږ ايات يې پټ دي په صورت كښې
د باطن په ايات پوه دے ددانا مخ

نور ايات يې علم عقل بل حيات دے
پرې ښر ګند شي دبقا هم دفنا مخ

ارادت قوت يې لويه نښاني ده
چې قوي صاحب اختيار شي نګارا مخ

دانسان صورت ايات دي سرتاپايه
دقدرت په قلم كښلے دل ربا مخ

چې يې داقران صحيح ولوست مخلصه
نښانزې ربه، تحقيق كه دمولا مخ

---

# في المناجات گويد

---

ددرويش حاصل ستا مخ دے زيان يې مه كړې دحاصل مخ
چې بې تا په ټو خوښيږي هغه كس دے ناقابل مخ

چې دنیا غواړي جاهل دے چې عقبا غواړي عاقل دے
چې یې ذرهٔ یو تا مبین دے دا نښان دے د کامل مخ
هر چې غواړي له تا مومي که هندي ترک دي یار و مي
بې بهره بیارته نه درومي که استوار وي د سایل مخ
که ستا دره پوینږدي وسي د مقصود گوهر به ذر یوسي
چې له دې دره گردان شه تل به خوار وي د جاهل مخ
بې عزته په هر در وي ترهر چا به یې ځای لر وي
چې د حق له دره واوښت بې حرمت شه د غافل مخ
نن عزت هغه مومن لے چې یې لاس له غیرو وللے
چې یې توکل په تا که نه به کوري د سافل مخ
مخلص ستا په وصف قائل دے زړه یې ستا په حب مائل دے
د خپل حب بخره یې وکړه خجل مه کړې د قابل مخ

---

فی معنی ایت کریمه : يُسَبِّحُ لِلّٰهِ مَا فِي السَّمٰوٰتِ وَمَا فِي الْاَرْضِ الجمعه ایت ۱ . وَلٰكِنْ لَّا تَفْقَهُوْنَ تَسْبِيْحَهُمْ . بنی اسرائیل ایت ۴۴.
وانکه اشیا مظهر حق اند . و فی الحقیقه درالشیان . گویا و بینا و شنوا و دانا اوست وانکه حق سبحانه ، تعالیٰ قادر مطلق است اشیاء را بی زبان گویا و بی چشم بینا و بغیر دل دانا داند .

---

هم د دغه یو الله پاکي بیانوي څه چې په اسمانونو او ځمکه کښې دي - البته تاسو د دوئ په تسبیح نه پوهېږی -
څیزونه د حق تعٰ مظهر دے او په حقیقت کښې هغه په دوي کښې گویا ، بینا شنوا او دانا دے - حق سبحانهٗ په څیزونو مطلق قادر دے - دے بې ژبې گویا ، بې سترگو بینا او بغېر د زړهٔ دانادے -

---

هر اشیاء چې پر زمین یا به سما دهٔ
کل د حال په ژبه ذکر کاگویا دهٔ
د نبي او ولي غوږ پرې شنوا شوے
د منکر د غوږو پمته دانا دهٔ
کل اشیاء د شه مظهر دے په شېږ لوریه
شه په هر څهٔ کښې گویا شنوا بنیا دهٔ
بې ژبې همیشه خبرې کاندي
هم بې غوږو په جمله اواز شنوا دهٔ
او بې سترگو هر څهٔ گوري په عالم کښې
هر اشیا چې په اسفل یا په اعلیٰ دهٔ
روحاني محبوب په هر څهٔ کښې گویا شو
په هر ځا کښې ئې د خپل قدرت ثنا دهٔ
شه بې ژبې گویایي واشیاء ور کا
دېر د ژبې تښتن گونگے کاندي توانا دهٔ

د لړم ګروه ده چې سترګو اشیاء د ګوري
مار چې غوږ و شنوا شوے له او ستا ده
د سرې چارپا ئے صورت له اوبو روغ کا
دپس چې مارغهٔ مني شوي له باده
سمندر لهٔ اوبو دوغ پهٔ اور کښي وسي
د ماهي ژوندون استوګه پهٔ دریا ده
لو ئے اسمان ئې پهٔ هوا باندې قائم کړه
د قدرت نښان څرګند دے ادم زاده
بشهٔ افتاب' مهتاب' چراغ پرې باندې کړهٔ
بل ایات ئې د قدرت تنا برېښنا ده
کوز پر زمکه چې د کانیو غروسه ایښي
او زمین پاس پر اوبو باندې برپا ده
د اوبو درياب پر باد باندې ولاړ دے
دجهان ستن ئې څرګنده دا هوا ده
نورعالم ئې پر هوا باندې قائم کړهٔ
دا هوا ویم پر هیڅ باندې استاده
دحکیم کمال حکمت دلته څرګند شهٔ
چې پر هیڅ باندې (یې) هسې دا بنا ده
چې دا هسې حکمت وګوري مخلصه
دے به څهٔ رنګ منکرېږی له میعاده

ایت : وَمَا خَلَقْتُ الْجِنَّ وَالْاِنْسَ اِلَّا لِيَعْبُدُوْنِ ۝ الذاريت ۵۱- ایت ۵۶

و فی حدیث لانه مسولٌ عن المعبود ولا عن العبادت ایضاً

خیرالطلب طلب الله وخیرالعمل ذکرالله تعالیٰ ایضاً - لا یقبل

عبادت العبد بغیر معرفت الله وان کان فی العباده الف سنه

ځکه چه د قیامت په ورځ د معبود په باره کښې تپوس کیږي نه چې

د عبادت د حقیقت په باره کښې . په طالبونو کښې ښه طلب د الله دے

او په ښه عملونو کښې ښه عمل د الله تعالیٰ ذکر دے . بغیر د معرفت نه

د بنده هیڅ عبادت نه قبلیږي . که په زرګونو کالو عبادت یې وي -

د دنیا په طلب څه ګرځې بې هوده

لوئے حجاب سد د دنیا شو له مقصوده

ښه مقصود د معرفت دے له دې ژونده

تا قبله کړه د دنیا متاع نابوده

د دنیا دولت نابود دے بود یې نشته

په شماره باقي څو روځې دي معدوده

پیش له مرګه معرفت د ذات حاصل کړه

پس له مرګه ده پوښتنه له معبوده

که دې د معرفت حاصل ونه کړې

پس له مرګه به ارمان دریغ کړې ممدوده

بې فایده به دریغ ارمان کړې سود به نه وي

ن طلب د مولا وړاندې کړه مسعوده

له خلقنا

ترهر فرض سن د مولا طلب فرض شوے
کل بندګي د بنده بې شناخته لاهوده
بهترین طلب د حق طلب یا د شوے
تر مولا پرتا لذیذ حلوا یا لوده
چې د حق طلب دې پرېښود دنیا غواړي
په طلب ئې مست بېخود ګرځي ربوده
هیڅ له ځانه له جهانه خبر نهٔ شوي
چې هستي د اشیا وڅه په څهٔ موجوده
څو هستي د ځان جهان ورښکاره نهٔ وي
د انسان صفت دې نشته بې نموده
څو صحبت د پیر کامل دې حاصل نهٔ شي
په نمانځه به خبر نهٔ شي له وجوده
عبادت د اسلام رسم ترک ئې مهٔ کړه
نتیجه به جنت بیا موبي خلوده
معرفت به بې کامله حاصل نهٔ کړي
مونده نهٔ شي له قیام رکوع سجوده
کهٔ نظر د پیر کامل درباندې وشي
وبه ګورې د جمله ساجد مسجوده
د یقین په سترګو غیر ې موجود نشته
حقیقت د اشیاء یو رے نا محدوده
اے مخلصه د محبوب تجلّا ګوره
و محبت په شپږ لوري رو برو ده

# در وصفِ پیرِ کامل و ناقص و وصف انہا

دَ کامل او ناقص پیر دَ وصف پهٔ باره کښې

دناصح نصیحت و نغوږ ه سعید ه
ئې حاصل کړه پټ علوم (د زړهٔ روښني ده)
پټ علوم دحقیقت لهٔ پیره زده کړه
دَ باطن علم دهر علم ګُنجي ده
ماهیت دکل اشیا به درخبر کند کا
د ے دعلم بخل نهٔ کا لهٔ مرید ه
پرې همه شاوګدا مرد و نساء دي
د تلقین پهٔ خوان ئې ناست ساوو عبید ه
لهٔ مرید سره وعده د معرفت کړه
چې وحق ته به نزدې ژر شې بعید ه
د وصلت وحدت لهٔ پوهې به خبر شې
کهٔ عمل کړې ژر به ورشې تر توحید ه
ئې وعده دګور قیامت له یاره نهٔ کا
چې فردا به نجات درکړم لهٔ وعید ه
نهٔ ضامن دګناهونو بې توبې شي
پهٔ توبه ستر جرائم پربوځي لهٔ جیده

تېر گناه به خدائے دروبخښي بې شکه
که له نوره جرمه پاک خلاص شې جريده
مرتبه دَملکوت به پېې روزې شې
په طاعت زهد به مينه کا شديده
شېطاني وسوس به نه پرېږدي په زړهٔ کښې
نفساني فکر به کاله زړهٔ بريده
بسته در دَجبروت به پرې کشاد شې
ملکوت دجبروت دَ دَر کليده
دروحانو حقيقت به ور څرگند شي
مقيم روح دحيوان يو جاري تفريده
دَمقيم په مزې هر حيوان پرې يلے
يکانگي په مقيم روح وينم بديده
جاري روح دهر انسان جدا جدا دے
ځکه خون دحسين وشه له يزيده
رنځ راحت له جاري روح سره موجود دے
مقيم روح له دوارو خلاص په تن دميده
چې دروح مقيم له اصله خبردار شي
لاهوتي نامه سپرده بانډې صحي ده
معرفت مقامي ځيل شه بې گمانه
بينائي د زړهٔ دې بيا موندة عتيده

د قربت طلب دې وکا چې عارف شي
نزدیکي له دورئ بهـه له مجیده
نو دیکان دې زړوصلت وته روان شي
له قربته دَ وصلت خوبني مزیـده
هـر سړے به یې په سو زغمې مخلصه
د توحید پیاله ده مسته له ا نبیده

ایت : رَبُّ الْمَشْرِقِ وَالْمَغْرِبِ لَا اِلٰهَ اِلَّا هُوَ فَاتَّخِذْهُ وَكِيلاً
مزمل ۷۳ - ایت ۹ -
حدیث : مَنْ سَرَّهُ اَن يَّكُوْنَ اَغْنَى النَّاسِ فَلْيَتَوَكَّلْ عَلَى اللّٰه

هغه د مشرق او مغرب رب دے۔ د هغهٔ نه علاوه بل معبود نشته
او هم هغه خپل کارجوړونکے ونیسئ) -

---

قانع دِل په دواړو کونو عزت بیامونه
چې یې زړهٔ له حرصه ازه خلوت بیامونه
توکل یې په خاطر کښې قرار وینـو
چې یې زړهٔ له ماسوىٰ فراغت بیـا مونه

چې يې کاروبار ځيل وسپارهٔ وحق ته
نن هغه له کاروباره فرصت بيا مونده
لږ طاعت به يې قبول په هر طاعت شي
چې يې ذره په لږ دنيا قناعت بيا مونده
هر چې توکل په خدائے کا بې کمانه
دے مومن د رب رحيم محبت بيا مونده
دواړه کونه په خدمت درته ولاړ وي
چې له حقه يې توفيق د همّت بيا مونده
دين دنيا دې په همت پورې تړلے
د همت تښتن هر چرې حرمت بيا مونده
توکّل دلوئے همت تښتن اختيار کا!!
کم همّت سړے له کسبه محنت بيا مونده
نن کاسب حبيب الله د دين کاسب دے
چې په کسب د طاعت يې جنت بيا مونده
لوئے کاسب حبيب الله عابد زاهد دے
چې د زهد په سبب يې نعمت بيا مونده
هر چې کسب د دنيا پرېږدي زاهد شي
زاهدانو په محنت آخرت بيا مونده
که قربت غواړې تر دواړو کونو تېر شه
مقربو پرېښوول کښې قربت بيا مونده

پهٔ وصلت کښې ځان جهان حجاب له دوسته
عاشقانو پهٔ فنا کښې وصلت بیاموند
چې سایه یې د توحید په نمر شوه محوه
واصلانو بې ګمانه وحدت بیاموند
اے مخلصه توکّل د توحید پهل دے
موحد لهٔ د غه پهله لذت بیاموند

---

## وآنکه قیمت قالب روح است و قیمت روح ازمعرفت الله

---

د قالب قیمت روح دے او د روح قیمت د الله د معرفت نه دے .

---

هر طالب چې لهٔ کامله باور بیاموند
د یقین پهٔ حاصلو یې بصر بیاموند
بصیرت د ذرهٔ لهٔ علم پهٔ یقین دے
د باور پهٔ اندازه یې نظر بیاموند
پټ عالم کل د یقین پهٔ دید لیدهٔ شي
د یقین تښتن د غیبه اثر بیاموند
موثر پهٔ هر اثر کښې دلبري کا
بینا دل پهٔ هر اثر کښې دلبر بیاموند

کل نقشونه د نقاش دي په عالم کښې
هر صنعت یې و صانع ته رهبر بیاموند
هر کل د هنري مظهر دے قطعي
هنري یې په هنر کښې اظهر بیاموند
تر حادث پورې قدیم وجود معلوم شهٔ!
په تیارهٔ پورې یې قدر د نمر بیاموند
لهٔ ظاهره کل باطن ورته څرګند شهٔ
کل ظاهر یې د باطنو مظهر بیاموند
بې مثلي د مثل او نه مثل بر دے
په ثمر کښې یې ظهور د شجر بیاموند
بې معنې د صورت هیڅ حرکت نهٔ وي
د معنې سیې په صورت کښې شهپر بیاموند
بې شهپره مرغه کوم پروازي پر ځمکه
په دا شان یې دا هستیه بس بیاموند
حرکت د استین چرې وي بې لاسه
حرکت قیام اجسام په جوهر بیاموند
مقیم روح ګوره جوهر تن پرې قائم دے
د دے خاکي صورت له روحه قدر بیاموند
روح قیمت د معرفت په سبب موبي
چې یې نن له خپله ځانه خبر بیاموند

ددهٔ ذات دحق هستي چې پرې خبر شي
پهٔ حيات يې اب جوئ دکوثر بيا موند
هر کلام يې هدايت دمعرفت کا
دے مخلص له ميا روښانه هنر بيا موند

درمعنیٰ ايت کريمه - وَمَا أَدْرٰكَ مَا الْحُطَمَةُ ○ نَارُ اللّٰهِ الْمُوْقَدَةُ ○
الَّتِيْ تَطَّلِعُ عَلَى الْأَفْئِدَةِ ○ الهمزه ۱۰۴ - ايت ۵،۶،۷

تکلف گر نباشد خوش توان زيست
تعلق گر نباشد خوش توان زيست
دانی که بر سمند سپکير وسوار چيست
عمر عزيز ماست که برباد ميرود
چې سفر د تنهايي کړې د وړاندې
بې هوده پهٔ زن فرزند دلبستگي کاندې

---

ترجمه: او تاسو ته څهٔ معلومه ده چې حطمه څهٔ څيز دے دخدائے
نکولے اور دے چې زړونو ته به رسي -
کهٔ تکلف نهٔ وي کولے شي چې ته به ښهٔ ژوند تېر کړې - تعلق که نهٔ وي.
کهٔ پوهېږې چې په تېزدو اس سور څوک دے - دا زمونږ خوږ ژوند
دے چې برباد تېرېږي -

وابستگي پهٔ مال وملک سختي د مرگ ده!
د اشنا پهٔ بېلتون شلېږي د زړهٔ مراندې
حطمه د دوزخ دیار هجران یاد شوے
پس لهٔ تاوه يې زړهٔ جوش کالاندې باندې
د هجران د اور لهٔ تاوه د زړهٔ وینې
له جوششه پاس تر سترګو شي دواندې
سوزنده آه يې لمبه دے تر خوله خېژي
د لمبو له تاوه واڼې د سوز ساندې
سخت عذاب د روح بېلتون دے له دوستانو
لکه غوښه د ژوندي سړي پرې کاندې
کهٔ د زړهٔ په داعالم وابسته نهٔ وي
د رحلت پهٔ وقت پهٔ غم کړه تر پښو لاندې
دَ وصال هوس به داولې په زړهٔ کښې
نور عالم که ژړا غم کاته به خاندې
پهٔ دنیا کښې قراري د هیچا نشته
خلقه ځي د عقبیٰ وته بیاندې
کهٔ اشنا درسره مل وي خوښ به د دومې
او بې یاره د زړهٔ وڅلې سوځي تاندې
دم قدم دي شب وروز پرې روانیږي
داوبو پهٔ دود پرې ځوړ د دومې بهاندې

دسړیو صورت او نه د کشتیه
د هوا په دریاب ځو ورځې چلاندې
مرګ پټې دي د دریاب د ے زړه ور شي
چې د باد په مرکب سورځې په ځغلاندې
خلقه پر کشتي ناسته روانیږي
په ګمان کنه دایم یم په ځائے باندې
مرګ استاځے د مولا راځي مخلصه
د سړي عمر پښتوا ورځې دوړاندې

مراد خواندن (قرآن) معنیٰ یا فتن است و مراد آنها عمل است و مراد
عمل مغز اینها اخلاص است هر که معنیٰ قرآن نداند نتیجه تلاوت
بدو نرسید -

---

د قرآن د لوستلو نه مراد په معنیٰ پوهېدل دي بیا ددې نه
مراد عمل دے او د عمل مغز اخلاص دے - څوک چې د قران په معنیٰ
نه پوهیږي نو دوئ ته د تلاوت هیڅ فائده نه رسي -

---

چې هادي رهبر قران لري د وړاندې
په دنیا کښې لوئے سلطان لري دوړاندې
په تاریکه شپه چراغ لري په مخ کښې
په دریاب کښې دیده بان لري د وړاندې

پهٔ قران کښې ښهٔ رفیق درسره مل دے
ود ښېښنه تهٔ تیر کمان لري د وړاندې
دیو شیطان له هغهٔ تښتي چې یې لولي
له زیان کاره لوئے امان لري د وړاندې
هر آیت یې صحت بخش د تن وجان دے
دعیسی د مایه خوان لري د وړاندې
قرآن نور دے له اسمانه نازل شوے
دغه نور مومن روښان لري د وړاندې
کل ظاهر باطن به وګوري پهٔ دهٔ کښې!!
که عین کهٔ تنله د فرقان لزي د وړاندې
بې معنیٰ به د قرآن لذّت نهٔ مومي
بیا چې شک حجاب ګمان لري د وړاندې
بې دانشه عمل نهٔ شي له عامله
د معنیٰ زدکړه انسان لري د وړاندې
پهٔ خږه لوستن قاري نجات نهٔ مومي
بې عمله لوستن زیان لري د وړاندې
ښهٔ قرآن د پوهېدو د پاره لولي
پوه سړے عمل عیان لري د وړاندې
بې اخلاصه عمل پوچ ګنهٔ مخلصه
د اخلاص توغ مخلصان لري د وړاندې

دَرصفتِ پیرِ کامل کہ مانند نورِ افتاب است و مانند
مرید کہ مثل بینائی دارد .

---

دکامل پیر په صفت کښې چې د نمر دنور مثال لري او مرید
چې د بینایئ مثال لري .

---

چې کامل هادي رهبر لرې د وړاندې
پهٔ تیارهٔ کښې چراغ نمر لرې د وړاندې
د توحید بادیکه لار به درښکاره شي
کهٔ د ذرهٔ فکر نظر لرې د وړاندې
د افتاب په نور به هله جهان کوري
که بینا سترګې د سر لرې دوړاندې
بینایئ لره د دوڅو نور بایده وي
کـه پهٔ شپه بینا بصر لرې د وړاندې
دَدنیا په ظلمت سرائې کښې به غلط شې
مګر نور د پیغمبر لرې د وړاندې
پهٔ دوه کونه به پیشوا شې که باور کړې
کهٔ پهٔ کار ګفتار سرور لرې د وړاندې
کامل نور د پیغمبر روښان رهبر دے
کهٔ پسې ئې دنور نمر لرې د وړاندې

---

لهٔ اص : "که پسې دنور دنمر لرې د وړاندې

پهٔ دالاره تنها مهٔ ځه بې رهبره[1]
کهٔ پوهېږې ډېر خطر لري دوړاندې

بد صحبت عظیم خطر دے پهٔ دا لار کښې
ځنې تښتهٔ که حذر لرې د وړاندې

د ناقص پیروي مهٔ کړه که[2] خبر یې
د شیطان پهٔ لار ضرور لرې دوړاندې

اشتغال بې معرفته لوے ضرر دے
بې عرفانه طاعت غر لري دوړاندې

بې عرفانه عبادت د نور حجاب دے
بې نمازي حجاب کذر لري دوړاندې

ستا طاعت به لهٔ نقصانه بې خبر شي
که عرفان د طاعت سپر لرې د وړاندې

معرفت به له کامل مومي مخلصه!
کهٔ طاعت خدمت[3] باور لري د وړاندې

---

[1] اص : "پهٔ دالار تنها مه ځه بې رهبره
[2] اص : رهبر [3] اص : خذمت

# في المناجات گويد

ته عظيم يې خپل عظمت لره د وړاندې
وعاصي ته مغفرت لره د وړاندې
چې عاجز درمانده پريوځي ستا پر در کښې
ته رحيم يې مرحمت لره د وړاندې
چې سائل گدا سوال له تا عطا کا
ته کريم لوئے مکرمت لره د وړاندې
که دعا زاري عاجز کا له خوا ربه
ته مجيب يې اجابت لره د وړاندې
کم همت سړے که لږ له تا څه غواړي
ته بخشش خپل بې غايت لره د وړاندې
که ضعيف بيمار له درده کميله وکا
ته غني ډېر عنايت لره د وړاندې
که مظلوم عاجز له ظلمه فريادي شي
ته عادل يې عدالت لره د وړاندې
که مطيع د نفس تعجيل کا وگناه ته
ته ساکن يې سکونت لره د وړاندې

کهٔ جاهل زیان کار د زیان دُعا لهٔ تا کا
تهٔ دانا یې منفعت لرې دورانديږ
کهٔ نادان مضل له سمې لارې کړ ځي
تهٔ هادي يې هدايت لرې دوراندې
کهٔ سړے مروت نهٔ لري جاهل دے
تهٔ عالم يُ مروت لرې دوراندې
کهٔ مخلص بنده له نازهٔ شوخي وکړي
ته صاحب يُ ځپل رحمت لرې دوراندې

---

کهٔ راوځې دَ دنيا د سرېښن لهٔ ډنډه
دعقبیٰ پهٔ ملک به توغ ونيسې[1] جنډه
بې جذبې دحق خلاصې نشته لهٔ ډنډه
نور تدبير کل په پټکي لهٔ ودکړه[2] کنډه
لوے همّت جذبه دَحق ده کړ يې کورې
ددُنيا دولت به کل کا پهٔ زړهٔ ډ ښنډه
لوے باقي دولت دانش دمعرفت دے
ددنيا دولت په خُوړځي تېز تر کنډه

---

[1] اص : ونخنى
[2] اص : لودکړ

عارفان دهر اشیا حقیقت گوري
په جهان کښې که اګراؤ نه یا جنګ ده
د مولا پس لاره تنګ پر شواخون دے
بیا عقبی دنیا چې دواړه پرسو پنګه
که مولا عواړي خره جریده دومه!
او ددے لار پرخړه روبانډې شي لنډه
د بارداری اوني بناخ مات شي له باره
د زوال له باره خلاصه اونه شنګه
د مسلم نشان ترکنه داد ے مخلصه
چې په زړه ئې کینه نهٔ وي تره ړنګه

---

فی ایت کریمہ ؛ اِنَّا عَرَضْنَا الْاَمَانَتَ عَلَے السَّمَاوَاتِ وَالْاَرْضِ وَالْجِبَالِ فَاَبَیْنَ اَنْ یَّحْمِلْنَهَا وَاَشْفَقْنَ مِنْهَا وَحَمَلَهَا الْاِنْسَانُ ط     (الاحزاب ۳۳ - ایت ۷۲)

مونږ د امانت اسمانونو زمکې او غرونو ته وړاندې کړو - پس هغوي ټولو ددې د وچتولو نه انکار وکړو او ویرېدل - او انسان پخپله ذمه واخیستو .

آن بار که از سبردن آن عرش ابا کرد
با قوّت تو حاصل ان بار توان کرد

هغه بار چې د وړلو نه يې عرش غاړه وغړوله
نو ستا په قوت به هغه يوړے شي .

د معنیٰ ايت : وَمَن يُّؤْمِنْ بِاللّٰهِ يَهْدِ قَلْبَهٗ (۱)

التغابن ۶۴ - ايت ۱۱ :
(څوک چې په الله ايمان لري الله د هغه قلب ته هدايت کوي)

کهٔ دې کوز کهٔ امانت ورے له مونږه
لهٔ صفاته به تمام ووځې لهٔ مونږه
په اهن کښې د سُرخيه رنګ دے چرې
د آتش پهٔ رنګ زېل کړن ويمه پلونږه
چې پردے کالے به خپل کښي پهٔ زړهٔ کښې
د احمق نښان ثرګند دے لهٔ دې دونږه
چې تهٔ نهٔ وې ستا هستي صفات ووځې
پهٔ مولا ژوندے علیم کړچې پر دونږه
چې پر دا ژوندون له ذاته خبر نهٔ شې
پهٔ باطن کښې يې مخ تور (دے) داړهي مونږه (۲)

۱ـ اصل : من امن بالله يهدی قلبه (قول)

۲ـ اص : داړي

چې د معرفت مېوه پرې پورې نهٔ وي
پهٔ معنیٰ یې د ایمان اونه ده تونره
چې یې زړهٔ د عرفان لار ندهٔ وي موندلې
د ایمان کلام یې باد پر ژبه شوندره
بې لیدو عرفان ممکن نهٔ دے له څېزه
بې عرفانه باور عین د شک کوندره
د مخلص وینا شیرینه تر عسل ده
د منکر پهٔ ځان ترخه لکی ترسوندره

---

در بیان گذاشتن دنیا یا آخرت و تمثیل ان

د دنیا پرېښودل، یا آخرت او د هغهٔ تمثیل

---

که له حرصه سیم و زر تول کړي پهٔ پنډه
عاقبت به پهٔ خوړ ولاړ شي لکه کونډره
یا به ته ځني روان شي زر به پرېږدي
وارثان به دې سینه کا پهٔ مال تنده
هر چې مال له ځانه وړاندې نهٔ کا ومري
د ارمان پهٔ تېغ به زړهٔ کا ځنډه ځنډه

هرچې مال وملک يې پاتوشهٔ وبل ته
دانايان کا پر هغهٔ نادان ملنده
که دنيا تر نمرخاتره پرېواتهٔ ستا شي
پهٔ تشي لاس به شي دوان لمن په خنده
هغه مال به دي تور مارشي پهٔ لحدکښې
چې پهٔ ظلم دمظلوم وکو دې دنده
ظالمان به پهٔ عقبیٰ خواروي تر خوارو
که دلې يې پر بازار ولاړه جنده
د سخي مثال باردار ه ادنه گوره
د بخيل مانند ځوکند دے اونه شنده

کهٔ عاقل يې د مخلص خبره پند کړه
کېسه پهٔ خوله مفتو مزے دي کنده

فَاِنَّ خَيرَ الزَّادِ التَّقویٰ
البقره ۲ - ايت ۱۹۷

پس په تحقيق سره دلارې غوره سامان پرهېزګاري ده

---

تل به نهٔ دي په داورانه دنيا روڼې
پهٔ دروغ بې هوره مهٔ خوزوه شونډې

که یې هر څو سړي تو دي بېرون له اور کا
عاقبت آخر سړي سنجه شي پو ښېږي[1]
که یې هر څو په ساتنه پورې ربندي
عاقبت پر ځای یې پرېږدي ګنډې کونړي
مرګ دښمن تیر په لاس په باغ کښې ګډ دے
د صورت اوښي په ګل کا تو ښېږي مونږي
د قضا د سورو مخه نیوه نه شي
په ساعت کښې خلقې کا ګنډې کونږي
هغه تیر ساعت به نه مومي په قطي
که نه د پرجهد کوشش کړي ویې ړوندي
مخلص وایي د پرهېز توښه حاصل کړه
تل به نه وي په دا ورانه دنیا دونږي

---

د دنیا پر ښوره آب خلقه پندړه
د چندن قدر یې نه زده له ارنړه
ښوره اب یې د باطن سترګې ړندې کړي
د خوږې چینې یې نه ده کته خنړه
د کثرت جامې یې لوی حجاب ترمیان شو
یګانه محبوبا نه وینې بربنړه

---

[1] که کمي هر څو سري تو دي بیرون لا ورک
عاقبت آخر سري د سنجه شي پو ښه

د افتاب شعاع حجاب د شوپرک شو
له دیدنه بې نصیب شهٔ سره تنره
دَ ړندو د وړاندې نېک وبد یکسان وي
بینایان به بنهٔ جمیل پېسې کا منره
که بینا د معرفت نور ورته بنائي
د منکر ړاندهٔ پر زړهٔ شي کیند غونړه
کهٔ یې بولې وعرفان تد ند جادوځي
د منکر جاهل هوګوره د بد هنره
کامل پیر بار داره اونه منکر ګوره
تل پې وولي د غیبت تهمت په غونړه

داحمق نبنان څر کند دادے مخلصه
چې عقبیٰ جل کا طلاقه دنیا کونړه

---

## دربیان ہجران ودر وصال و باغم و اندوه ان

---

د هجران او وصال او د غم اواندوه په باره کښې

---

دے عاشق پر زړهٔ د غم یښې (دي) پنده ې
دَ وصال د هجران غم کا زړګے خنده ې

پهٔ هجران کښې د وصال له غمه سوځي
پهٔ وصال غم دَ هجران کا پسې منډې
بلبل (خوار) ئې په (دا) باغ کښې ځکه ژاړي
د خزان باد به دګل اوښه کا توبنډې
دعاشق پر مخ تل اوښې غمازي کا
چې د زړهٔ پټه وینا کاندي برمنډې
دَ عشق اور چې پر څاربهٔ زړګي شي پورې
له څربښته یې خالي کا د زړهٔ څنډې
د عشق اور زړګوټي نرم کا ترمومه
هم ئې پرېباسي دجهالت له هنډې
بې لهٔ عشقه به ونهٔ رسې و حق ته
په جهان کښې که مړونې وي یا کونډې
چې دَ محبت چراغ پهٔ کښې بل نهٔ وي
د بې نیازو زړونه توروي سترګې ړنډې
محبت مثال تېرهٔ تېغ دے مخلصه
دعاشق زړګے پرې شي برغنډ برغنډې

# فی المناجات گوید

زما زړهٔ کړه دخپل مخ په دیدار تهٔ
سوے زړهٔ کړه دَ وصال په ګلزا تهٔ

دګلزار پهٔ مینه سوې سینه ګرځې
زر سینه کړه دبلبل په ګلزار تهٔ

د عاشق زړهٔ دهجران په اور کښې سوزي
سوخته دل کړه په اوبو د رخسار تهٔ

نزدیکان ددې کلام په انتظار دي
د قریب کړه زړهٔ دراز په ګفتار تهٔ

واصلان له یګانګیه برخوردار کړه
کړه سینه د موحد په اسرار تهٔ

د ساکن دردٔي بزرګه ده هر حیا وي
دا مخلص پر سکونت کړه قرار تهٔ

---

ؔ اص : درد

قول مشائخ . من عرف الله کل لسانه ومن اعرض الله طال لسانه ایضاً فسآء اسرار بود بیت کفر .

حدیث نبوی ؛ استر ذهبک وذهابک ...... (حدیث)

---

د شیخانو قول ؛ چاچي الله وپیژندو دهغهٔ ژبه گونگه شوه اوچاچي دالله تعالیٰ نه ډډه وکړه دهغه ژبه اوږده شوه . داسرارو ښکاره کول دکفر کور دے .

حدیث نبوي ؛ (داحدیث بالمعنیٰ دے) خپل رازونه او خپل کړهٔ پټ کړئ .

---

که عارف دکل لسان ئ مه ویېږه
د اسرار خبره مهٔ کړه وسهېږه
داسرار خبره پټه پر رموز کړه
دعارف کل اللسان پهٔ دود غېږه
دپټ راز خبره څه وایې څرگنده
دپټ ځان له حاله مهٔ وایه شرمېږه
او دهلک غورزي په زورکه په تله کښي
تهٔ دریاب په څېر خاموش قرار بهېږه
دریاب نوش مېرهٔ دریاب پر زړهٔ کښي ځائے کا
پهٔ یوې پیاله ډکه څهٔ شه مستو ښېږه

چه چه مست د یر دیت راز په وېل خوښیږي
ته دراز په پټول ډېر هوسېږه
مېنک برسېره زرله بویه شي بې بویه
د زړه حال برسېره مه کړه وپوهېږه
هر چې سرّ دحق برهنه کاندي کافر شي
ته پر صف د کافرانو مه درېږه
ته ګفتار د شریعت وایه په ژبه
په احوال دحقیقت پر زړه خوښېږه
معرفت دنبي سرّ دے فاش ئې مه کړه
ښه اسرار دنبي پټ کړه مه رډېږه
خپل لار مذهب دې ټینګ په پټ له بل کړه
درسول له امره وړاندې مه تېرېږه
چې له امر دسرور تېرشه زیان کار دے
ددانا له امره ښوکېږ مه غرېږه
دمخلص کلام قالب دپیر کامل دے
په قالب کښې د استاد تمام رغېږه

في معنى هذا شعر

نعمتك في الدنيا غرور وحسرة
وعيشك في الدنيا محال و باطل

ترجمه :- ستا نعمت په دنیا کښې غرور او حسرت دے
او په دنیا کښې ستا عېش گران او باطل دے

په دنیا کښې د راحت استوګــــه زوړه
په محنت غم ئې دوزګار خوښي يې لــړه
که په غم د دنيـــا ســـوې پسې ګرځې
يا اندوه ئې د عقبیٰ سینه کا خوږه
خو چې زړهٔ يې د دنيا په غم الود دے
په دوو کونو ئې نصيب شوه خواره لوړه
ته په غم د آخرت شه که عاقل ئې
د نفسک په غم اختر يې حيوان يــړه
بې نفسک دې په دنيا پسې چاربـاسي
د هوا ځنګ ئې پر زمکه پورې مــړه
چې آخر مقام دې زمــکه دے حريصه
که هر څو پر ذر زمين ئې سکــه مړه
اے مخلصه چې يې زړهٔ پر زر مايل دے
تل تتله بې غمې پرې باندې زوړه

حدیث : لیس الاحد[۱] فضل علی احد الا بتقوی ایضاً انی اعلم با لله منکم وانا اخشی منه - حدیث قدسی علامت الخائف هوالذی یحضر[۲] به سبب الخوف عن جمیع الحرام[۳] - ایت کریمه - اِنَّ اَکرَمَکُم عِندَ اللّٰهِ اَتقٰکُم (الحجرات ایت ۱۳)

---

کهٔ د خدائے رسول پهٔ امر وړینږي
اول نهي پرهېز وکړه وسهېږي
اقامت پهٔ امر بزرګ تو کرامت دے
کهٔ ولوړې مرتبې ته ورسېږي
خلیفه به د نبی دوست به د حق شي
د ظاهر باطن په کار به وپوهېږي
تر دا لویه مرتبه پهٔ جهان نشته
که دانایې نور به وړاندې نهٔ غرېږي

---

۱ اس ، الامه ۲ اسجاد و

۳ حدیث (ترجمه) هیڅ یو پهٔ بل فضیلت نهٔ لري مګر هغه چې تقوی لري د فضیلت وړ دے - پهٔ تاسو کښې د الله تعالیٰ پهٔ باره کښې زیات علم لرم او د هغهٔ نه زیات یرېږم - حدیث قدسي ؛ د یرېدونکي علامت ؛ یرېدونکے هغه دے چې د الله تعالیٰ نه د یرې پهٔ وجه د ټولو حرامو نه ډډه کوي - ایت کریمه - پهٔ تاسو کښې د خدائے پهٔ نزد زیات د عزت خاوند هغه دے چې زیات پرهېزګار دے -

د دانا درجهٔ لوړه تر هر چا ده
که له خدایه له ترسه پټ څرګند ویریږي
ترس نښان د خردمند دانا یاد شوی
چې له نهي د سرور په دوو ترهیږي
د خائف علامت داده چې که یې مومي
چې له ډیرې پرګناه نه هوسیږي
نزدیکان د بادشاه ذیات حذر له شه کا
که دانایې له مولا به ډېر ترسیږي
چې ابلیس یلم دي وکا ته مخلصه
په اعلی علم په څه لره نازیږي

## في معنى حديث نبوي لكل شئ مصقلة ومصقلة القلب ذكرالله -

---

د هر شي د پاره یو رېنګ مال وي د زړهٔ رېنګ مال دالله ذکر دے -

---

کهٔ د ذکر پهٔ صیقل زړګوټے مړیږي!!
اندېښنې به کړې کل لرې ډېرې بزې!!

---

(۱) اصل : ډرتر

شېطاني وسوس به نهٔ پرېږدي په ذکر
نوساني فکرت به لرې کړي په لوږې
د حق ذکر د مے شانه زړګے پرې خلاص کړه
شېطاني نوساني فکر کښي سېپنې!!
روحاني ملکي فکر پکښې نهال کړه!!
د شېطان د نوس وېنا کړه په زړهٔ ذوږې
چې د نوس شېطاني په حکم چارې کاندي!
په معنیٰ کښې يې غوږګے کښه يا يږې!
دَ زړهٔ ملک به دې بهار وي تل ترتله
کهٔ د نوس غوږګے په نغوته (تر) وکوږې
نن خاطر د روح هغهٔ وژغره مخلصه
چې سينې د نوس شېطان وي ځنې خوږې

---

در بيان آنکه تار سرود (در زبانِ حیوان) مانند شهباز است و
در پائے لطيف بے مثل۔ مثال تار سرود است۔ بدانکه حرکت و جنبش مرتار
را از سبب شهباز است وصدا خاصه فعل تار را است و فی معنیٰ قول
المشائخ لَا یَبْدُءُ صَوتٌ اِلَّا بِالحَرَکَتِ وَلَا حَرَکَتَ اِلَّا بالقوت و
لا قوت اِلا باللّٰه وودمعنی بيت مغربی فرد۔

---

په بیان ددې چې دسرود تارونه ( د ځناورو څرمن ) د شهباز په مثال دي او دطیدنې دریاب د سرود د تارونو په مثال دے . پوئے شئ چې دتار حرکت او جنبش د شهباز له وجې دے او آواز د تارونو د فعل خاصه ده د مشائخو د قول په معنیٰ کښې چې آواز بغیر د حرکت نه نهٔ وي او حرکت بغیر د قوت نه نهٔ وي او قوت بغیر د الله نه نهٔ دے -

---

*هرچي درمن دمي همان شنوي*
*که منم چون نے وتو چون نائی*

هر څه چې ته په ما پوک وهې هم هاغه اورې
ځکه چې زهٔ شپېلئ یم او تهٔ شپېلئ وهونکے یې

---

کهٔ په غوږ کښې دې ځائے ونیسي دیارغږ
نور به نهٔ اروي په ملک کښې داغیارغږ
کهٔ شهباز په زیروبم پر تار وبلوسي
تو هر تار پورې ظاهر شي ددلدار غږ
که سبب د تار شهباز دې منظور نهٔ وي
بې واسطه به مدام اروې د نګار غږ
تار شهباز دې مثل په دریاب بلوسي
له بې مثله څرګ څي د هرجاندار غږ

گویائي ده له هستیه په صورت کښې
له لسانه څه کښې د ښه گفتار غن
په صورت کښې تار هستي ئه شهباز دے
د شهباز په سبب شي پیدا له تار غن
بې قوته جنبش نشي له موجوده
له جنبشه دے ظاهر د پښې اظهار غن
د دریاب په قوت هر اشیاء جنبش کا
د جنبش په سبب کیږي له دیوار غن
نه بې دمه د نائي آواز کا چرې
د نائي په دم ظاهر شي له دوار غن
چې نائي ئې د نظر ته منظور نه وي
له مزماره به کښې نادان حمار غن
نائي یو شپېلئ یې د ږې دي مخلص ته
ترهر نے کاندي ښکاره په څو اطوار غن

---

**باید کہ کافر را بسوی ایمان جهد و اگر مومنے بسوی معرفت اللہ جهد و مجاز بسوی حقیقت نماید -**

---

کافر له پکار دي چې د ایمان په لور کوشش وکړي او که چرې مومن وي نو د الله د معرفت په لور دې کوشش کړي او د مجاز دې د حقیقت په لور -

---

کهٔ کافر یٔ دایمان په لوري کوږه
کهٔ مومن یٔ د عرفان په لوري کوږه
لهٔ تقلیده وتحقیق وته روان شه
لهٔ گمانه دایقان په لوري کوږه
د تقلید ایمان له شکه خالي نهٔ دے
تهٔ له شکه د عیان په لوري کوږه
بې ایمانه ذرهٔ یقین پر اشیاء نشي
اوس له غیبه د اعلان پهٔ لوری کوږه
له مجازه حقیقت لره وردرومه
له زمینه د اسمان پهٔ لوري کوږه
د (خیل) نفس په پیتکي اسمان ته خېژه
پهٔ دا لاره دیزدان پهٔ لوري کوږه
دم ناله ده له دریابه په صورت کښې
پر کنار یٔ د جانان په لوري کوږه
پهٔ صورت کښې جان خفي جانان اخفا دے
له نهان د هر پنهان په لوري کوږه
کل افت دے په دویمه کښې که باور کړې
لهٔ افته د امان په لوري کوږه
د کثرت ځنګل د وهم مکان کوره
له ځنګله د میدان پهٔ لوري کوږه

---

له اص ؛ (ق) ایمان

لوئے میدان ئې د وحدت پاک دے له غبره
په میدان د لامکان په لوړې کوڼه
مخلص ووې که امان غواړې له شرکه
(د مسکین د لوړ ایوان په لوړې کوڼه)

---

# في المناجات گوید

---

تهٔ غني بادشا کریم ئې د درویش (مقال) ونغوږه
لهٔ تا خواست د جمعیت کا د سائل سوال ونغوږه
اندېښنې ئې زړهٔ پرېشان کړ جمع کړې زړهٔ (ئې) وران کړے
پرځپل یاد ئې زړهٔ ارام کړه د پرېشان احوال ونغوږه
پرېشانې د زړهٔ لوئے غم دے د پرېشان پر زړهٔ ماتم دے
له دې غمه ئې زړهٔ خلاص کړه د غمجن ملال ونغوږه
جمعیت دے ستا په ذکر ما دېر د شغلا و فکر!!
پر ځپل ذکر مې جامع کړه د مضطر رجال ونغوږه
په طاعت کښې ډېر کاهال یم له طاعت کوید کنگال یم
د طاعت دولت مې زیات مې کا د کاهل کنگال ونغوږه

مخلوقات دي خپل عيال دي که نساء دي که رجال دي
په خپل ذات يې شناسا کړه د مربوب عيال ونغوړه
هر نبي د دين دلال دی هدايت د ده اقوال دي
پر خپل کار يې مستقيم کړه د مخلص دلال ونغوړه

---

ايت: مَا مِنْ دَآبَّةٍ اِلَّا هُوَ اٰخِذٌ بِنَاصِيَتِهَا ط هود[۱]. ايت - ايت اخري
فَفِرُّوا اِلَى اللّٰهِ اِنْ كُنْتُمْ تَعْلَمُوْنَ[۲] . وانکه نجات از دست شيطان
ممکن نيست مگر به عنايت حق تعالی و در معنی ز وَاِيَّاكَ نَسْتَعِيْنُ[۳].

د حق امر په هر څه کښې دے نفاذ
د هستۍ په شته يې هر يو اتخاذ

---

(۱) په دې زمکه هيڅ داسې خوځېدونکے نشته چې هغه به خدائے د سېتو کې ندنډ وي نيولے (۲) (دا د دوو آيتونو بېلې بېلې برخې دي) هم د الله په لور وتښتئ که چرې تاسو پوهېږئ (۳) د شيطان نه خلاصے ګران دے مګر صرف د حق تع په فضل سره ممکن دے - د اياک نستعين په معنی کښې -

هر چي دا امر ئې وکوت بنیادل شه
پټه لار شوه ورځوګنده تر عیاذ
که تر خدایه درسي امن ئې بیاموند
د پناه مکان بل نشته بې مـلاذ
نن ففروا الی الله شه که دانایي
ګرندۍ په بیړه تښته تر مَعَاذ
بې مولا به دې څوک خلاص نهٔ کا بیا ورکړه
په دنیا کښي له شیطان موذي خـراذ
د مولا امان به نهٔ مومي یقین کړه
څو لهٔ غیره کلي نهٔ شي په خداذ
چي اسره لري د غیرو په خاطر کښي
د مولا پر در محسوب دے لهٔ مـذاذ
دا ایاک نستعین بې هوده لولي
چي له غیره دې باري ناقه شماذ
پر هر کار مدد له هغه غواړي مخلص
د بل کس مدد یاري به څې نـفاذ

بیان درمعنی آنکه تاکسے دامن پیر کامل نگیرد بحق تعالیٰ نرسد و در صفت
تیزی رفتار و بزرگی دل وآنکه دل اسم از اسماء حق است وآنکه دل
بیمثل لامکان و نا محدود است وروح اعظم اوست حرکات وسکنات
عالم بارادت اوست. ایت: مَامِنْ دَآبَّةٍ اِلَّا هُوَاٰخِذٌ بِنَاصِيَتِهَا
اِنَّ رَبِّيْ عَلٰى صِرَاطٍ مُّسْتَقِيْمٍ ٥ هود - ١١ - ايت - ٥٦

---

بيان په معنیٰ ددې چې تر څو څوک د کامل پير لمن اونه نيسي
هغه حق تعالیٰ ته نه رسي - د رفتار د تندې او د زړهٔ د بزرګۍ
په صفت کښې - او دا چې زړهٔ د حق د اسماؤ نه يو اسم دے
او دا چې بې مثله زړهٔ لامکانه او بې حدوده دے - او
روح اعظم هغه دے چې ددې عالم حرکات او سکنات د هغهٔ
په اراده کاسره دي -
ايت: په دې زمکه هيڅ داسې خوزېدونکے نشته چې به خدائے
د سمتو کې نه وي نيولے - زما رب په سمه لار دے -

---

پر طالب باندې واجب دي د کامل دامن اخذه
د کامل بې هدايته دربه نه شې ته (تړ) فذه
يګانه حق دے باور کړه ته د زړهٔ په پښه سفر کړه
چې د زړهٔ په پښه روان شه ګرندے چې تر همذه

د ذرۀ اسن دي ناسند ے دے پهٔ دفتار ډېر کړندے دے
د پلک تر څنبل وړاندې پاس پر عرش شي لهٔ خـــنذه
ذرۀ براق تېرتر لامع دے هم تو عرش کرسي رافـع دے
ذرۀ خبیر دے چې بې حدیم په بې حد کښې حد وجذه
ذرۀ د حق ديو) نوم دے حق پر بنهٔ نامه موسوم دے
ذرۀ بې حدکودم بې مثل دکل مثل دے مُنفـذه
دے مکان دهر مکان دے کهٔ کوز نمکه پاس اسمان دے
ذرۀ بې مثله لامکان شهٔ پر هر ځائے دے مشعبـذه
لوئے ذرۀ دجهان روح دے تن جهان ارواح ئې نوح دے
دغـه ذرۀ مثل صورت شـهٔ کل عالـم ددهٔ ونذ
جامه مرۀ صورت ژوندے دے بې ارواح تن کودے دے
حرکت دصورت نه وي پر ارواح ئې دے مشفـذه
پهٔ رضا د ذرۀ تن کرځئ پـه وزرو مرغـه ورزي!!
دبنده څهٔ اختيار نشته د تبنتن پهٔ لاس رخـــذه"
چې څرۀ ورکه هغه خورینه چې ئې بوځئ هوري ورځینـه
د ذرۀ پـهٔ امر کوبذي کهٔ مخنذ دے یا فخــذه
دا مخلَص بنده عاجز دے مقبوض خالق قابض دے
حق قابض پـه سمه لار ځئ مقبوض هم پسې هــذ ذه

---

له اص : رخیذ

درمعنیٰ ایت کریمه :- وَسَقٰهُمْ رَبُّهُمْ شَرَابًا طَهُوْرًا (الدهر ۷۶، ایت ۲۱)

که تمثیل ان درین عالم هستی حق است که جمله موجودات و عالم را در جنبش و حرکت اورده است خواه آن حرکت اختیاری باشد یا اضطراری۔

---

ددې ایت کریمه په معنیٰ کښې چې (ترجمه) او ده غوی پروردګار به دوی ته پاک شراب د څښلو دپاره ورکوي) چې په دې عالم کښې ددې تمثیل د حق هستي ده چې ټول موجودات او عالم ئې په جنبش او حرکت کښې راوستے دے۔ خو هغه اختیاري حرکت یا اضطراري حرکت دے۔

د طهور پیاله ده مسته له نبیذه
بې خماره له عسله ده لذیذه
په دا پاک دریاب کښې غرق تمام جهان دے
د محیط ناله په هر تن کښې تنفیذه
دا ناله به څوک کمتره ورښکاره کا
مګر زده کړه (د کامل) پیر له تلمیذه
(د کامل له برکته) به پېټ وګورې
د ریا له محنه تل تیاره شقیذه
که له دې وه څوک خلاصې غواړي مخلصه
د (روښان) تلقین کارګر دے له تعویذه

---

در بیان وصفت خلوت یعنی ریاضت وبیان .... نفس وخصلتهای ایشان بدانکه اماره بسوی حرام گمارد ونفس لوامه بسوی مشبهات ونفس ملهمه بسوی امر وحلال گمارد .

---

(ترجمه) د خلوت یعنې د ریاضت د صفت په بیان کښې .. دَ نفس او د نفس د خصلتونو پهٔ باره کښې - پهٔ دې پوهـ شئ چې اماره (نفس) د حرامو پهٔ لور تعین نیسي او لوامه نفس د شبهاتو پهٔ لور او ملهمه نفس د اوامرو او حلالو په لور تعین نیسي .

---

کهٔ خالي کړې پر خلوت د نفس خنوڼ
زر بـه پـُرشي د حکمت له نرد آلوڼ
ریاضت پر نوس اختیار کړه کهٔ دانا یې
پرې کمتر کړه روزمره حـلوا فالوڼ
نوسک فیل شیطان فیلوان دے پر صورت کښې
له فیلوانه پناه غواړه پهٔ اعـوڼ
کهٔ پهٔ نه نغوته دَ نوس زبون خلاص شې
پهٔ دنیا هم پهٔ عقبیٰ کښې له تندوڼ
نوس لذت دریا دوي شیطان یې ستایي
پهٔ جهان کښې ده حـلوا کـهٔ شفتالوڼ

د اشېطان ښکر لري دغه کار ته
چې حاصل کاندي لذت له زړ الوځ
ځلور نفسه سره يو په خوئ جدا دي
د بلبل خوراک بېل ګڼه له هوځ
اماره نوس د حرام وته آرزو کا
لوامه نوس په شبهات پسې کا خوځ
ملهمه نوس د حلالو ته آرزو کا
له حراموځيس ژغوري په نعوځ
پاک نوس مطمئنه دے په جهان کښې
له شبهاته و پاکئ ته دے نعوځ
اماره نوس د شېطان کافر مقام دے
لوامه هم د ښکر دے د بابوځ
ملهمه د ملکوت مکان ياد شوے
ارام نوس د روح مقام مکودم مغوځ
وبينا ته ښه و بد ښکاره مخلصه
د پروني صورت بېل دے له شموځ

---

ئه اص: چې حاصل کاندي لذت له د زړ الوځ

# في المناجات گويد

د نفسک په دام اسیریم د عاجز اسیر ملا ذه
په دا بند کښې ډېر زهیریم د غمجن زهیر ملا ذه
د ارزو په جال کښې نغښتے کہ ماهي دے یا اوږښتے
مګر ته حقیر ازاد کړه د حېران حقیر ملا ذه
که کبیر سرے صغیر دے کہ صغیر دے یا کبیر دے[1]
کم ضعیف اسره دلوٹے کا د ضعیف صغیر ملا ذه
په جهان ګډا که میر دے کل يې ستا په لور مصیر دے
ستا ولور ته تول روان دي د ګډا امیر ملا ذه
په خپل یاد يې زړه مشغول کړه پټ علوم باندې نزول کړه
له غفلته ډېر دنګیر یم د غریب دنګیر ملا ذه
روح تجیر د لوړ مقام دے تن بندي د نوس په دام دے
له دې قیده نجات غواړي د اسیر تجیر ملا ذه
دا دنیا د روح خزه دے د دهٔ حب سر د بزه دے
د دنیا حب يې مړ روند کا د ګمراه ضریر ملا ذه
روند بینا ته په نظیر کړه بې خبر او ده خبیر کړه
خبر دار خغلي و تا ته د اګاه خبیر ملا ذه
زما خواست د حضوري دے په غیبت کښې مروري دے
له زوره وره خلاصي غواړم د مخلص فقیر ملا ذه

---

[1] اص: ته کبیر سړي صغیر دي کہ صغیر دي یا کثیر دي

قول المشائخ. علامت السعید بالسعادة الازلی ہی التے ان ان یدخل اللّٰہ تعالیٰ فی متابعۃ المرشد الکامل متابعۃ الکامل کمتابعۃ النبی صلے اللّٰہ عَلَیْہ وَسَلَّم و علامت الشقی بالشقاوۃ الازلی ہی التی ان یدخل اللّٰہ تعالیٰ فی متابعۃ الشیخ الناقص متابعۃ الشیخ الناقص کمتابعۃ الشیطان و بہ متابعۃ الشیطان یصیر شقیاً من اہل العقوبتہ -

---

ترجمه: د مشائخو قول دے چې د بختور نخښه په ازلي خوش بختۍ سره داده چې هغه خدائے دیو کامل مرشد په متابعت کښې داخل کړي او د کامل متابعت د نبي صلی اللّٰه علیه وسلم متابعت دے او د بدبخت علامت په ازلي بد بختۍ سره دادے چې هغه خدائے دیو ناقص شیخ په متابعت کښې داخل کړي او دیو ناقص شیخ متابعت د شیطان متابعت دے. او د شیطان متابعت' بد بخت داهلِ دوزخ په لور بیایي -

---

که نیک بخت يې د ناقص پر صحبت مه ځه
له شیطانه کړه حذر په غفلت مه ځه

---

ﻟﻪ اصل: بسعادت (۲) اص: بشقاوت (۳) مابعته (۲) ص: یسر

د کامل صحبت رڼا ده نمر ختلے
د ناقص مجلس تیارهٔ پر ظلمت مهٔ ځهٔ

وعادت د کاملانو لره وړاندې
دَ رسمي غافل جاهل په عادت مهٔ ځهٔ

پر سنت د هادي دروسه لار دغه ده
سنے وکیږ دبدعتي پر بدعت مه ځه

خپل طاعت عبادت پټ کړه لهٔ هر چا
دمشرک خودبین نمائے پر ملّت مهٔ ځهٔ

بهترین عبادت ذکر دے سرور دے
بیا بهتر ذکرخفي پر شهرت مهٔ ځهٔ

عبادت د منافق پر مخ رویه دے
تهٔ مؤمن د منافق پر سنت مهٔ ځهٔ

بې عرفانه عبادت رسم عادت دے
تهٔ پر لارې د عادت په سرعت مهٔ ځهٔ

بې عرفانه عبادت ګُل ناقبول دے
د سرور نبي لهٔ امره علّت مهٔ ځهٔ

معرفت لره پیدا شوې قرآن ګواه دے
د فرقان پهٔ لاره ځه پر ضلت مهٔ ځهٔ

مستقیم صراط څرګند د قرآن حکم!
تهٔ له لارې یو تر بل سرغلت مهٔ ځهٔ

په دالارې تګان دې تسبیح په لاس کښې
ته دې مضل رهزن پر شهوت مه ځه
د مخلص خبره پند کړه که نیک بخت يې
د غافل جاهل ناقص پر صحبت مه ځه

---

**حدیث : مَنْ طَلَبَ شَیْئًا فَقَدْ وَجَدَ - ایت : یَا اَیُّهَا الَّذِیْنَ اٰمَنُوْا** (مایده ۳۵) **وَ ابْتَغُوْا اِلَیْهِ الْوَسِیْلَةَ** (مایدهٔ - ایت ۳۵
**وآنکه دنیا وعقبیٰ حجاب راه سالک است** - حدیث نبی صلی الله علیه وآله وسلّم
**(تارک الکونین) الدنیا لکم والمولیٰ إلی -**

---

ترجمه : حدیث : چاچې دیو څیز د طلب د پاره کوشش وکړو - نو هغهٔ ته خدائے په لاس ورکړو - (ترجمه) هغه کسان چې مومنان دي هغوئ دې د الله د تقرب دپاره وسیله ولټوي) او دا چې دنیا او عقبیٰ د سالک دپاره دلارې حجاب دے -
حدیث النبی صلی الله علیه وآله وسلّم ( د دواړو کونو پرېښودونکے)
دنیا ستاسو دپاره او مولیٰ زما دے .

د بلبل په دود په مرسته د ګلن ار ځــه
له طلبه (په دا لار) تل بې قــرار ځــه

څو مقصود دې حاصل نهٔ شي ارام مهٔ کړه!
شب و روز پهٔ تفحص کښې دخپل يار ځه
دهمت پهٔ مرکب سورشه ليې ګرځه
لهٔ طلبه مه کښېنه پر تېرهٔ خار ځه
جوئينده تل يا بنده دے که باور کړې
پهٔ تمام جهد پهٔ مرسته د دلدار ځه
بې ربباره به ورنهٔ شي تر محبوبه
له اوله پهٔ طلب د بنهٔ ربار ځه
کهٔ دربار مهربان بيا موهې نيک بخت يې
د ربار په وسيله لېل ونهار ځه
د روغښن ربباران ډېر دي په عالم کښې
له طامعه دروغژنه پر کنار ځه
(دا) خناس جلاس (دي) لوئے رهزن دلارې
لهٔ دې هسې بد رهزنو ډېر هوښيار ځه
څهٔ مشغول دے پهٔ دنيا يا پهٔ عقبیٰ دے
له ظالمه جاربستلے پهٔ تلوار ځه
د واړه کونه لويه لومه ده پر لار کښې
له شيطان له دامه هر زمان پهٔ ډار ځه
د دنيا په لومه نښتي دنيا دوست دے
دعقبیٰ په دام ګرفتار زاهد بېدار ځه

هغه ځین چې دي مانع دے له دیداره
په لیدهٔ یې معطلې مهٔ کړه رهوارځه
محبت له هیڅا مهٔ کوه بې خدایه
د مخلص په ځیرله دووکونو بېزار ځه

درصفت طریق انبیا که مانند پل صراط است هرکه بدین صراط ثابت قدم رفتِ برصراط موعود مثل برق برود انکه چراغ راه معرفت است .

---

ترجمه :- دانبیاؤ د طریق په صفت کښې چې د پلِ صراط پشان دے څوک چې په دې لار ثابت قدم لاړ به په صراط موعود (د پل صراط) به لکه د برق په شان لاړشي - او دا چې د لارې چراغ معرفت دے .

کهٔ ثابت قدم پهٔ لار انبیا ځې!
پر صراط باندې به تېز تر باد برېښنا ځې
و مولی وته لار پیته ده په زړهٔ کښې
د اسرار پر لار به پټ له ماسویٰ ځې
د یقین په نور به راه بېراهي کورې
پر جادهٔ به مستقیم د اصفیا ځې

---

ۓ اص : د اسرار لار پر ب پټ لماسوی ځې

پهٔ ظاهر به شریعت لري دوړاندې
پهٔ باطن به حقیقت لره اخفا څې
نن طریق دانبیاء پلِ صراط دے
کهٔ پر دا صراط ثابت قدم برپا څې
پهٔ قیامت به ګرندے پر صراط درومې
پر تېرهٔ باد ډیکه لار به بې پروا څې
پر صراط باندې تیارهٔ ده چراغ یوسه
چې په نورې برابر پر لار بېنا څې
معرفت دحق چراغ پر صراط باندې
پهٔ ضیا به یې ثابت شېب وبالا څې
منافق[۱] پهٔ تیاره کوږه[۲] دربلین یې
تهٔ به غرق په نور کښې سم پاس پرهوا څې
دعرفان نور به حاصل کړې پهٔ دنیا کښې
کهٔ په نغوته کښې ثابت درهنما څې
دتوحید عرفان به قطعي حاصل نهٔ کړې
چې په شان درس تاب بیارته پهٔ شا څې
دکامل دعوت به نه اورې پهٔ غوږ و
چې دا اسم په عادت کښې خودنما څې

---

[۱] اص (ق) به اص (ق) کوزه

د مخلص په دود به نور بیا موږ قطي
که د پیر کامل په امر په رضا ځي

---

بیان بوزن شعر فارسی درمعنیٰ آنکه نورالله همواره بریک منوال است کمی وزیادتی حضوری وغیبت ندارد وظهور اشیا بضداست ونور حق بی ضد ظاهراست وظهور اورا ازخود ظهور جمله اشیاء ازدست کاتب میگوید لا اِلٰهَ اِلاَّ اللّٰه مُحَمَّدٌ رَّسُوْلُ اللّٰه -

---

د فارسي دشعر په وزن بیان - په دې معنیٰ چې دالله تعالیٰ نور په یو دول جاري دے کمے زیاتے حضوري یا غیبت نه لري - داشیاؤ په ضد سره دے او د حق نور بغیر د ضد ښکاره دے - هغه (الله تعالیٰ) د ځیله نه ظهور لري او جمله څیزونه د هغه نه ظهور لري - کاتب وائي لا اِلٰهَ اِلاَّ الله محمدٌ رسول الله

---

زه د حق نور ګورم روښان تر روځ
په هر زمان دے یک همان تر روځ
نه کمامت نه زیارت کا په نور
په یو حال دے نور خندان تر روځ

دحق په نور کودم روښن مهر و مهر
دے وعارف ته دېر اعلان تر روځي
په نور کښې غرق و نیم زمین وسما
دے پر اعلا اسفل دخښانٔ تر روځي
په ضد ظاهر شي هر اشیاء په جهان
حق دبې ضد شه تل اعیان تر روځي
دده هستي د نور دریا شه بې حد
دے په ښېن لوري بې پایان تر روځي
دهر وجود ظهور له ده دے په ده
دے حق وخود په خود عریان تر روځي
دے دکثرت ځنګل دوهم مقام
شه د وحدت دریا امان بتر روځي
دے دوحدت مقام د امن دامان
شه و مخلصؔ وته دوښان تر روځي

---

له اص : دوخښان

# في المناجات گوید

ته مشفق کریم داوري مهربان شه د قیامت په ورځې
ته عاصي ته غفور خدای بخشنده شه د حیرت په ورځې

چې د عاجزو دستګیري د جمله په حال بصیر مې!!
ته تکیه د هر زهیري دستګیر شه د غربت په ورځې

د قیامت ورځ سخته ګرانه خلقه به وي حیرانه
زه امید لوم له تا نه عشرت راکړه د عشرت په ورځې

هغه ورځ د عدالت دے د مجرم زړه په حیرت دے
د عاصي حیله رحمت دے شه رحیم د عدالت په ورځې

پر دوزخ باندې تګ ګران دے ډیري که د انسان دے
دا خبره له قرآن ده مددګار شه د کړبت په ورځې

د غه ورځ وینم د وصل فرعه نشته رجوع د اصل
د نوري ناري دے فصل رؤف دل شه د فصلت په ورځې

چې د تېږي د بل بېلي کړي ځني بد ځني ښې کړي
ځني لرې څوک نژدې کړې مرحمت کړې د فرقت په ورځې

د مخلص مفلس مایه یې د بېکس د زړه تکیه یې
پر مکړېي باندې سایه یې مهربان شه د قیامت په ورځې

در صفت دل که مانند غواصؒ است و حق سبحانه دریای معانی
است و معنیٰ در و گوهر های بی اندازه .بی بها اند و گوهر ها مراد
مرید است هر که غنی شد بغنای معانی مانند غنای او در هر دو جهان .

---

د زړهٔ په صفت کښې چې د غوث په شان دے ـ او حق سبحانه
د معانیو یو دریاب دے او معنیٰ بې بها او بې اندازې دُرّ او گوهر
دي ـ د گوهر نه مراد مرید دے ـ هر څوک چې غني شو. په
دواړه جهانه د معانیو په غنا سره په شان د غنا شو.

---

تن چې زړهٔ معنیٰ ښکاره کا د صیاد په څیر
دے چا او چې معني غواړې د استاد په څیر
حق دریاب دے معني دُرِ گران بها پکښې
زړهٔ غواص پکښې غوټه کړي د اوستاد په څیر
بې بها دُر ئې راوکښه وسائل وسته
د مرید د زړهٔ مقصود دے د مراد په څیر
د دنیا مراد فاني دے زر به تېر شي
د معني مقصود باقي دے د معاد په څیر

ل اص : غوث

د دنیا دولت جاري دے لکه اب جوی
اخرت قرار محکم دے د عماد په څېر
د حریص په دود مهٔ کرځه پهٔ دنیا کښې
قناعت سکون اختیار کړه د جماد په څېر
کهٔ د نفس پهٔ هوا ځغلې سپک ترخدا یے تهٔ
مدام دَر پهٔ دَر مهٔ کرځه د برباد پهٔ څېر
حق رازق د هر مرزوق دے شک پرې مه کړه تهٔ
د خپل زړهٔ یقین استوار کړه د پولاد پهٔ څېر
پهٔ قسمت د حق قانع شه زړهٔ بې غم کړه تهٔ
شب و روز د حق بندګي کړه د عباد پهٔ څېر
پهٔ امید په ویرې مهٔ کړه عبادت د خدائے
بې رجا خوف وطاعت کړه د آزاد پهٔ څېر
دواړه کونه پسې شاکړه کهٔ عاشق يُې تهٔ
دین دنیا باندې نثار کړه د جواد پهٔ څېر
اے مخلّصه کهٔ دانایې حق وپېژنه کړه تهٔ
دم پهٔ دم يُې یادوُ شه داوراد پهٔ څېر
موافق له نفسه مهٔ شه لوے دښمن دے ستا
مخالف ورسره اوسه د اضداد پهٔ څېر

## دربیان انکه عاشق را درهجران صبر وآرام نیست و آنکه پیشراه عاشق کل است

---

دعاشق په باره کښې چې په هجران کښې ورته صبر او ارام نه وي او داچې دعاشق په وړاندې راتلونکې زمانه وي .

---

دعاشق زړه کوشش کاندي دنګار په لور
سکه تږے حمله کاندي دانهار په لور
دعاشق پر زړه کښې صبر قرار نشته هیڅ
دبلبل په دود الوځي دګلزار په لور
دعاشق پر لار کښې ګل وخار یکسان دي تل
چې له ځانه بې خبر دي دخپل یار په لور
نږدې لرې لوړ ژور دي برابر سره
چې له شوقه شي روان دګلعذار پر لور
دعاشق په صورت زهر اثر نه کا هیڅ
دعاشق بېدل زړه تلې ددلدار پر لور

کهٔ حالت د عاشقانو درکښې نهٔ وي تهٔ
لهٔ انکاره وجاروځه دا قرار پر لور

دا خودي ورې واچوه سپک ځه پر لاره
پهٔ خودي نښلې درونڼ[1] مهٔ ځه د دیدار پر لور

خود وجود له تاریکیه فارغ نشته درست
بې هوده هڅه چې کړې دانوار پر لور

کهٔ صحبت د ښو یارانو موندهٔ نشي ستا
ګوښه وسه روانې مهٔ شه داغیار پر لور

د دېنګر[2] پر دوکان عطر غوښت[3] محال دے دېر
دګوګس زغن کوشش دے د مردار[4] پر لور

د جاهل پر صحبت ذکر د دنیا دے دېر
د غافل سړي زړهٔ تللے د دنیا پر لور

ښهٔ کسان د ښو کسانو پر لور درومي تل
دا شرار سړي تلوار وي دا شرار پر لور

د مخلص خبره پند کړه که سعید یې ته
پهٔ تمام جهد روان شه دا خیار پر لور

---

[1] اص؛ درونڼ [2] اص: دلته دا تکے صحیح لوستلے کېدے نشي څو مره چې پرې قیاس کېدلے شو دهغې مطابق د "دېک" نه "دېګر" یعنې "دېګ پخوونکے" اخذ کړے شو۔

[3] اص: خوښت [4] اص: دسدار

هر طالب چې شي روان دجانِ جان پر لور
د ذرهٔ مخ دې نه جارباسي دجهان پر لور
د دنيا د اخرت مهر دې پرې کا له ذرهٔ
يکجهت يکدل دې دروې د سبحان پر لور
تعلق په دواړو کونو لوئے مانع دهٔ
لهٔ دوو کونو کړندے ځه د جان جان پر لور
د دنيا د عقبیٰ مهر ددهٔ زنځير پر پښې
پر زنځير تړلے څرُ ځي ديزدان پر لور
دَ دوو کونو بند کهٔ پرې کړې درست تمام له پښو
سپک ازاد به جريده ځې د رحمان پر لور
دواړه کونه دَ طالبو خطر ځائے دے ځائې
له خطره شه روان د ذوالامان پر لور
کهٔ مولیٰ غواړې لهٔ دوو کونو حب پرې کړه تهٔ
له مکانه شه روان دَ لامکان پر لور
د اکثرت به دَ وحدت په نظر کورې تهٔ
کهٔ له شکه شې روان د لوے ايقان پر لور
کهٔ شب وروز په طاعت لغ کړې زنګونر تهٔ
بې کامله تله مجال دې د عرفان په لور

څو عرفان ويګانګيه حاصل نهٔ کړې نن
لهٔ خطره به ورنهٔ شې دامان پر لور
پس له مرګه به پېښتنه دتوحيد کا خدا ے
نن په دې تلوار روان شه دوبنانٔ پر لور
دا مخلص ئې دتوحيد لهٔ علمه پوه کړو نن
يقين راوړه فهم وکړه دبيان پر لور

## حديث نبوی عليه السلام البلاء موکلٌ بالأنبياء ثمّ بالأولياء ثمّ بالمؤمنين۔

تکليفونه مقرر شوي دي په انبياؤ بيا په اولياؤ او بيا پهٔ مومنانو .

دعاشق له درده وي حاصل دې
چې بې ياره پر نورڅه نهٔ دے شاغل دې
چې ديار درد ئې پر زړهٔ کېنې هم خانه وي
پهٔ خاطر کېنې به ئې نهٔ ورځې باطل دې

---

۱ اص : عاشق

د عشق درد له خدایه غواړه که پوهیږې
چې بې درد صورت له حقه وي غافل دېر
څو دا[1] دوه مهارې نه کاندې پر پوزې
د بلا پر لوري بر دروې عاقل[2] دېر
د عشق بحر دے خونخوار د عاشقانو
کم همت غافل[3] ولاړ دے په ساحل دېر
د عشق درد ذرهٔ شکسته کا په کوکال کښې
د بې درد زړهٔ سخت سنګین دے پر قاتل دېر
درد قوي صورت عاجز کا بې قوته
له دنیا دیږي) پر مایل کاندي مایل دېر
د عشق درد یوه ذره تر جهان بهه دے
په دا قول[ئ] باور شوے د قابل دېر
د فرعون لعین رچې) درد پر زړهٔ کښې نهٔ وُ
څکه څان ربه) ئې پر خدائے ماند مغل دېر
درد بلا د انبیا ، اولیاء بخره
له دې بخره نصیب نشته د جاهل دېر
درد تحفه ده پر دوستانو نازل شوے
وبیلک د تحفه نه ویم قابل دېر

---

[1] اص : خو ددو
[2] اص : عاقل
[3] اص : عافل

ذرهٔ صافي د ذرهٔ حاصل شي له درده
پهٔ صافي به څهٔ پوهېږي روغ سنګدل دی
د عاشق د عشق له درده به خبر وي
چې يې ذرهٔ د عشق پرتوره وي ګايل دی
د هر رنځ علاج ممکن وي په طبيب
د عاشق رنځ لا دوا ګودرم هايل دی
د عشق خوان يې د مخلص دوراندې کېښود
غم ښادي باندې اينکولي کا شامل دی

---

بيت مصلح الدين شيرازي :

عالم که کامرانی تن پروری کند
او خویشتن گم است کرا رهبری کند

انکه ائینهٔ دل از ورد ذکر زبان مصقل ومصفا نگردد شفاف وعکس پذیر نشود تا انکه بذکر خفی که ذکر دل است وانفاس مشغول نشود .

---

داچې د زړهٔ اٸینه د ورد او د ژبې د ذکر نه صفا او صیقل کیږي او نهٔ شفافه او عکس پذیره کیږي تر څو چې په خفي ذکر چې د زړهٔ ذکر دے او په دم سره مشغول نهٔ وي ۔

---

چې مشغول وي د دنیا په قال و قیل ډېر
او له حرصه د کوي د نوس زنبیل ډېر
دا د زړهٔ مخ يې سیاه شي تر کتهوه
کهٔ ظاهر علم يې کړې وي تحصیل ډېر
زړهٔ پرلو د ذکر صاف روشن جلا شي
دا خبره ده ثابته پهٔ دلیل ډېر
ن دې ژبه په لوستن په زړهٔ صاف نکړه
کهٔ تسبیح وايې پر ژبه یا تهلیل ډېر
څو نفس زړهٔ يې پر ذکر شاغل نهٔ وي
آٸینه به زړهٔ يې نهٔ موي جمیل ډېر
کل په خدائے فکر ردې، عین وسوسه ده
کهٔ کوتاه فکر ظاهر شي یا طویل ډېر
څو تاویل د ځان جهان و نکړې خام يې
بې هوده بده خبره کړې تاویل ډېر

چې عالم باالله نه وي لوی جاهل دے
کهٔ دهر ایت حدیث واړي تمثیل ډېر
څو عارف نهٔ شي باالله طفل شیرخوار دے
کهٔ پهٔ توره بډیره ځوان دے یا رسیل ډېر
ربانی عالم عارف دے کهٔ باور کړې
کهٔ ظاهر علم يې کړے دے قلیل ډېر
څو هستي د ځان جهان ورشکاره نهٔ وي
لهٔ حیوانه پر خپل ځان مهٔ بډده تفصیل ډېر
دسرې نامه هالهٔ پر صورت کښېږده
چې داناشي پهٔ هستیه دجلیل ډېر
اے مخلصه چې له ژونده خبر نهٔ وي
لهٔ غافله مُلا تښته میل درمیل ډېر

---

حدیث قدسی:- یا غوث الاعظم قل لاصحابک اغتنم دعوت الفقرا - فانهم عندی وانا عندهم - قول المشائخ. طالب الدنیا اسیر وطالب العقبیٰ اجیر، طالب المولیٰ امیر ایضاً طالب الدنیا مونث وطالب العقبیٰ مخنث وطالب المولیٰ مذکر

یاغوث الاعظم خپلو ملګروته وواېه چې دفقیرانو دعوت نه فائده واخلي پس دوي ما سره دي او زه دوي سره یم ـ ددنیا طالب قیدي دے او د اخرت طالب مزدور دے او د مولیٰ طالب امیر دے ایضاً ـ ددنیا طالب ښځه ده او د اخرت طالب نر ښځے دے او د مولیٰ طالب نر دے ـ

---

د مولیٰ پر لور سړي بولي فقیر دی
د فقیر دعوت لوئے لوټ کمه کثیر دی
لوئے کم بخت به ددا عي دعوت نه اروي
بختور به یې قبول کا په ضمیر دی
د نبي د ګروه بلندره وي وحق ته
چې رهبش، د حق پر ذړه کبني کا جائے ګیر دی
چې بې خدایه دې و نور څه ونه بولي
تر هغه مه کمه لوئے دښمن شریر دی
ددنیا عاقل زیانکار دے که باور کړي
د عقبیٰ عاقل ابلـه ویـنم صغیر دی
د مولیٰ محب عاقل کامل آزاد دے!
چې بې خدایه پر نور څه ندے اسیر دی

د دنیا طالب عورته ده رسول وې
د عقبې طالب نامرد گڼه اجیر ده پر
د مولی طالب آزاد له وارو کونو
چې بې خدایه پر نور څه نه دے زهیر ده پر
د عاشق پر زړهٔ د غیرې ممنوشته
د اشنا د رسنه) دید نه شي دلګیر ده پر
چې حجاب يې شي د يار له ښه دیداره
د عاشق له هغه څیزه وي نفیر ده پر
بې دیداره پر نور څه نه هوسيږي
د دنیا د عقبې مال گڼي حقیر ده پر
رښه نعمت د یار) دیدار د عاشقانو
وابله ته شه نعمت شهد وشیر ده پر
که خبر شي د دیدن له ښه نعمته!
نور نعمت به پردا اور شي تر سعير ده پر
بې دیداره بهښت[1] اور دے پر عاشقانو
د عارف پر زړهٔ روشن دے دا تقریر ده پر
د زاهد به بهښت[2] بس د دیدار نشته
د عارف دے بهښت د دیدار د[3] ميسر ده پر

---

[1] اص : بخښت [2] اص : بخښت

[3] اص : خبر

معرفت به حاصل نهٔ کا بې گمانه
پهٔ اِخلاص چې خدمت ندوکا د پیر ډېر
دهغه جهان احوال نبي وئیلے
چې مخلص داعي نذیرګنهي بشیر ډېر

---

د عاشق حریص زړهٔ نهٔ شي پهٔ دیدار سېر
د ماهي پهٔ څېر هیڅ نهٔ دے پهٔ انهار سېر
پهٔ دیدن د عاشق میند نهٔ ماتیږي
بلبل نشي پهٔ دیدن د بنهٔ ګلزار سېر
د عاشق شوق له دیدنه مضاعف شي
مستقي پهٔ اوبهٔ نشي د بحار سېر
عشق اتش حسن لرګے دے کهٔ باور کړې
پهٔ خوراک به د لرګي نشي بل نار سېر
د عاشق پهٔ بنهٔ دیدن مرېده نشته
پهٔ تمام جهان به نهٔ شي جهاندار سېر
پهٔ هجران کښې عاشق تږے له وصاله
بیا سوختهٔ پهٔ وصال نشي د دلدار سېر

---

له رص : پهٔ خوراک به د لرګي شي بل نار سېر

هر سړۓ په یوهٔ څیز باندې شېدا دے
پهٔ لیدهٔ دهغهٔ څیز نشي خریدار هېر
څوک پهٔ زروسیم مین څوک پهٔ اسپانو
ځنې نشي پهٔ خوراک دګوشت اشمار هېر
ددنیا عاشق تل ورے تږے وسي
دنیا دار حریص دے چرې په دیدار سېر
دنېکانو له نېکیه صبر نهٔ شي
پهٔ بدکار گفتار بنهٔ شي بداشرار سېر
دعالم پهٔ علم ، هیڅ سرابي نشته
عارف کاندې له لدنه دانوار سېر
دهر چا پهٔ نظر خپله چاروې خوښه
هیڅ یو نهٔ دے دخپل حب پهٔ کاروبار سېر
دهیچا لهٔ خپله یاره صبر نهٔ وي
دا مخلص حریص دے چرې پهٔ دیدار سېر

---

۱ هرسړے یوچیں باندې شېدا دے

## در صفت نور مصطفٰے که اصل همه موجودات است

د مصطفوي نور په صفت کښې چې د ټولو موجوداتو اصل دے ۔

پهٔ هر لوري جلوه ګر وي د سرور نور
د باطن په دید لیدهٔ شي د دلبر نور
د سر سترګې کهٔ کړې عین د ذرهٔ د سترګو[1]
هر ظاهر باطن به ګوري دا نور نور
د سرور نور مشبّر شو پهٔ عالم کښې
چې لیدهٔ شي تر دا میان هم لروبر نور
د احمد له نوره کونو پاس موجود دے
د کثرت جامه ئې واغوسته رهبر نور
نور پهٔ څو رنګه ظاهر شه پرٔ جهان کښې
تور و سپین زیړ و زرغون شه د مهر نور
کل کثرت د نور جامه ده سر اغوستې
سر احد نور ئې احمد ګوره اظهر نور

---

[1] د سر سترګې کړه عین که د زړه د سترګو

نور صورت سره يې هستي ده که باورکړې
نور ظاهر سره يې باطن شه درشهر نور
ثمر بيا شجر ښکاره شهٔ پهٔ ښاخو نه
د ثمر لهٔ مغزه وشي د شجر نور
دا شجر مثال پسر ثمر پدر شهٔ!
پهٔ پسر کښي شهٔ څرګند د لوی پدر نور
کهٔ پدر ښکي پسر ثمر شجر شي
هم اول اخر ظاهر شه د داور نور
په هر آن په هر مکان د نور جلوه ده
و مخلص وته زيب زيات کا پهٔ سحر نور

---

هغه ذرهٔ چې شي روښان د ذات لهٔ نوره
د صورت قفس به مات کا لهٔ شد وره
چې افتاب د معرفت پاندې وځلېږي
د زمين مخ به ازاد کا له دې زوره
د دريا پ د وړاندې خس وخاشاک څهٔ دے
د عاجز بشر ګرېز دے له د پوره

---

له اص : نتږور

چې بادشاه پر هغه ځائے خېمه ونجي
کل عوام خېمه غوغا کا ځـني دوره
هغه څـېز چې د نمک پر کان کښې پرېوځي
که حېوان دے یا جماد که اونه کوره
ېکما نه شي نمک په لږ ساعت کښې
داوېنا په نیات عالم کښې دة مشهوره
دا محیط دریاب له مالګو څرکم نه دے
پکښې محوه شي خودي د بشر زوره
بـه ګمان د غېریت به ئې شي محوه
یو واجب وجود به ګوري بې فتـوره
د مخلّص پر زړه د ذات تجـلّي وشوه
د مقصود څېره یې ولیده حضوره

---

هرکه حسد وکبراز اصل او زایل شود برهمه مردم مشفق ومهربان گردد

---

هرهغه چې د چا د اصل نه حسد او کبر بري شول نو هغه په ټولو انسانانو مشفق او مهربان شو -

---

هر چې نوش کا د محیط دریا له نیره
کل حسد کبر به ورک کا له ضمیره
د بوډ په هستۍ هست کل نیک و بد دي
د هستۍ دریاب پټیږي له ضریره
انبیاء د دښمنانو خیرخواه وو
په خاطر کښې یې کینه نه وه جاے ګیره
هغه کس به په هر چا مهربان ګوري
چې هستي وینې په هر څیز کښې منیره
د کینې له اوره خلاص د جلیل ګروه دے
باقي نور په دا اور تور سوے تر قیره
چې ذره کبر ګناه ئې وي پر زړه کښې
له بهشته بې نصیب دي ناګزیره
د عارف دانا پر عیبو نظر نه وي
کل اقوال افعال له حق ګڼي خمیره
که جمال د حق جلوه کا په خاطر کښې
که جلال پرې باندې وخوځوي ځیره
د سرې ذرې بنه پر صحرا پروته
د جمال جلال تر بار پورې حقیره
پر هر لوري یې جارباسي بې اختیاره
د عاجز بنده توره نه وي له میره

قبض وبسط دحق پهٔ لاس کښې دے باورکړه
څکه ذرهٔ ئې اګه) خوشحال شي ګه دنګیره
د قدرت پهٔ لاس کښې هربنده عاجز دے
خلقه ده دتقدیر په څپل اسیره
له صنعته غیبت مهٔ وایه مخلصه
داغیبت شي لــه صانع دانا خبیره

---

## در بیان صفت مشاهده آب جاری که دلیل است بر رفتن گذاشتن عمر۔

---

د روانو اوبو دمشاهدې پهٔ صفت کښې چې دعمر پهٔ تېرېدو یو دلیل دے.

---

څهٔ عجب دے د دریا د مخ ننداره
صفا یې د زړهٔ مونده شي له غباره
اول سترګې پوهې سړې شي چې یې ګورې
هم ئې نور پرې تزاید شي لــه دیداره
دانایانِ چې اب جارې دبحر ګورې
پهٔ دا دود کا د انفاس دتلو نظاره

دا رواني اوبه په بيارتر نه جا روځي
هسې تللے عمر نهٔ کرځي دوباره
دم قدم دې روانېږي وعقبې ته
هر نفس (دې پهٔ دا لار ځغلې هواره)
هر قدم پهٔ غم ددهٔ پهٔ ياد کښې وسه
شايد دادم دې وروستے وي لهٔ شعاره
هر نفس دې زر زر دروي قرار نهٔ کا
لکه اس چې جلب رانس له سواره
پهٔ هيڅ دور به قرار نهٔ نيسي له تلکه
څو دې وروڵي د قبر تر کناره
دَ نفس پهٔ تربېدو يې نظر نشته
بې هوده پهٔ سود سودا پسې سياره
د فاني دنيا په سود پسې جاروځې
د باقي عقبې سودا وکړه اواره
دانايان به ورته وائي نادان دے
چې فاني کړي د باقي په ځائے اختيار ه
د مولا سوداګر لږ پهٔ لږ کښې لږ دي
دعقبې تاجران کم دسيم بې شماره
د دنيا سرمايه مال سود يې ګناه دے
سرمايه د اخرت طاعت بسياره

بهتر سود ئې د جنت حور و قصور دے
چې دایم ئې مشغولا دة لا شماره
د مولا د سوداګر مایه عرفان شه
د صاحب دیدار دې سود دے له ګلزاره
اے مخلصه که دانایې مولا غواړه
دین دنیا کړه داشنا پر مخ نثاره

---

## د آنکه کثرت ظلمت است و آب حیات در وست

---

کثرت ظلمت دے او د حیات اوبۀ په دې (ظلمت) کښې دي

---

اے چې (ته) د اهسې بنائسته ذات لرې
تۀ پۀ مخ کښې ولې پرده صفات لرې
کۀ هر څو صفات پۀ څادر کښې نغښته شي
پټ بنیش ټهرڅۀ کښې څرګند آیات لرې
عارفان دې ذات پۀ صفات کښې ګوري
د اصفات عین د ذات مرات لرې

---

له اص : پس

پهٔ څو رنګه دي جلوه ګره پهٔ مرات کښې[1]
پهٔ کثرت کښې حسن نه بې غايات لري

کل حرفونه دي له غيب دواته کښلي دي
ته پهٔ غيب عالم کښې قلم دوات لري

دوات دي علم (او) قلم دي خواست دے[2]
پهٔ وجود کښې عجيبه خيالات لري

عالم د خيال دي له ذرې څرګند شهٔ
تهٔ (رښه) پهٔ خيال کښې تمام ذرات لري

کهٔ يودم پهٔ خيال پرېوځې کل پهٔ نفي شي
تهٔ پهٔ خيال کښې (رښه) تمام کليات لري

کثرت قطعي مظلمت ملک دے عارف ليد دے[3]
تهٔ پهٔ ظلمت کښې (رښه) عين الحيات لري

کثرت کني دي خوارهٔ پکښې کښې دي
تهٔ په کثرت کښې وحدت نبات لري

لهٔ مخلص د ګفت وګوي پر ذرهٔ دننه
د راز خبر واره تهٔ بې اصوات لري

---

[1] پهٔ څو رنګه د جلوه د کر پېښ مرات
[2] اس(ق) دوات د علم قلم د خواست دے
[3] کثرت قطعي مظلمت ملک دے د عارف ليد لے

ذات دې ډیوه ده صفات ددې فانوس شولو
په صفات کښې بله ډیوه د ذات لري

---

## في المناجات گوید

تهٔ قدیم بادشاه رؤف یې مهربان تر پلار او موره
نفس شیطان مې لوے ولښت دے دا ضعیف له ولښته زغورهٔ
نوس پرٔ مکره پرٔ حیله دے بد شیطان یې وسیله دے
کهٔ مې تهٔ مددګار نشې ما به ورولې تر اوره
غم اندوه په زړګي اور دے له دې اوره سوے تور دے
دخپل یاد باران پرې وکړه چې زرغون شي له تورهٔ
دا ستا یاد د رحمت وور دے په زړهٔ خور مې په دور دور دے
غم اندوه له زړهٔ وزدویه اے خپل محب غمخوره
پخپل یاد مې زړهٔ ارام کړه ترا، مشغول یې پر دوام کړه
له وسواسه نجات ورکړه تهٔ قادر پر زړهٔ هرګوره
زما زړهٔ دے ستا په لاس کښې پریشان دل یم په کل ناس کښې
تهٔ د زړهٔ جمعیت راکړه شم فارغ له شرا شوره

---

له ..... - فانوس شد ۲ اص،رق، ناس

پهٔ کثرت کښې شراشور دے دا وحدت د ارام کور دے
د وحدت حال مې روزي کړچې يوځا ونم ښېن لوره
پهٔ ښېن لوري جلوه ګرځي د وحدت د ملک داورئ
هېڅ ښېن نه کوبي نهٔ د دومي ستا په حکم ستا بي زوره
د مخلص زړګے ارام کړه د وحدت ملک ئې انعام کړه
د زړهٔ تخت ئې سکونت کړه فايدهٔ نشته تر دا نوره

---

**کل شئٍ مصقله ومصقله القلب ذکرالله قول بايزيد**
**من وَجَد فرحته المعرفة ترکِ فرحت المال ومن يبدل**
**فرحت المعرفت بفرحته المال فهوه جاهل عيان .**

---

د هرشي د پاره يو رنګ مال وي او د زړهٔ رنګ مال د الله ذکر دے . د بايزيد قول دے ؛ چاچې د معرفت خوشحالي د مال د خوشحالئ د پرېښودو لهٔ وجې حاصله کړه هغه هوښيار دے) او چاچې د معرفت خوشحالي د مال په خوشحالئ بدله کړه هغه جاهل دے

---

کۀ د ذکر پۀ صیقل زړۀ مصفا کړي
د غفلت له توره زنګه به يې جلا کړي[1]
تجلي به د ارواح وربانـدې وشي
بسته در د معرفت به پر مخ وا کړي
د حق ذات به لوے بېمثل دریاب ګوري
د بېمثل ننداره به په هرځا کړي
ځان جهان به په عظیم دریاب کښې وینې
پر هر لور به تماشه د لوے دریا کړي
د عرفان خوښي که بیا مومي پر زړۀ کښې
د دنیا د مال خوښي به پسې شا کړي
معرفت د زړۀ افتاب دے شک پرې مۀ کړه
په دا نور به د زړۀ غولے په ضیا کړي
پۀ درون بېرون به نور ګوري پر زړۀ کښې
هر زمان به لۀ هوسه تن تنا[2] کړي
(پۀ یقین به د یوۀ اشنا مخ ګوري)
کۀ د عشق پۀ اور د غېر وشک جلیا کړي
پۀ جهان کښې شي څو رنګه اوازونه
کل به وارۀ د یوۀ دریاب صدا کړي

---

[1] د غفلت لتور زنګ ی جلا کړی
[2] اص : تن تنا کړه

هر اواز دهو تسبیح کاندي په زوره
د ذرهٔ غوږ به په تسبیح دحق شنوا کړي
مقرب به دحضرت شي په عالم کښي
تفهم کهٔ پر تسبیح دهر ندا کړي
دسایه په دود به وصل شي لهٔ نمره
کهٔ د لاالہ په تیغ وجود فنا کړي
دتوحید افتاب به ووینې مخلصه
دګمان اونه کهٔ غوځه سرتر پا کړي

---

کهٔ په ذکر دکامل مرشد باور کړي
پهٔ نفي لا به نفي دګمان غر کړي
الاالله به کړي ثابت پر خاطر باندې
غیرالله به له خاطره کل بدر کړي
دیار مخ به په هرڅهٔ کښې عیان ګوري
هر اشیا به د مولا د مخ مظهر کړي
داکثرت دے د وحدت مظهر پرقطې
پهٔ مظهر کښې به معلوم د وحدت نمر کړي
کلیمه دوحدت اونه ده بار داره
لهٔ دې اونې به حاصل دتوحید بر کړي

هر صورت په مثال لو ښې هستي اَب دے
په هر لوښي کښې به نوش اب دکوش کړې

کل کينه کبر به لرې کړې له دِله
د عرفان په نور به زړه روښان انور کړې

د عارف ښنان څرګند، مهرباني دَه
ګه پرګه په دَه د رحم نور اظهر کړې

لوے ښنان د رحم دادے پیر سړیو
چې له ذات له معرفته ئې خبر کړې

د نبي په دود رحمت په دَه عالم شي
که سړے له امره نهي بهر ودکړې

د نبي پر صف به ودري مخلصه
که تازه ژوندے سنت د پيغمبر کړې

---

که سعيد ئې له ناقصه صحبت کم کړه
دکامل پر مجلس جنس دې محرم کړه

د ناقص پېروي مه کړه که عاقل يې
دکامل په پېروي کمر محکم کړه

---

ٔه اص: دکامل پر مجلس دخپېر محرم کړه

لهٔ ناقصه به سود نهٔ موږي بې زيانه
له زيان کار موزيبه تښتهٔ دم بدم کړه
د ېر حاصل د معرفت به څنې موږي
راشه ځان د لوے مرشد کامل خدم کړه
کهٔ مريد د ناقص پير شوے لوئے کم بخت يې
پر ژونده‌ن يې د خپل دين ايمان عدم کړه
دغه عقل دې چراغ دے پهٔ دماغ کښې
پهٔ دنيا يې دبل بيل ابليس ادم کړه
چې بې خدايه دې مشغول په آن واين کا
هغه پير نن له شيطانه سره کم کړه
چې دې بولي د مولیٰ پر لور لهٔ غيره
دا داعي د دين پر لار کښې مقدم کړه
محبت د غيرالله له زړهٔ پرې وينځه
د کامل ذکر تلقين پر زړهٔ رقم کړه
شيطاني وسوس پرهار کا پر زړهٔ باندې
د پرهار علاج د ذکر په ملهم کړه
د رنځور زړګي دارو دي خفي ذکر
پهٔ دوام ذکر معدوم د زړهٔ الم کړه
نن صلوٰتِ دايمون زده کړه له پيره
دا وقتي دې له دايمه سره ضم کړه

د مخلص نصیحت دا دے کۀ یې نغوږې
چې پۀ هر ساعت (دې) ژغورې د چېل دم کړه

---

کۀ انسان یُ له هستۍ خبره زده کړه
ذرهٔ د جهل له ظلمته پستنه کړه
دانائي پۀ هستۍ عین روښنائي ده
نن دا هسې روښنائي یې دروېزه کړه
نادانی لویه تیاره ده پر ذرهٔ باندې
لۀ ظلمته د رڼا پر لور حمله کړه
د کامل تلقین کنجي ده د پټ علم
د تلقین پۀ کنجۍ بیارته دروازه کړه
لۀ ژوندونه بې خبر شې کۀ باور کړې
راشه ځان د کاملانو پۀ تپه کړه
تۀ د حق پۀ هستۍ هست حیات یُ ګرځۀ
پۀ ژوندون یُ د ژوندون اوبۀ مزه کړه
بې خبره نادیده یُ څښې ډېر ژوي
د ژوندون له اوبو نوش (یُ) پۀ دیده کړه
بې خبر رانده مزه څښي نۀ موې
د کوثر مزه حاصله پۀ کښته کړه

نابینا ماهي تشنه دے په دریاب کښې
بنیا دل ماهي سینه په اب سره کړه
ناداني خپله پرده د زړه په سترګو
دکامل په ذکر غوڅه دا پرده کړه
ددې نفس پر لار به ورسي وحق ته
ته هر دم دفتار د ذکر پر جاده کړه
د مخلص خبره ونغوږه نېک بخته
له مرشده ددې لار خبره زده کړه

---

وآنکه نواړې اجسام برسی خامه بسته اند وهیچ هستی در ریگ نرم زده اند وآنکه به قوت وجوانی مغرور نباید شد که این هر دو مقاوهم مرگ ندارد ۔

---

د بد نونو نوار په کچه رسی سره تړلے شوي دي ۔ د هسی منځ په نرمه شګه کښې تهک وهلے شوے دے ۔ په قوت او ځوانی غاوره کېدل نهٔ دي پکار ځکه چې دا دواړه د مرګ تاب نهٔ لري ۔

---

دا صورت گوره درخت د سیند تر غاړه
عاقبت به شي فنا د سیند له باړه
که ډېر کاله وي بوټا اخرت پرېوځي
چې د سیند پر کناره باندې ولاړه
د مرګي د سیند چپه به ئې پرېباسي
د صورت د خاورو سسته ده کواړه
یو ه روح به دی فنا په سیند لاهو شي
په اومه سپېنسي بسته ده د تن نواړه
د نفس سپېنسي لطیف باریک زبون دے
د هستیه مېخ پر نرم ربت کښې ګاړه
که هر څو صورت قوي پهلوان وینه
نیوے نه شي د مرګي د بحر آړه
یخ که هر څو ډېر محکم په نظر کښېوځي
زر اوبه وبلې روانې شي له هاره
په قوت ځوانئ هرګز غره ګي مه کړه
د مرګي د ورانډې ډېر زبون دي دواړه
د دنیا په نابود ملک استوګه کمه
ځکه نوم ئې په کتاب کښې دے اوجاړه
که محل په محکمه لوړ کړې تر غرونو
عاقبت به شي خراب عمارت واړه

دِ جمشېد دباغ محل نښانه نشته!!
نن پهٔ دېر جهد کوشش کړې یې غواړه
کهٔ عاقل يُ دعقبٰی پر لور روان شه
د دنیا پهٔ حال و ملک فاني مه ویاړه
د مخلص نصیحت و نغوږه طالبه
د مولا پهٔ مینه دوه کونه ونغاړه

---

د دمعنیٰ انکه هرکه حق را ثابت دکرد ، ونفی کرد خود را ، ثابت کرد (خود را)
ونفی کرد حق را ومومن نفی کننده خود واثبات کننده حق ست

---

پهٔ دې معنیٰ چې ، چاچې حق ثابت کړو اوځان يُ نفی کړو نو
هغه ځان ثابت کړو اوحق يُ نفي کړو او مومن دځان نفي کوونکے
او دحق اثبات کوونکے دے .

---

څوچې نهٔ شي پهٔ شهٔ راه کښې پر وتۀ دوړه
حقاني بادشاه به چرې درکا گسوړه
له اوله چې ځان خوار بې مقدار نهٔ کړې
روحاني داود به نهٔ درکاندي جبوړه

څو هستي خودي درڅخهٔ[١] موره مهٔ ځه
د بې نياز به درنيستي پوســه پخوره
د سـړي هستي خودي دځان عذاب دے
بې خودي نيستي ازاده لهٔ اروړه
دا نيستي حق پرسـتي ده بې ګمانه
پهٔ خودي طاعت تمام دے پهٔ شرک بوره
ځان نفي مولا ثابت کــړه کهٔ مومن يې
بې نفي دځان ايمان طاعت دې پـروره
کل مومن له ځانه نيست پهٔ مولا هست دے
چې ځان نيست مولا ثابت نـهٔ کا نګوره
بې تښتنه مال بهتل واې پهٔ شـرع
بېتلے اموال به ولې شي جنجـوړه
بې محبوبې دې خوارې پهٔ دواړه[٢] کونه
يو دختو معشوقه محبوب کړه جـوره
د محبوب وته ځان وسپاره محب شه
بې سپارلو ځان دعشق دعوىٰ دې دوره[٣]
کل صفات ستا پهٔ صورت کښې امانت دے
ستا صورت د امانت کـالي کخـوره

---

[١] جرخه [٢] اص: دوه [٣] اص: دلې بسپارله ددان
دعشق دعودي دوړ

دا کالي وتښتن وسپاره فارغ شه
خپل کالي به تښتن واخلي په مروره

---

در بیان آنکه از یافتن مراد دنیا هوس بدنیا کرد که بساط هوس (وزود .... خواهد نمود) وانکه هوس بی اندوه در دنیا خواستن از محالات و بادشاهان را مراد نیست و درین ویران گنجے بی مار موجود نیست و درمراد نامرادی تعبیه کرده آمد

---

په بیان ددې چې ددنیا د موندلو نه مراد ددنیاهوس دے - د هوس بساط ...... او داچې په دنیا کښې بې فکره او بې غمه هوس غوښتل د محالاتو نه دے - بادشاهانو ته هم حاصلدلے نشي - او په دې وران ګنج کښې بغیر د مارانو هیڅ موجود نشته. او په مراد کښې نامرادي راننوتې ده -

---

بېهوده په دا نابوده دنیا ویارې
دهوس بساط به زر په غم ونغاړې

بادشاهانو په ډېر زور حاصله نهٔ کهٔ
په دنیا کښې بې اندوهه هوس غواړې
ګنج بې ماره ګل بې خاره موجود نشته
نامرادي وینم دهر مراد په غاړې ې
د وصال د دولت قدر بېلتون زیات کهٔ
د غارمهٔ د راحت سود څرګند که جاړې
ګذشته ساعت به نهٔ درځي په قطي
کهٔ ډېر غم اندوه ارمان کړې پسې ژاړې
په صحت عافیت ډېر شکر کړه ګرځه
څو صورت دې سلامت د مرګ لهٔ داړې
د مرګي د فیل له داړې به خلاص نشې
که ګوېز کړې پر خشکۍ یا پر نواړې
د دنیا پر اوجاړ سراې کښې مقام مهٔ کړه
هېڅ عاقل استوګه نه کړې پر اوجاړې
د اجل ساعت به وړاندې ورستو نشې
څو سړے له حلقه کښته کا ندې لاړې
دے مرګے تېر په لاس کهٔ غوڅوي یې
د صورت ونې پر ځاے ورسته ولاړې
راشه سرله خوبه پورته کړه مخلصه
د غفلت په خوب دې ډېرې شپې ولاړې

کهٔ پر سر باندې د علم عقل جوړه
کښې به ننې د دنیا پر ګندهٔ کوڼه
سر تر پایه به پلید شي پهٔ نجس کښې
چې د ډولي کهال په میان نالی کا لوړه
د مولیٰ پهٔ در به مخ الوده یوسې
چې پرې کښیني د دنیا د میني دوړه
د مال حب زړګو تهٔ سخت تر سیاه سنګ کا
د دنیا منیه پر زړهٔ کښې مه کړه کروړه
چې یې حب د سیم و زرو وي پر زړګي کښې
په معنیٰ کښې یې روح مړ ک صورت یې سوړه
د خاصي ململ وو دنه لوئې هسن دے
له کښړ وی شړهید به څه حاصل کړې دوړه
د دنیا مینه بل او ایمان پرې سوځي
پهٔ دا او کښې سوي ډېر وینم سوړ بوړه
اے مخلصه د دنیا مینه کولنه دے
پهٔ دا حیل ځلبلي ډېر ګرځي سرتوره

---

---

ك اص : ګوړ

# فی المناجات گوید

زهٔ نادان طفل يم زړهٔ دے زهيرمهٔ کړه دنادان زړهٔ
ستا دمهر شيرتل غواړي اموخته دے ستا پرخوان زړهٔ
اموخته زړګے تل غواړي چې زرنه مومي دبر ژاړي
ستر اويا مادر مشفق يې خسته مهٔ کړه دګريان زړهٔ
ستا په لاس کښې کل اشياء دي چې پر ارض و پر سما دي
دخوب زړهٔ علاج په تا دے ته درمان دبې درمان زړهٔ
زما زړهٔ درمانده شوے پهٔ ډېر فکر مانده شوے
پهٔ ډېر غمونو کښې حيران شه ته غم خوارئ دحيران زړهٔ
تهٔ زما پر زړهٔ دانا يې پهٔ پټ خواست سوال شنوا يې
پهٔ پټ علم يې اګاه کړه خفهٔ نهٔ کړې د رازدان زړهٔ[1]
دهجران اور يا د حطمه دے دے پرتا نل زړهٔ حواله دے
دوصال باران پرې وکړې مهربان شه په سوزان زړهٔ
هغه څهٔ چې په تا نشي پهٔ تا سوے زړهٔ سارهٔ شي
دخليل اتش دې سوړ کړه هسې سوړ کړه دابريان زړهٔ

---

[1] پهٔ دې مصرعه چوے نهٔ شوم

دا زړونه ستا پهٔ لاس کښې چې موجود دي کُل پهٔ ناس کښې
د رقیب ذرهٔ مهربان کړه چې اوبه موم شي سندان ذرهٔ
د مخلص امید په تا دے نا امید له هره ځيا دے
دا امید چارې پوره کړه نا امید مهٔ کړه د جویان ذرهٔ

---

## بیان علامت ناقص و کامل

---

کـهٔ د عشق پهٔ اتش وسوځې گدازه
پهٔ باطن کښې به افتاب شې سرفرازه
بیا (به) دل اهل په نور له تا حامل کا
په دا نور به کا معلوم شبب لهٔ فرازه
کاملان لکه افتاب بینا پرې گرځي
شوپرک پهٔ رڼا پرنوځي له پروازه
له محمود سره عالم د برې حساب وُ
معرفت محمود حاصل کا لــه ایازه
روښنایي لــره د سترګو نور باید دے
چې زغن کرکس معلوم کا ندي لهٔ بازه
علـم عقل تمیز سترګې دي بر ذرهٔ کښې
چې کامل ناقص پهٔ دا نور کا ممتازه

د کامل نښان دغه دے په عالم کښې
چې اتهٔ مقامه خپل کاندي لهٔ نیـــازه
د نبیلو اَجــر نـهٔ غواړي له هیچا!
هـره چار ئې دمولا پهٔ حب پر دازه
د مخلوقه ئې ، هېڅ طمعه پر زړهٔ نهٔ وي
دبل طمعه کا د زړهٔ جامه بې نمازه
د ناقص علامت دا دے کهٔ ئې نغوړي
چې واقف نـهٔ وي د هـر مقام له سازه
طمعه داروي له مریده دنیـا غواړي
توکل قناعت نـهٔ لري بې آزه
دا کــلام دے ترازو عـالم پرې توله
د کامل د ناقص فرق کړه جوازه
هر چې نېک وبد جدا نهٔ کا جاهل دے
پهٔ تمیز عقل کښې کم دي لـهٔ بزازه
ناپوهي عظیم ګناه ظلمت یا د شو ے
پهٔ تیارهٔ به شیر بیل نهٔ کا له کرازه
د کامل کلام چراغ لــره د وړانـدې
پهٔ دا نور به د رخر ګند شي وران لهٔ سازه
خریدار چې لو ښے پېري لهٔ کولالــه
روغ ومات لوښے معلوم کا لـه آوازه

اے مخلصه دکامل کلام ثابت دے
د ناقص وینا شکسته کنهه ناسازه

---

# وله

د دانا نصیحت ونغوږه نیک روزه
خیل کاروان د انبیاء پر لارې بوزه
دغه لار تمام سالمه له بدعته!!
تر افتاب مهتاب روښنه ده پښوزه
کاملان د دغې لارې رهنمای دي
پیروي د کامل مهٔ پرېږده بهروزه
د نفسک شتر پهٔ ریاضت ارام کړه
د تلقین مهارئ تل لره پر پوزه
زړهٔ روښان پهٔ لوړه ذکرشي دانا زده
دا کلام پر زړهٔ تصدیق کړه نوامونه
پهٔ غفلت اندېښنه زړهٔ سیه زنګار شي
غافل دل ځنې خبر نهٔ دے بد روزه
پر سیاهي باندې سیاهي نه ځرګندېږي
یو سیاه ټکے ځرګند شي پاس پر غوزه

د غفلت په تیارهٔ ځکه نهٔ پوهیږي
خبر نهٔ دے له افتاب جهان افروزه
ضد په ضد شي ورڅرګند په دا عالم کښې
تاریکي د شپې معلومه ده له روزه
د پرکي مزه به ښه پرې څرګندیږي
چې فراق ئې خبر نهٔ وي له چلغوزه
څو ئې زړهٔ د عشق په اورکښې سوے نهٔ وي
خبر نهٔ وي د عاشق د زړهٔ له سوزه
د باطن دولت عرفان طالب ئې کم دے
د دنیا طالبان ډیر دي زر اندوزه
چې پټ ګنج د معرفت ئې په لاس کښېوت[1]
په ازل وه د مخلص بخره فیروزه
چې جلوه د معرفت پرې باندې وشوه
د عارف زړهٔ ښائسته شه له نوروزه

# وله

د دانا کلام ساده دے پُر رموزه
د معنې پر درّو پُر دے لهٔ کنوزه

---

[1] اص : کښېوځي

چې دا نه د معرفت پکښې نهٔ موي
بېهوده کلام ښکند دے تشه دروزه
پهٔ هر لوښي کښې چې وي څښې تویېږي
د نامنده درګې معلومه ده ډډوزه
د زړهٔ حال کل پهٔ کلام به ورښکاره شي
د څوانیه بانګ ظاهر نشي لهٔ چوزه
تر ظاهر پورې ښکند دَ باطن ملک شي
وبینا وته ښکاره شي لوړه کوزه
تر عاجز پورې قوي قادر معلوم شي
د څوانیه قدر زده شي له عجوزه
له صنعته وصانع وته نظر کړه
پهٔ صنعت کښې د صانع هستي بروزه
پهٔ ظاهر کښې د باطن ننداره څهٔ شي
د بې مثل اوان اروه لهٔ قبوزه
د نایي پهٔ دم آواز ښکند له نے شي
بې نائي د نے اواز دے لا یجوزه
چې اواز له نائي نهٔ کوري ړوند کوڼ دے
پهٔ تمیز عقل کښې ډېر کم دے لهٔ یوزه
داسړے بهتر په علم دے مخلصه[1]
بې عرفانه هیڅ بهر نهٔ دے له وربوزه

---

[1] داسړي بهتري پعلم دی مخلص

# وله

کهٔ دعشق پیاله کړې نوشه دل افروزه
د ذرهٔ ملک به دې روښان نورشي لهٔ روزه
کهٔ چراغ د محبت دې پر ذرهٔ بل شي
روښنائي ئې تر افتاب زیاته هنوزه
چې اتش د محبت بل شي پر ذرهٔ کښې
د ذرهٔ وازده ویلي محوه کاله سوزه
محبت لکه اتش باد ئې پکے دے
لهٔ پکي اتش تازه شي نوآموزه
نن صلوت دایمون رازدے له دوسته
په دایم یاد کړه له یاره پټه روزه
دحق یاد ئې مرد کے شیطان پرې دوله
شه تفنګ دو دهانه وګوره پوزه
په څړه یاد ئې آرام مه کړه طالبه
قافله یې ددیدار پر لوري پوزه
حضور دید رٰبه ء د مولا بیا موېي قطعي!!
کهٔ په رنځ وي پخپل قصد دې وُلي قوزه

د کامل صحبت هغه موې مخلصه
چې يې بخره په ازل شوې فيروزه

---

در بيان آنکه صفات حق تعالی بر ذات حق زايد نيست هر که ذاتِ
حق بر صفات زايد داند او گمراه است

---

په بيان ددې چې دحق صفات په ذات زايد نه دي-هر
هغه چې دحق ذات په صفاتو زايد کښي هغه گمراه دے۔

---

حق محيط په ذات صفات له هره څيزه
دے په ذات صفات واحد دے باتميزه
داحد په ذات صفات کښي بيوره نشته
د واحد پر ذات زايد صفات ناخيزه
حق په ذات بينا شنوا عليم گويا دے
دا اوبه په ذات لوندې سړې پاکيزه
داتش په ذات خشکي گرمي له ځانه
په يوه کښې شماره مه غواړه عزيزه

يو احد (دے) حقيقت کښې غير نهٔ دے[1]
بناخ د گل پاڼې پېدا شي له موېزه
چې صفات پر ذات زايد کړي جاهل دے
په تميز عقل کښې کم دے له کنيزه
ناسوتي د لاهوتي له حاله څهٔ زده
د مږه[2] هنر به څهٔ غواړي له هېزه
د ے شهپر د همت نهٔ لري چوزه دے
په خيل عمر بيرون نهٔ دے له گريزه
د صحرا د هوا قدر بانديٰ نشته
چې هر گز وتلے نهٔ وي له کريزه
ناداني جهل تيارهٔ روښنائي علم
په تيارهٔ د اب فرق نشي له کميزه
جهالت هسې رنځ مه کړه مخلصه
په عسل نۀ شي علاج يا له کشنيزه

---

[1] اص: يو احد حقيقے کښے غير نهٔ وي

[2] اص: مږهٔ

در بیان رستخیز معنوی که نفی ماسوی الله و اثبات حق است و نفخهٔ اول
که مانند لا اِلٰه است که محوی غیر الله است و نفخهٔ ثانی که محی عالم است
مثال اِلا الله است که اثبات باری تعالیٰ حد هر موجود از روی هستی
که ان هستی قیام هر موجود است -

---

د معنوي قیامت په بیان کښې چې د ما سویٰ الله نفی او د حق
اثبات دے - اوله شپیلۍ چې د لَا اِلٰهَ په مثال ده چې د
هغې نه غیرالله محوه کیږي - او دویمه شپیلۍ چې د عالم حیات
دے د الا الله مثال دے - چې په هر موجود کښې د باري تعالیٰ
اثبات دے او د هر موجود قیام د دهٔ هستي له رویه دے -

---

کهٔ خبر شې د معنیٰ د رستاخیزه
یو واحد وجود به گورې جسم انگیزه
د نفي نفخه چې پوکړې پهٔ ذرهٔ باندې
د گمان غرونه به کال کړې ریزه ریزه
چې تند باد پرې باندې وربشي ناچاره[1]
د عاجز پهٔ شاه حیله نهٔ وي بې گریزه

---

[1] اص : ناچار

د کمان لوړه (به زړ) ژور میدان شي
د اثبات بادشاه به دوروي ښېږه
لمن الملک نعره به وکا په جهان کښې
د واحد بادشاه قهار صاحب ستېزه
بل وجود (به) په عالم کښې موجود نۀ وي
کل جهان به وي خالي بل له غوریزه
هیڅ زنده (به) په عالم کښې قائم نۀ وي
چې ځواب وخطاب ورکا عجز امېزه
مخاطب خاطب به حق وي په عالم کښې
د دووم وجود به نۀ پرېږدي خونرېزه
په نفخه ثاني به کل عالم موجود شي
د هستئ په خم به رنګ شي له رنګرېزه
د وحدت دریا ارواح کثرت صورت شو
د صورت ونه په روح ګورم ګل بېزه
اے مخلصه ځان جهان ځان ګوره
د یقین ورو د مولا ته دست اوېزه

در معنی آنکه اشیا مظهر حق تعالیٰ و حق در ایشان بینا و شنوا و گویا است و باطن بین را ازین معنی روشن است و از مردم ظاهر بین پنهان و در معنی حدیث نبوی ؛ ذات حق تعالیٰ اقرب للانسان من جسد الانسان .

---

په بیان د اشیاو چې د حق تعالیٰ مظهر دے او حق په دوي کښې بینا شنوا او گویا دے او باطن بینو ته په دې معنیٰ سره ښکاره دے او د ظاهر بینو نه پټ دے . په دې معنیٰ سره نبوي حدیث دے چې د حق تعالیٰ ذات انسان ته د انسان د بدن نه زیات نزدې دے .

---

نن د حال په ژبه وایم دا بیان زهٔ
په هر څیز کښې یم بینا شنوا گویان زهٔ
کل اشیاء زما مظهر دے په شپږ لوري
په هر څهٔ کښې یم بینا وته عیان زهٔ
د باطن د سترگو پټ نهٔ یم باور کړه
د ظاهر لهٔ سترگو پټ وایم پنهان زهٔ

د سر سترګي که کړې عین د زړه د سترګو[1]
بې حجاب به د رښکاره شم په جهان زه
ظاهر بین مې لید ے نشي ځني پټ یم
باطن بین وته ښکند په هر مکان زه
زه له تا وتا نژدې یم نه مې ګوري
له تا پټ هر ګوره لرې په ګمان زه
نحن اقرب الیک درته وایم
تر بشهرګ لا در نږدې یم د جان زه[2]
زه دریاب ته مې ماهي په ما ژوند ے یې
په تا کښې تر تا چاپېر[3] یم درخشان زه
زه ښکند تر هر ښکند یم وعارف ته!
له نادانه ماهي پټ تر کور عریان زه!
زما ضد په جهان نشته چې ښکند شم
چې څه شته واړه څېل ځان ګورم علان زه
د دووم وجود موجود په جهان نشته
تل بې ضده یم ښکند په هر دوران زه

---

[1] اص: د سر سترګې کړعین که د زړه دسترګو
[2] اص: تر بشرګه ر در نیزدیم د جانجان ز
[3] اص: چوپیر

چې غائب شم د اشیاو وجود معلوم شي
تل ځرګند یم غایب نشم یو زمان زهٔ
د سترګې سترګې مې څکه لید ے نشي
دائې ما ورته ظاهر پهٔ هر اوان زهٔ
زهٔ اول تر هر اول آخر تر وارو
هم باطن د هر باطن اظهر روښان زهٔ
و مخلص وته ځرګند ظاهر باطن شوم
د نفاق له اهله پټ یم پهٔ میدان زهٔ

# فی المناجات ګوید

د صورت له حاله وایم د اګفتار زهٔ
د ے بندي پهٔ ځبنهٔ خوردن کورم اظهار زهٔ
د صورت جامه د زغرې مثال ګوره
نهٔ یې وینم د ګرمۍ سردۍ پکار زهٔ
د سردۍ پر وقت سره پهٔ ګرمۍ ګرمه
څکه وسوم پهٔ ګرمۍ سردۍ افګار زهٔ
نهٔ مر یه تا سهي نهٔ لوبږه کم قوت د ے
پهٔ یو حال کښې یې نه ګورمه قرار زهٔ

نهٔ پهٔ نماست ولاړ کښني وسهي تر ډېره
پهٔ داهسې بې ارام صورت ګرفتار زهٔ
نهٔ په نماسته کښني قرار پړ يوهٔ حال دے
لټ پهٔ لټ پهٔ اړخ ګورم تن دوار زهٔ
د شهوت غضب دوړاندې ډېر عاجز دے
تل يې وينم ددې دواړو خدمتګار زهٔ
دا صورت لکه رڼا قبه يې زړهٔ دے
دا فتاب د رڼا فرق نهٔ کړم اعتبار زهٔ
زړهٔ صورت صورت درست زړهٔ دے باور کړه
د صورت په درد درست زړهٔ ګورم آزار زهٔ
پر زړګي باندې کهٔ درد د ګيرې راشي
زردې مخ په ګونه وينم درد اشکار زهٔ
تر هر درد پورې عاجز زبون ضعيف دے
پهٔ لږ درد بلا يې نهٔ ګورم صبار زهٔ
درد وغم له زړهٔ وکښې نشي ناتوان دے
د قدرت پهٔ لاس يې وينم بې اختيار زهٔ
غم بشادي خندا ژړا يې پهٔ لاس نهٔ ده
بې اختيار ورځنې ګورم څوګذار زهٔ
خوب وخيال انديښنه واړه پرې غالب دي
تن مرکب فکر خيال وينمه سوار زهٔ

دغه ذرهٔ مثال خرگوش پرلښکر کښېوت
دخلاصي اميدئ نهٔ کړم په دا وار زهٔ
مګر ته يې نګهبان شې ويې ژغورې
دنجات حيله نهٔ کورم (د فرار) زهٔ
تهٔ عليم د ذرهٔ لهٔ حاله خبردار يې
پهٔ زبان وئيلے نهٔ شم پټ اسرار زهٔ
پر مخلص دخپل رحمت نظر دريغ مه کړه
بې له تا پهٔ عالم نهٔ وينم غم خوار زهٔ

## وله

دنوس خوي لهٔ تا نه شلېږي لکه وښه
دعادت په رسم سخت ئې هرګور غوښه
دمولی پهٔ درحالص طاعت قبلېږي
دريا په عبادت باندې ومړه
دم غونډې دعرفات دهٔ که پوهېږې
نن پرغره دمعرفت پورته وخېژه
دتلقين په الماس غوڅ ذره ذره شه
دم په دم د وچو شګو په دود رېژه
دګمان ځنګل که هرڅو ګڼ ولاړ دے
ويې سېزه نن د لا نفي په اېژه

چې پهٔ لا اله اتش کمان وسېزي
اِلا الله باندې باران وورة ورېږه
چې د پير په وسیل چار نهٔ کا مخلصه
د جاهل زړهٔ د ورمېږ غوښدره کېږه

## وله

که سالک يې وعرفان وته وخېږه
د نفس پر لار اسمان وته وخېږه
سر آسمان درست فهم تول کړه پر سر باندې
له اسفله وکیوان وته وخېږه
د سلطان معلّٰی[1] مقام دے پورته
له دې خمایه[2] پاس دالان وته وخېږه
بنهٔ مقام به دې محمود ابد دوزي شي
نن د عرش ولوړ مكان وته وخېږه
لوړ مقام د محمود اورو ديوبند دے
پهٔ تلوار ولوړ مكان وته وخېږه

---

[1] اص : د سلطان تعا مقام دے پور

[2] اص : لدیه

د روح ځائے د سر دپاسه دے هادي دے
نهٔ لهٔ ځانه وجانان وته وخېژه
د صورت لهٔ قېده ووځه کهٔ عارف يې
لهٔ مکانه لامکان وته وخېژه
لهٔ ناسوته ولاهوت وته پرواز کړه
لهٔ گمانه وايقان وته وخېژه
لهٔ کثرته د وحدت پر لور روان شه
لهٔ خزانه وآمان وته وخېژه
بې مولا په لا نفي کړه کهٔ مومن يې
پاک دَ اِلا الله مېدان وته وخېژه
پهٔ نفسک پهٔ پليد ملک مه کړه استوگه
پهٔ کوشش وپاک جنان وته وخېژه
اے مخلصه د صورت طاعت وقتي دے
له وقتي وجاودان وته وخېژه

## وله

---

دمولى پر لار سم نهٔ حې نابينا کړ
يو سر بل سر دربل کړحې له هدا کړ

څو عصا[1] چې يې د وړاندې رهبر نه وي
په کوهي کښې به ځان واچوي نابينا کړ
بنيا دل کامل هادي ورلره بويه
چې کور دل په لوئيه[2] لاره ځي جدا کړ
هغه کس به دوامې دعوت نه اروي
چې د نفس په هوا دروې په غوا کړ
چې د پير کامل دعوت يې قبول نه کړ
ازلي کم بخت به ځي ستر انتها کړ
هغه کوڼ به څوک سم نه کا په جهان کښې
په ازل چې پيدا کړي وي خدا کړ
نيک بختان به د هادي پر لور ستانه شي
د مضل پر لور کم بخت کاندي لوا کړ
ړوند جاهل په سمه لار کښې دربلېږي
په ليده لاره نه دروې بنيا کړ
بېراهي لار ودانا وته څرګندة
پر ثابته لارې چرې ځي دانا کړ
نفس سمه لار څرګنده ده وحق ته
احمق سمه لار پرېږدي ځي له نمنا کړ

---

[1] اص (ق) عصاکش

[2] اص : لوی

د دیدار لار به غلطه کا باور کړه
که له دې صراطه شي مردو نسا کړ
چې پر لب د نالې ځي ترسینده ورشي
مګر جوی پرېږدي روان شي پر صحرا کړ
د توحید وته به نهٔ رسي مخلصه
چې پر مبتلي لارې درومي په دنیا کړ

# فی المناجات گوید

زهٔ په ذرهٔ کښې رتل ) ویرېږم له اغیار کړ
تل په تا کښې امینې غواړم لهٔ مکار کړ
هر چې سمه لاره پرېږدي پر کینې درومي[1]
پر ذرهٔ خون په جهان او سم لهٔ حصار کړ
چې حسد کینه مدام لري پر زړهٔ کښې[2]
پناه تا لره درومه لهٔ دې غدار کړ

---

[1] اص؛ هو چه سم لار پرېږدي پر کینې درومي غلت
[2] اص؛ چه حسد کینه مدام لري پر زړهٔ کښے هغه

زۀ پهٔ سمه لاره دروم راڅرخيږي[1]
مګر ته خلاصيه راکړې له خاردار کړ

ښه ويناييږي پهٔ دهان کښې نهٔ جوړيږي
بد ايې کا پهٔ عالم کښې له ګفتار کړ

چې يې ترس نهٔ وي پر زړهٔ کښې ستا له قهره[2]
امان راکړې تهٔ له هسې ناترس کار کړ

چې پر راستيه لارې کږ بېراهه دروي[3]
راستي مهٔ غواړه له هسې کږ رفتار کړ

چې پهٔ بعث بعد الموت يقين يې نهٔ وي[4]
لوي کافر دي پناه راکړې لهٔ کفار کړ

چې پهٔ خوې شريرغيل له زهرو ډک وي[5]
تېښته ستا پر لورې کړم زهٔ لهٔ اشرار کړ

د بدکار بې باک صحبت له ماره بد دي[6]
پر زړهٔ ډېر ځنې ګرېزان يم له بدکار کړ

---

[1] اص: زپسمه لار دروم راڅرخيذی مدام

[2] اص: چه ی ترس نوی پر زړ کښې ستا لقهر ذره

[3] اص: چه پر راستی لار کږ بېراه دروی بهوش

[4] اص: چه دا بعث بعد الموت يې يقين ېږ

[5] اص: چه پخوی شرير تخيل لزېرو ډک لک مار

[6] اص: د بدکار بی باک صحبت لهٔ مار بد دی قطے

چې صاحي مردان راشي ستر څوې غره[1]
پر ذره ډېر ځني زهير له ناهموار کړن
چې د يار ذره بانديې ګران ندوي سرکش وي[2]
ياران تل پر ذره بېزار لـه دل انزارکړن
چې پر مال منصب بـه کبر کا پر فقـر[3]
مخلص نه ځني بې نياز کړه له فخارکړن

# وله

که نجات د خپل ذره غواړې له وسواسه
غافل مه شې يو نفس له پاس انفاسـه
که باسبان دپاس انفاس کا پر ذره باندې
د ذره ملک دې پـه امان شـه له خناسـه
چې د سپي ذکر نه کاندي غافـل دے
د ذره ملک بـه يې پـه دار وي له کراسه
شيطان وسواس کراس د ذره پـه ملک کېنې
پـه خفي ذکر ذره ژغوره له مواسـه

---

[1] اص: چه صاحی مردا مزاشے ستر څوی غره
[2] اص: چه د يار ذره بانده ګران نوی دی سرکش
[3] اص: چه پر مال منصب بکبر پر فقر کړ غنی

د تلقین تخم به چرې پرې زرغون شي
څو خالي نهٔ کا د زړهٔ پټې له کهاسه
غم اندوه کل پهٔ غفلت پورې تړے
کل هوس بنا دي دحق په یاد بشناسه
جمعیت د زړهٔ پهٔ ذکر کښې څرګند دے
پهٔ غفلت کښې تفرقهٔ کودم بې قیاسه
محبت پهٔ ذکر زیات شي پهٔ خاطر کښې
پهٔ نفس دعشق پیاله څښنهٔ کا بهسواسه
د نفس ذکر شراب د طهور تل څښي
غافل دل هیڅ خبر نهٔ دے له شناسه
دکوثر اوبه نصیب د احمد یو
د ابوجهل کروه له دې اوبو نراسه
اے مخلصه د کوثر اوبه پهٔ کور کښې
څښې به نه شې بې د پیر کامل له لاسه

# وله

دم رهبار هد هد چې راغے له بلقیسه
زړهٔ سلیمان ئې خبردار کهٔ لهٔ انیسه

---

[1] اص: دني (څني)

چې معشوقه يې دعاشق تر پوره راغب کړه
دعاشق شوق دے جاذب له مقناطيسه
دهر څيز کشش کوشش دے وخپل جنس ته
دمحب محبوب معنیٰ سره تجنيسه
دحب حکم پر محب محبوب جاري دے
دي محب محبوب محکوم حب يې رئيسه
دا محب محبوب مظهر حب ترې ښکاره شه
خود په خود طالب مطلوب شه بې تلبيسه
دمحبوب مخ دمحبت اهينه شي
دا محب پکښې خپل ذات ګوري تقديسه
دمحب مخ اهينه دمحبوبا شه
خپل صفات پکښې ښکاره ګوري نفيسه
هر محب چې صفات خپل کښې فاصل دے
پر مرات کښې رنګ له کومه دے خسيسه
موتو اقبل ان تموت شه صفات ورک کړه
په نېستي کښې ايمني وي له ابليسه
بل دووم فائده يې داده که باور کړې
چې ژوندون به يې محبوب موږ جليسه

ـه اصل : ......... صفات ورکړې

هم بینا شنوا عالم به پهٔ مولیٰ شي
هم پهٔ دوست به هر کلام وایي سلیسه
ارادت قوت به وګوري لهٔ حقه
د واصلو پر قطار به شي سیَسه
پرې باقي وجود به بیا موږي مخلصه
چې فاني کا د ګمان وجود خلیسه

---

# وله

---

چې خبر شي دالود ذرهٔ له اودسه
ذرهٔ پلید به پاکیزه کا لهٔ نجسه
هغه کس به ترابده پلید وسي!!
چې واقف نهٔ وي د خپل ذرهٔ لهٔ دنسه
چې خبر شي د خپل ذرهٔ له پلیدیه
د ذرهٔ ملک به په جارو پاک کا له خسه[۱]
بنهٔ جارو به يې خفي پاس انفاس وي
چې خزله پر جارو به کا لهٔ خسه

---

[۱] اص : د ذرهٔ ملک به بجاروب پاک کړله خس

شیطاني وسوس خزله پلیتي ده
هم کینه بخل نحس دے له مګسه
چې د زړهٔ پهٔ خوان مګس پلیدي پرېوځي
زړهٔ خوړلے غواړهٔ واچوي واپسه
ذکر فکر عبادت د روح طعام دے
پهٔ دا قوت ارواح قوي شي یو پهٔ لسه
چې یې دغه طعام ستون کړ بیمار دل شهٔ
بیمار دل دے بې نصیب له ښهٔ هوسه
مدام ذکر معرفت د زړهٔ چراغ دے
د غفلت تاریکي زیاته ده لهٔ نسه
د زړهٔ غولے به یې پاک تر آهینه شي
چې هردم پې مشغولي وي له نفسه
آهینه به د سکندر جام به د جم وي
هغه زړهٔ چې پاکیزه شي له وسوسه
حقیقت د هر اشیاء به پکښې ګوري!
د هماي اصل به بیل کا له کرګسه
څوک نوري څنې ناري دي پهٔ عالم کښې
و دانا وته ښکاره کس لهٔ ناکسه

---

ـه اص : نور

کهٔ ناري حنیس نوري کښي پر ذرهٔ کښې
خپل اقوال افعال گواهي یي پر ځان بسه
د اگواهان ځني کاذب ځني راست گو دي
پهٔ خدائي نور څرگندیږي روح لهٔ نسه
چې پهٔ نظر په نور الله ځني پټ نهٔ دے
پهٔ نظر کښي څر معلوم کا لـه فرسه
اے مخلصه منافق په جهان دېر وو
پیغمبر وُ خبردار لهٔ هره کسه

---

# وله

---

د عاشق بېد له کار وي له ناموسه
د پتنگ وي صبر چرې لهٔ فانوسه
عشق اتش پند ملامت پهٔ مثال تاو دے
اور له باد پهٔ زمان پرېوځي له هوسه
د عاشق پر ذرهٔ کښي صبر قرار نهٔ وي
د دیدن پهٔ سبب ډېر گرځي جاسوسه
حیله گر شي په ثوبونه حیله غواړي
حیله گر ذرهٔ شي دانا لهٔ بطلموسه

د عشق درد ذرهٔ نوراني صفا روښن کا
د بې درد زړګے د پرتو وي (له) ابنوسه
د مجاز محبت پل د حقيقت دے
بې مجاز د حقيقته شه مايوسه[1]
حقيقت وته به څرې وررسيږي
چې دايم وي د مجاز په حُب محبوسه
څو د حقيقت دانه حاصله نهٔ کا
هيڅ مزه لذت به نهٔ مومي له بوسه
په ظاهر کښې د باطن مشاهده کړه
په مقنع کښې څرګنديږي نو عروسه
ښ ديده له باطن بين له حقه غواړي
چې باطن پرې ښکاره کوري له محسوسه
چې مجاز د حقيقت په نظر کوري
دے مخلص بصيرت بيا موند له قدوسه

---

[1] اص : بې مجاز د حقيقت مشي مايوس

# وله

نن له دې د معرفت سرمايه يوسه!!!
بل (به) خلاص شي په قيامت کښې له افسوسه

که د ډلې د معرفت سرمايه غواړې
شب و روز د پير کامل په خدمت اوسه

خفي ذکر معرفت څښې حاصل کړه
په نعرو[1] به مولى نه موې خروسه

دے ترتا وتا نزدې بينا شنوا دے
بېهوده اواز بلند څه کړې ککوسه[2]

چې د معرفت مېوه پرې پوره نشته
د جاهل صورت ببُول دے يا پلوسه

چې خدمت کاندې په درکښې (يې) لوے گنج دے
چې معشوق يې دے راضي په کنار بوسه

بې وصاله عبادت دے کښت پر پرخه
بې بارانه کښت زرغون نشي له اوسه

---

[1] اص: پنار به مولى .........

[2] اص: بېهوده اوازه بلند څکو ککوس

بنهٔ دیدار به کاندہ بیا موږ مخلصه
نن لهٔ دیٔ[1] د معرفت سرمایه یوسه

# وله

کهٔ دانایې وسفر ته تیار وسه
هر زمان ئې تر نفخه بېدار وسه[2]
د سفر د تللو ساعت معین نهٔ دے
و خرمان ته د بادشاه انتظار وسه
و دانا وته د وړاندې حال څرګند دے
نن د ګانده له واقع خبردار وسه
نن کرل ګاندہ ربل دي ایمان راوړه
پهٔ دنیا کښې د عقبیٰ پهٔ کاربار وسه
پهٔ دنیا کښې عمر لږ (دے) ورته څېر شه[3]
دَ عقبیٰ پهٔ ٭دوبار کښې بسیار وسه
پهٔ عقبیٰ کښې تل تتله ده استوګه
همېشه د آخرت (ته) بیمار وسه

---

[1] اص: لدیه

[2] اص: هرزمان ی وتر نفخ بیدار اوس
[3] اص: زیرئ لږ کړه

لوئے نیر دے د ایمان هادي ویئیلے
د ایمان لهٔ ورکه دوني هوښیار وسه
هغه کس چې اخرت نهٔ مني رد دے
د مرتدو لهٔ صحبته بېزار وسه
چې د روح په بقايي قايئله نهٔ وي
له هغه جاهله ځه په کنار وسه
د بد کس صحبت زوال د ایمان ګوره
لهٔ دې هسې بد صحبت په انکار وسه
د ابوجهل صحبت پرېږده کهٔ سعید يې
د صديق پهٔ شېر د نور یارِ غار وسه
د مخلص خبره درِ ګران بها دے
کهٔ عاقل يې ددې دُرّ خبردار وسه

---

## وله

---

کهٔ عاشق يې طلبګار دخپل یار وسه
لهٔ اغیاره ېې غمي کړه ېې زار وسه

---

ك اص : لــديه

غافلي بې غمي مهٔ کړه مسافر يې
يوه ورځ به اجل درشي بېدار وسه
بيا به وايې خبر نهٔ وم درته وايم
هغه وقت به فرصت نهٔ وي تيار[۱] وسه
نفس شېطان غليمان شته لار پُر خطر ده
د خپل ځان بهره لره خبردار وسه
خدائے ژوندون سمع بصر لاس ولپښې درکړه
عبادت پهٔ اخلاص کا بې ازار وسه
سکه بېمه پهٔ سرګين ولې محبت کړې
د بهورا پهٔ دود عاشق په ګلزار وسه
هيڅ قوت د عذاب نهٔ لرې پهٔ کور کښې
لهٔ ګناهه ځان ساته پرهېزګار وسه
د هوا[۲] پهٔ نغوته پورته کښته مهٔ ځه
قناعت صبر اختيار کړه قرار وسه
کهٔ د روح شاهد د زړهٔ خلوت حاصل کړه
سامعه کوشه کړه ترک پهٔ بازار وسه
چې[۳] د معرفت د ګُټُر[۴] اوبهٔ ئې څښلې
هغه کس محمدي د ے ترې ذار وسه

---

۱ اص: طيار ۲ اص: حوا
۳ اص: څه ۴ اص: کذر

اے مخلصه مرګ ساقي به پیاله درکا
هر ساعت تن مے مشتاق انتظار وسه

---

حدیث نبوی: ارجعي من الجهاد اصغر اِلی جهاد الاکبر

---

د وړوکي جهاد نه د لوئے جهاد په لور رجوع وکړه ۔

---

کهٔ سالک ئ د خپل زړهٔ نګهبان وسه
د خپل دل تر قلعه ګرځه پاسبان وسه
شیطاني اندېښنه مهٔ پرېږده په زړهٔ کښې
همېشه د زړهٔ د ښهر دربان وسه
د زړهٔ غیلي له شیطانه ګرګه ژغوره
شب وروز د خپلو غیلو چوپان وسه
روحاني ملکي فکر د زړهٔ مال دے
لهٔ دې ماله خبردار هر زمان وسه

---

له اص ، لـدیم

نفس شېطان دي قاصدان د زړهٔ دښمن
له ډېرې هسې د ښېنو تل هراسان وسه
د مخلص خبره پند دے که یې نغوږې
همېشه د دغه پند نګاه بان وسه

# فی المناجات گوید

ته حافظ رب ومربوب یې نګهبان د فقیر وسې
زهٔ نادان د دښمن د ګمان یم له نادان تر خبیر وسې
د نفسک په ارزو بند یم کښېوتلے په کمند یم!
د بندې په حال خبر یې ته غمخوار د اسیر وسې
د نفسک ارزو مې کم کړه تل مشغول مې پخپل دم کړه
زړهٔ ستا تخت حرم یاد شوے ساتند وے د سریر وسې
ته خالق د روزوشب یې د جمله مخلوقات رب یې
آدم تا شهد که په ملک کښې مددګار د امیر وسې
شېطان د هوئې لوئے دښمن دے پټ دستر ګوله روزن دے
سرے روند ځان بینا بولي ته حافظ د ضریر وسې
دهو لطیف سرے کثیف دے له کثیف پنهان لطیف دے
پټ لطیف غل لیده نشي د پټ غله نه بصیر وسې

---

ئه اص : لسدیه

زهٔ اوده ته ویښ بېدار يُ له اوده مړهٔ خبردار يُ
بې خبر اوده تل پروت دے دېرات دستګیر وسي
نفس قوي لوئے پهلوان دے دا ارزو ګُرزي ګران دے
زهٔ ضعيف حقیر ویرېږم ته پرلور د حقیر وسي
دا مخلص حقیر زهير دے له دي غمه پر دنګیں دے
نفس شیطان يُ بد خواهان دي تر نېک خواه د زهير وسي

---

## درمعنیٰ حدیث نبوی ز الناس نیام اذا ماتو انتبهو النوم

---

خلق په خوب اوده دي کله چې مړهٔ شي نو بېدار به شي .

---

اوده زړهٔ کړه په دایم یاد د مولیٰ ویښ
ذاکران دي له غفلته نن فردا ویښ
غافل دل به تر ابده اوده وسي
هر چې نشي د کامل پیر په سندا ویښ
زنده دِل به د داعي په آوان[1] پاڅي
مرده دِل به هرګز نشي په صدا ویښ

---

[1] اص : اواز

دولي پهٔ غږ به مړکوڼ چړې ویښ شي
چې مړکوڼ نشهٔ پهٔ غــږ د انبیا ویښ
سړي اودهٔ یاد شوے پهٔ حدیث دي
کل ســړي به مړگے پاڅوي احیا ویښ
پاڅېدل دي پس لهٔ مرګه ایمان راوړه
ژر به پاڅي پس لهٔ مرګه پهٔ عقبیٰ ویښ
تن کالبوت (دې) اودهٔ روح (دې) درست روغ دے
تن اودهٔ (دے) روح (دې) درست ګوري جدا ویښ[1]
خوب د مرګ ورور یاد شوے پهٔ حدیث کښې
پس لهٔ مرګه به روح وینې جوړ پهٔ دا ویښ
چې یقین يې د عقبیٰ پهٔ حاصل ـــنهٔ وي!
څـکه ډېر پهٔ کاروبار وي ددنیــــا ویښ
عبادت به پهٔ سستۍ پهٔ ځغ روسه کا
ددنیـا پر زیرمه شي دچرګ پهٔ خوا ویښ
ځان مومن مسلمان بولي پهٔ عـالـم کښې
بیا یقین کا چې به نهٔ شم پهٔ خدا ویښ
دقدرت وته نظر نهٔ لري ړنـد دے
چې (پهٔ) شپه کاندي اودهٔ سړے صبا ویښ

---

[1] اص: تن کالبوت روح درسته روغ دے
تن اوده روح درست ګوري جدا ویښ

پر مخلص دي ډېره مينه ډېر نظر وُ
چې يې زړهٔ شهٔ نن د ذکر په رڼا وينښ

---

## دربيان معنیٰ ايت ز كُلُّ حِزبٍ بِمَا لَدَيْهِمْ فَرِحُوْنَ ۝ الرّوم ايت ۳۲

قولې دلې په خپلو خپلو طريقو کښې خوشحاله دي

---

که دانا يې دايم اوسه په عرفان خوښ
په سر سپين کوډم عورته کودکان خوښ
د عارف د زړهٔ خوښي په معرفت ده
د دنيا په ذرومال دي جاهلان خوښ
دنيا دار پر فيل واسپ شتر نازين ي
په نيستي حق پرستي کړيٌ زاهدان خوښ
کم همت په غافيت تندرستي خوښ دي
په بلا دردو محنت دي صابران خوښ

---

ك اص : کټي

هر چي شکر په نعمت نه کا حق پوش دے
په لس ډېر نعمت دايم دي شاکـران خوښ

په قضا د حق يکان يکان رضـا دي
پر قضا د حق راضي دي راضيان خوښ

په رجا خوف و طاعت کښي مزدور کار کا
تل د مينې په عمل دي محبان خوښ

منافق په مخ رويېه عبادت خوښ دے
د اخلاص په عبادت دي مخلصان خوښ

د کاذب خوښي د کـذب پس دنيـا کښي
په رښتيا خبره ګورم صادقـان خوښ

بد کاران د بدکارۍ په کار راضي دي
د نېکۍ په کار کښي دي نيکو کاران خوښ

طيبات لِلطيبين دي کـه باور کړي
په خبيثې نسا ويـم خبيثان خوښ[۱]

---

[۱] اَلْخَبِيثٰتُ لِلْخَبِيثِيْنَ وَالْخَبِيْثُوْنَ لِلْخَبِيثٰتِ ج وَالطَّيِّبٰتُ لِلطَّيِّبِيْنَ وَالطَّيِّبُوْنَ لِلطَّيِّبٰتِ ج النور ۲۴ - ايت ۲۶

ترجمه :-

د ګنده ښځو دپاره ګنده سړي دي او د ګنده سړو دپاره ګنده ښځې او پاکې ښځې دپاکو سړو دپاره دي او دپاکو سړو دپاره پاکې ښځې دي .

بنهٔ اقوال افعال د ښو د پیاره شوي
تل په بد اقوال افعال دي فاسقان خوښ
جاهلان د جهالت په حال کښې خوښ دي
د دانش په نعمت وسي دانایان خوښ
کافران په کافري کښې ډېر خوشنود دي
ایمان دار دي په جهان کښې په ایمان خوښ
ناسوتي د شریعت په عمل خوښ دي
سالکان دي په سلوک کښې هر زمان خوښ
چې د نوس شیطان خطره کا له ذړهٔ لرې
په دا حمید هموارہ دي جاهدان خوښ
غافلان دي په غفلت کښې نوښ له ځانه
د غفلت په عمر ډېر وینم کاوان خوښ
دَ جنت د اهلِ ذوق حورو ثمر دي
اهل الله په پاک دیدار دي د سبحان خوښ
د کور دل له معرفته بهره نشته
د عرفان په نور دایم دي بینایان خوښ
کر لعید د ښهٔ اواز له قدره څهٔ زده
د اواز په لوئے نعمت دي سامعان خوښ
بعیدان په بعیدي کښې خوش خرم دي
د قربت په دولت وینم قریبان خوښ

فاصلان د فضالت په جهنم خوبن دي
د وصال په جنت کودم واصلان خوبن
موحد دیکانګي په راحت ذوق کا
دي د شرک په پلید ي کښې مشرکان خوبن
قراري راحت ( د ے ) کور د حق مخلصه
ن فردا به دا راحت دي مسکینان خوبن

---

**حدیث نبوی : الصحبت تاثر بدانکه هشت مقام فرق میاں عالم علم است**

---

نبوي حدیث : صحبت تاثیر لري ۮ اتو مقامونو مینځ کښې فرق [illegible]مونو دے .

---

د اتو مقامونو مینځ کښې (فرق) د علمونو دے

پهٔ جهان کښې تر هر څهٔ بهتر صحبت بنهٔ
د بد کارو لهٔ مجلسه دے خلوت بنهٔ
د داناؤ پهٔ صحبت مینه کا دومه
د نادان لهٔ نزدیکیه دے نفرت بنهٔ

---

۱ اص : بدانو

نن قبول مرید هغه دے د پیرانو
هر چې نهٔ کښي دبد سړي قربت ښهٔ
بد سړے اغیار غافل دےکهٔ باور کړې
چې لهٔ حقه غافل ګرځي په غفلت ښهٔ
علم کل پهٔ تفاوت دے پهٔ عالم کښې
دے لهٔ کفره خاص دانش دمعرفت ښهٔ
ناسوتي دشریعت تښتن بالهٔ شي
دے سالک دطریقت پهٔ ریاضت ښهٔ
کښته خر لهٔ نشسته سړیه ښه دے
ښه لهٔ ناستې روندهٔ دطریقت ښهٔ
طریقت دملکوت مقام یاد شوے
حقیقت دجبروت مقام دریت ښهٔ
لوئے دانش پهٔ طریقت دخواطر دے
ښهٔ ځکه له طریقته حقیقت ښهٔ
ښه دانش پهٔ حقیقت کښې دارواحو
چې دانا شي د روحانو پهٔ صفت ښهٔ
د مولی دے (ښهٔ) شناخت پهٔ معرفت کښې
پهٔ دانش له حقیقته معرفت ښهٔ
دلاهوت مقام دمعرفت مقام دے
پس له دې نه دے مقام بیا د قربت ښهٔ
د قربت مقام بالا تر معرفت دے
نن په دا مقام حاصل شي نزدیکت ښهٔ

د اواز له معرفته نه خبر شي
له تسبيحه به ني بيا موږې سدت بنه
چې له دوسته وصال بيا موږې په وجود کښې
له قربته دے عارف لره وصلت بنه
په ګناه به شي حساب په دوځ (د) حشر
چې فاصل کا شب و روز کل په فصلت بنه
په عالم کښې علم ډېر لونه معلوم شه
په کل علم کښې دے علم د وحدت بنه
نور کل علم د توحيد دپاره وشه
شه نور علم پرې تکې توحيد ئې تخت بنه
اے مخلصه سکونت د وحدت بام دے
د مسکين ناستے پر بام د سکونت بنه
په جهان کښې بنه ترشه يدان تر بد شتر
چې په بنه کښې بنه معلوم کا د احالت بنه

---

در ترجمه: قُلْ هُوَاللّٰهُ اَحَدٌ و در صفت بی رنگی که اصل و
خم جمله رنگها است و آنکه در فرع تغیر و تبدیل ممکن است
و در اصل تغیر و تبدیل روا نیست ـ

---

د قُل هو الله اَحَد په ترجمه کښې ، او د بې رنګۍ په صفت کښې چې د ټولو رنګونو اصل او خم دے او دا چې په فرع کښې تغير او تبديل ممکن دے او په اصل کښې تغير و تبديل روا نهٔ دے .

---

ترهٔ څهٔ دے په جهان ياد د احد بنهٔ
په صفتونو[1] کښې صفت دے د صمد بنهٔ
منزه له ورور نور له عزيزه
هم يې مدح لَمْ يَلِدْ وَلَمْ يولد بنهٔ
هيڅ مانند وجود يې نشته په عالم کښې
بې مانند دے موجود واحد امجد بنهٔ
د هر څيز د رنګ (هم) حد شه هم حد[2] د شته
د بې رنګ د حسن حد نشته بې حد بنهٔ
بې رنګي د کل رنګونو اصل خم دے
اصل کوم تل له فرع يو (په) صد بنهٔ
فرع رنګ اول تبديل کا په ساعت کښې
اصل وينم په يو حال کښې سرمد بنهٔ

---

[1] اص : صفتو

[2] د هر څيز د رنګ حدود شته .

د صورت د حسن رنګ پر قرار نه دي
د معنې د ښايست رنګ دے ترابده ښه

د دانا په نظر ښه ښه بد تل بد دي
د ناداں په نظر ګودم تر ښه بد ښه

چې توحيد د خاص الخاص بانديې کشف نه وي
په نظر يې عام توحيد د شي بې عدد ښه

په خفي شرک مبتلا دي نه پوهيږي
له احد يې سره ګڼي په زړه حسد ښه

چې ناحقه له مخلص سره کينه کا!
تر حاسد موذيه ګورمه ديو دد ښه

---

# في المناجات ګويد

---

ستا ديدن د زړه خوښي ده ملال زړه کړه په ديدار خوښ
کل حجاب پر زړه تياره ده تاريک زړه کړه په انوار خوښ

په تياره ژړه کے خپرشي د شيطان په وسوسه شي
تجلّي پرې بانديې وکړه چې له وهمه شي قرار خوښ

د وهمي زړه تل پريشان دے کښنو تلے په ګمان دے
له ګمانه يې فارغ کړه په يقين يې کړه بسيار خوښ

دیقین خوبني دﻩ ډېره کهٔ يې کل کړي ور بوسېږﻩ
لهٔ عالمه به بې نياز شي تل به وسي پهٔ کنار خوبښ
نفسک خوبښ په څښنهٔ خوردن دے ياد سرهٔ پسين پهٔ دين دے
زړهٔ جنت لره هوس کا روح عاشق ستا پهٔ کنار خوبښ
د عاشق مراد حاصل کا لهٔ مقصوده يُ واصل کا
د زغن حب له مردارې بنهٔ بلبل کړه په گلزار خوبښ
کل اشياء دي نمونه دے کهٔ ساده دے کهٔ يو نه دے
دا اسرار پټ له جاهله کړه عارفا پهٔ دا اسرار خوبښ
تهٔ وحدت کثرت دي عکس ته يې مغز کثرت دے بکس
ديار بخره له مغز وکړه لهٔ بکس دي دے اغيار خوبښ
څيز د خپل اصل طالب دے کهٔ ارواح دے يا قالب دے
هر عنصر پهٔ ذات مايل دے ارواح کړه پخپل جوار خوبښ
دا مخلص دي تنا گوے دے تهٔ چوگان دي ور ته گوے دے
تهٔ گويا دے دي دهان شهٔ کړهٔ قريب پر خپل گفتار خوبښ

---

## دربيان آنکه دل مکان وحی والهام است ودزد او شيطان و نگاهبان او ذکر خفی است

---

ترجمه: د زړهٔ په بيان کښې چې د وحي او الهام مکان دے، شېطان دده غل دے او خفي ذکر دده نګاهبان دے۔

---

د فقير وينا ده واشه
په زړهٔ ورشي بې تالاشه

پټ لهٔ غېبه پر زړهٔ راشي
پر زبان باندې شي ماشه

زړهٔ د وحي الهام ځائے دے
وسوسه څنې وتراشه

وسوسه پر زړهٔ پرهار کا
په بد فکر ئې مهٔ خراشه

د زړهٔ ګنج له غلو وژغوره
نوس شېطان ئې دي اوباشه

کهٔ دغه ګنج دې نګاه کړهٔ
لوئے غني به شې قلاشه

غېر فکر پرې مانع کړه
خفي ذکر دے دورباشه

چې دربان ئې په درنهٔ وي
د زړهٔ باغ به ئې وي لاشه

کهٔ دورباش غواړې دوراندې
د روښان په دربار راشه

چې يو دم په ياد کښې نهٔ وي
هغه کس دے بد معاشه

د توحيد ثمر دے ختلے
پسو پټ دے له خفاشه

کل نقشونه د نقاش دي
نقش به نهٔ وي بې نقاشه

مخلص ووې په نقشو کښې
د نقاش ګوره تماشه

---

آنکه اگر پیالهٔ می وحدت میخواهی از صاحب وحدت که می فروش عبارت ازاں است طلب کن و دربهای ان خود و تمام عالم را بده که سود مند است .

---

داچې که چرې د وحدت مې څښل غواړې د وحدت د څښتن نه چې مې فروش ترې مراد دے وغواړه او دهغې په قیمت کښې ځان او تمام عالم ورکړه کوم چې ستا دپاره سود مند دي .

---

که ته غواړې د وحدت پیاله سرپوشه
به یې مومې دتوحید له مې فروشه
ځان جهان پرې باندې وېروله سودمند یې
لله کامله دوحدت پیاله کړه نوشه
که دغه پیاله دې وڅښه یقین وکړه
دګمان ورے به واچوي لهٔ دوشه
ځان جهان به په مستۍ کښې فراموش کړې
د وحدت په مے به هسې شې مدهوشه
د رانده د وراندې حسن څرګند نهٔ وي
دآواز لذت پنهان د ذو لا تروشه[ل]

---

ل اص ، الاطروش .

د الهام وحي کلام هغــه باور کا!

هر چې غوږ يې خبردار وي له سـروشه

هر زمان به يې اوازه وېنـا اوري

هر چې ذره يې دي گويا ژبه خاموشه

د باطن د حسن دربه پرې کشاد شي

چې ظاهر حسن يې قرار شي لـه خروشـه

د غايت هاتف اواز به په غوږ واوري

که پنبه د غفلت وکاږي له گوشه

که حالت د سامعانو درکښې نـه وي

لا اقـراره د انکار پرلـور مـه کوشه

هر چې علم د الهام شه باندې کشف

دا مخلص يې دے غلام حلقه بگوشه

---

در بيان آنکه هر دلے که در محبت دنيا شيدا شد به غم واندوه مبتلا شد۔

---

په بيان د هغه زړه چې د دنيـا په محبت شېدا شه په غم او خفگان کښې گېر شه۔

---

هغه ذره چې د دنیا په حب شیدا شي
په ډېر غم اندوه گرفتار بېگا صبا شي
په تمام مراد حاصله دچا نه شي
ذره له دېسه درد همېش په واوېلا شي
بې پروا فلک[1] په خپله رضا گرځي
په گردش بې داسرې غني گدا شي
واړه چارې دسرې په رضا نه شي
تر قدرت پورې عاجز غرېب بې پا شي
چې رضا د زوره ور په رضا نه بد دي
هغه کس په ډېر اندوه غم مبتلا شي
د مولا رضا دریاب دسرې خس دے
د دریاب د وړانډې سپک خس لا دوا شي
په هر لورې ئې جارباسي بې اختیاره
بې چاره خس کله پایین کله بالا شي
قبض بسط د حق په لاس کښې دے باورکړه
دغه ذره کله بانوا کله بې نوا شي
په هر حال کښې رجوع حق وته باید دي
زوره ور قادر د هر عاجز ملجا شي
لکه مور په طفل زوي هسې مشفقه
ښه مولی دسرې مورهم ئې ابا شي

---

[1] اص : خلق

خالق رب مخلوق مربوب دے بې گمانه
د ساتلي ساتند وے وته رجا شي
قناعت صبر رضا غواړه لهٔ خدایه
قانع دله صابران خلاص لهٔ بلا شي
قناعت صبر عطا دلوے بادشاه ده
قانع دل خوشنود پهٔ دین هم پهٔ دنیا شي
چې بخیله بخره خوش لیږي لهٔ خدایه
پهٔ جهان کښې غم اندوه لره پیدا شي
اے مخلصه محبت غواړه لهٔ حقه
پر محب باندې اسان درد و عنا شي

---

وَجَعَلْنَا مِنَ الْمَآءِ كُلَّ شَيْءٍ حَيٍّ ط الانبياء ایت ۳۰

حدیث ز من امر بالمعروف ونهى عن المنكر فهو خليفة الانبياء من قبلى

---

ترجمه: اوموږ هر شے په اوبو سره ژوندے کړو ۔ هغه څوک چې د نېکیو حکم کوي او د بدیو نه منع کوي نو هغه به زما خلیفه وي او پهٔ شان د هغه انبیاوٴ به وي کوم چې زمانه مخکښې وو۔

---

نن پهٔ دا حیات خبر د ژوند لهٔ آب شه
پهٔ طلب يې کوبکو پهٔ هر ابواب شه
د دغو لولو سرحد پسې د غواړه
پهٔ ليدهٔ يې بنياد ل اولو الالباب شه
پهٔ بې حد درياب کښې غرق جهان وګوره
پهٔ جهان کښې ننداره[١] چې د بوے درياب شه
پهٔ دروں بيروں درياب ګوره پرُ ځين کښې
بارنده پهٔ جهان پرُ لکه سحاب شه
د رحمت پهٔ نور هر ګل و خار روښن کړي
پهٔ هر چا باندې نوربخش لکه افتاب شه
پهٔ ناحق د چا ازار روا مه ګوره
د ادب د پاره لږ ډير پهٔ عتاب شه
د نبي د ګروه عتاب د حق د پاره
پهٔ دا خوی کار د بنيو پهٔ حساب شه[٢]
کهٔ فردا غواړې حشر له هغه قومه
نن پهٔ خوی کار د هغهٔ ګروه پر مآب شه
خلافت به د نبي بيا موې قطې
.................................

---

[١] اص : ندار ثې

[٢] اص : پحتاب

لهٔ تیارهٔ سړے د نور پر لوري بولي
پهٔ بلل نکه داعي ام الکتاب شه
د نبي پر صف به ودري مخلّصه
و سرې ته پهٔ بنیلو دوهاب شه

---

## دربیان انکه معنی حدیث نبوی : فکر ساعة خیر من عبادت سبعین سنة ـ

---

نبوي حدیث : دالله تعالیٰ پهٔ قدرتونو کښې دیو ساعت فکره
اویا کالو عبادت نه غوره دے ـ

---

کهٔ تهٔ یو زمان پهٔ فکر د صفات شې
پهٔ صفات کښې به بینا حق پهٔ ذات شې
یو زمان فکر تر ډېر عبادت بهتر دے
پهٔ بنهٔ فکر به دانا پهٔ کل کلیات شې
حقیقت به د اشیاء درته څرګند شي
خبردار به له ایماله امهات شې

د باطن چراغ دے فکر پهٔ خاطر کښې
د چراغ پهٔ نور به خلاص لهٔ ظلمات شې
معرفت به د مولیٰ حاصل کړې قطعي
پهٔ فکرت ذکرت (به) حل د مشکلات شې
د کل علم دروازه به پر مخ وا کړې
کهٔ ژغر وے د خواطر پهٔ هر اوقات شې
پهٔ خفي ذکر به زړهٔ صفا روشن کړې[1]
مصفا به پهٔ خاطر له کدورت شې[2]
پهٔ نښتي حق پرستي کښې به خوښ وسې
او بېزار به لهٔ خودي له سومنات شې
اے مخلصه خودي لوے صنم یاد شوے
پهٔ غنا کښې به ایمن له هر منات شې

## وله

چې دې زړهٔ د عشق پهٔ تيغ مجروح گهايل شهٔ
لهٔ دوو کونو بې پروا پهٔ حق مایل شهٔ
همېشه به ئې د محبوب پر مخ نظر وي
بې مولیٰ يئې پهٔ زړهٔ کل (دوارهٔ) باطل شه

---

[1] اص: پهٔ خفی ذکر بر کړ مصفا روشن کړ

[2] اص: کدورت

کل عالم گوره هلاک دحق په ذات کښې
دنمک په کان کښې هر څیز مضمحل شهٔ
جهان خود دریاب تر مالګو ډېر محوي دے
ځکه من علیها فان ایت نازل شهٔ[1]
د عارف په نظر نن عالم فاني دے
دا نفي لا د جملهٔ اشیاء قاتل شهٔ
د جلال چپه را دروي په عالم کښې
دا عالم ئې له اثره کل زایل شهٔ
په هر هر نفس (یو) نوے وجود مومي
دا نفس مثال چپه صورت سایل شهٔ
تل یوه چپه ورځي دوومه دروي
دا مواج پر تله دراتله اګاه کامل شهٔ
ډېر په نوي له شه مومي په هر آن کښې
په سرعت دتلو راتلو سره جایل شهٔ
ځان جهان خلعت تازه په تازه مومي
له صفاتِ جمالي یې دا حاصل شهٔ
په هر ان کښې مرګ حیات خلع لباس دے
د مخلص کلام ثابت په دلایل شهٔ

---

[1] کلّ من عَلَیْهَا فَانٍ ۰ الرحمٰن ایت ۲۶

پهٔ تجدد که د امثال دي باور نهٔ وي[1]
حق پخپله فی لبس جدید[2] قابل شهٔ

---

قوله تعالی : بَلْ هُمْ فِي لَبْسٍ مِّنْ خَلْقٍ جَدِيدٍ ۝ (ق ایت ۱۵)
یعنی بلکه اشیا باشد در پوشاک از پیدائش جدید ۔ قول مشائخ : یعبد الله لاجل الجنته فهوه عبد الجنته ومن یعبد الله لاجل الخوف النار فهو عبد النار لا عبد الله ۔

---

د الله تعالیٰ قول دے - یعني شیان (مسلسل) د (هر) نوي تخلیق پهٔ لباس کښې دي . د شیخانو وینا ده چې څوک د جنت دپاره د الله تعالیٰ عبادت کوي هغه عبد الجنت (د جنت بنده) دے او څوک چې د (دوزخ) د اور د ډیرې عبادت کوي - هغه عبد النار (د اور بنده) دے . نهٔ چې د الله بنده .

---

[1] اص : که تجدد الامثال دي باور نهٔ وي
[2] بَلْ هُمْ فِي لَبْسٍ مِّنْ خَلْقٍ جَدِيدٍ ۝ - ۱۵ - ق

چې په پوزه یې د محبت مهار شه
هغه کس د محبانو په قطار شه
څوک په فکر د دنیا څوک د عقبیٰ دي
د محب پر زړه کښي فکر د خپل یار شه
څني دین څني دنیا غواړي له خدایه
د عاشق خواست له معشوقه خپل دیدار شه
هر چي بي خدایه له خدایه نور څه غواړي
کم همت نادان کم عقل تر حمار شه
عبادت خاصه د خدای د پاره ښه دے
د جزا په امید کل د مزدور کار شه
چي له ویرې عبادت کاندي مریې دے
بې رجا خوف و طاعت عمل دیار شه
چي بندګي کاد تښتي د څښتن د پاره
په معنیٰ کښي د هغه څښتن خدمتګار شه
چي بې خدایه نور مقصود د طالب نه وي
په تحقیق زر له مقصوده برخوردار شه
یک جهت یکدل سړے تر خدایه رسي[1]
دوه دِله سړے پر لاره سست رفتار شه
چي بې دوسته په دوه کونه غرض نه کا
هغه کس د عاشقیه سزاوار شه

---

[1] اص : یک جهته یکدل برابر تر څای رسے

چې له غیرو محبت سیزي له تاوه
محبت د حق ځرګند پر زړهٔ کښې نار شهٔ
چې یې ښن د محبت پیاله ده څښلې
دجهان له سوده زیانه په کنار شهٔ
هوښیاري لهٔ ډېره غمه ده مخلصه
په مستۍ کښې بې خبر دغم دبار شهٔ

---

**دربیان صفت سلیم دِل . ایت : یَومَ لَایَنفَعُ مَالٌ وَلَابَنُونَ ه اِلَّا مَنْ اَتَی اللّٰهَ بِقَلْبٍ سَلِیْمٍ ه** (الشعراء ایت ۸۹) **ودِل سلیم مرصاحب توحید است .**

---

د سلیم زړهٔ دصفت بیان د په دغه ورځ به نهٔ مال او نهٔ اولاد دچا پکار راشي . مګر هغه به په فائده کښې وي څوک چې په سلیم قلب سره دخدائے په وړاندې حاضرشي — او سلیم زړهٔ د توحید د څښتن وي -

---

چې دحق حب ئې پر زړهٔ کښې مستقیم شهٔ
لهٔ دوو کونو بې پروا زړهٔ ئې سلیم شهٔ

چې راندهٔ ئې شهٔ غېرﷲ فکر له خاطره
هغه زړهٔ دشهنشاه بادشاه حریم شهٔ
د مومن زړهٔ دے حرم دحق باور کړه
پهٔ حرم دغېرو دخل خوب عظیم شهٔ
چې دغېرو بدګمان لرې پهٔ زړهٔ کښې
پهٔ تحقیق ئې په حرم غېرې مقیم شهٔ
هرچې نیست پهٔ یقین هست کښې ګمان دے
پهٔ ګمان که پړے مار ځرګند غلیم شهٔ
چې بې خدایه څهٔ موجود کښې پهٔ ملک کښې
دګمان پهٔ درد ګرفتار مشرک سقیم شهٔ
لا موجود ه فی الدارین غېرې داروه
د طالب له پیر کامله دا تعلیم شهٔ
چې یقین ئې د مرشد پهٔ یقین ؤکه
دتوحید پهٔ معرفت دانا علیم شهٔ
نور کل علم دتوحید دپاره شوے
دے نور علم پیټکے توحید د سهم شهٔ
لهٔ توحیده به پوښتنه پهٔ قیامت وي
دتوحید علم نن فرض پر عمیم شهٔ
چې دحق لهٔ یګانګیه خبر نهٔ وي
کل طاعت ئې ډګناهه سره هیم شهٔ

---

ﻟﻪ پری

بې کامله د توحید حاصل محال دے
د مشرکو شرک دے زنځ کامل حکیم شهٔ
د مرشد طلب فرض شوے پر همه دے
د بنهٔ خضر طلب کار موسیٰ کلیم شهٔ
د توحید علم به بیا مومې مخلصه
پهٔ اخلاص چې پیر کامل وته تسلیم شهٔ

---

# فی المناجات گوید

---

تهٔ غني بادشاه کریم یې زهٔ فقیر محتاج درویشه
رچې هر څهٔ دي وارهٔ ستا دي) زهٔ هیڅ نهٔ لرم له خویشه
تهٔ خالق زهٔ دې مخلوق یم تهٔ رازق زهٔ دې مرزوق یم
لهٔ رازقه پهٔ هر حال کښې د مرزوق طمعه همیشه
لهٔ تا طمع بادشاهي ده لهٔ بل طمع گدائي ده
پهٔ مرزوق دې رزق وېشلے روزي مومي ستا لهٔ ویشه
چې یې سست یقین پرې دے د نفس هوا دې ورے
چې بې تا پهٔ څهٔ اسره کا هغه ښېې وهي پهٔ تېشه
چې اسره نهٔ کا د غېر دے ازاد مرغه دے طېر
رزق به مومي بې سببه له روزیه وي بې اندېښه

د نفس قوت د دنیا حب دے د زړهٔ قوت د عقبیٰ حب دے
لهٔ تا قوت د ارواح غواړم معرفت دانائی ښه
زړهٔ زما رام کړه په ذکر چې ورنهٔ شي غير فکر!!
غير فکر پر زړهٔ ښش دے تهٔ یې ژغوره لهٔ دې ښه
زهٔ څوک نهٔ لرم بې تا نه خیرخواه په دوه جهانه
د مال مینه د ربنې دنیا دے زړهٔ مې خلاص کړه لهٔ سرکښه
چې پهٔ سرکښ کښې ولنت بند شه د شیطان لوښی پهٔ کمند شه
بې لهٔ تا به یې خلاص نه کا لهٔ نفسک موزي بد کښه
جمعیت پهٔ حضوري کښې تفرقه ده پهٔ دوري کښې
دا مخلص بې نوامه کړې یو زمان لرې لهٔ ښه

---

در معنی لاحول وَلا قوته اِلّا باالله العلی العظیم
حدیث: لایتحرک شیءٌ اِلا باذن الله ۔

---

ترجمه: کهٔ قدرت دے او
کهٔ قوت صرف د الله دے)
یو څیز هم د الله د حکم نه بغیر حرکت نهٔ کوي. (حدیث)

---

ط ۱۰۱ : لا یحرک

کهٔ توبه پر کامل وکړې لهٔ اخــلاص
دغه سیس صورت به زر کړې لهٔ رصاص
بنه پیاله د حقیقت به دې ترخوله کا
په دامي به ځان جهان ګورې د قــاص
د هستۍ په مې جنبش د هر اشــیا د ے
پهٔ اختیار یې د ے جنبش یا ارتکاص
پهٔ جهان کښې جنبیده جنبا نــنده شته
د تلقین په نور به بیل کړې عام لهٔ خاص
(لهٔ ځرګنده به پنهان وګورې قطعي)
(هیڅ ځیز) پټ وپنهان نشته لهٔ خواص
کل اشیاء دي لا قوت لا حول واروه
پر مولیٰ یې د ے قوت هم یې خُصاص
پر دریاب دخس جنبش لهٔ ځانه نهٔ وي
پهٔ امواج یې د دریاب د ے الحتاس
د عاشق مضطر ګناه به اختیار نــهٔ ده!!
ګناه ګار بې قصده خلاص د ے لهٔ قصاص!!
کل ظاهر دي د باطن سایه باورکـــړه
د سایې حرکت نهٔ وي بې اشخــاص !!
لا یتحرک شئ پهٔ غوږ و واروه!!
پهٔ جهان کښې کهٔ افتاب ستوري دي عاص

---

ل اص : لا تحرکت

محرک د عالم یو دے په جهان کښې
که پر زمکه دي حیوان کانې اعیاص
په هستئ خودئ کښې لوے آفت لیدهٔ شي
ده نیستي مقام دامن اختصاص
په هر آن مکان عارف ورته ځرګند ئې
تل دي ویښم د مخلص د زړهٔ مناص

---

**قول حسن بصری رحمة الله علیه جاءَ رجل شکیٰ من قساوت القلب فقال الذم صحبت العلماء ببرکته صحبت العلماء تخلص عن قساوت القلب - قول مسکین علیه الرحمة القوت لاجل القوت والقوت لاجل عبادة السبحان السلطان -**

د حسن بصریؒ قول دے ز یو سړے چې د زړهٔ د سختئ نه تنګ ؤ راغلو ما ورته اوئیل چې د عالمانو سره ناسته کوه. د عالمانو د ناستې په برکت به د زړهٔ د سختئ نه خلاص شې. د مسکین علیه رحمت قول دے ز چې قوت یعنې خوراک د سړي د پاره قوت دے او د سړي قوت د سبحان السلطان د عبادت د پاره دے -

کهٔ د جهل لهٔ تیارهٔ غواړې تخلیص!
د دانا پهٔ صحبت مینه کړه تلخیص
د پټ علم روښنائي به کړې حاصله
پهٔ دا نور به درښکاره شي لار خمیص
د زړهٔ لار باریکه لار ده پهٔ باطن کښې
پهٔ باریکه لار به درومې غېر قمیص
کل حکمت پهٔ وونې یوس کښې؟ باور کړه
پهٔ دېر شبنه نوردن (وي) زړهٔ تور سخت حریص
قرت قوت لره پیدا کهٔ حق یقین کړه
بیا قوت د ے عبادت لره تخصیص
هر چې قوت د ښتن خوري خدمت د بل کا
حرام خور بنده هغه ګڼه خصیص
خاص بنده د ښتن دادے پهٔ عالم کښې
چې د غېرو لهٔ خدمته شي محیص
چې بنده د بل بنده خدمت کا خوار وي
کهٔ حاصل ئې لهٔ بنده تل وي تحصیص
د مولیٰ بنده ازاد بادشاه لهٔ قیده
پهٔ دنیا کهٔ وي موړ پټ یاد وي حریص
پهٔ هر حال قانع خشنود له خپله خدایه
پهٔ صورت کهٔ وي نزار یا وي شخیص

ارام ذره تن په بهشت کښې دے مخلصه
صاحب کام پر ذره ارام مخ نۀ لصیص
انتظار امیدوار کوم په تشویش کښې
بې ارام ذره په عذاب وي دایم ربص
لو کشف الغطاء به هغه وائي
چې یقین نۀ دعقبیٰ په کار ترحیص

---

## قوله حضرت عليؓ لو کشف الغطاء لم یزد یقیناً

---

دحضرت عليؓ قول دے ز که چرې پرده لرې شي یقین نهٔ زیاتیږي

---

هر کلام چې موافق کوي لهٔ نصه
پیروي عمل پرې فرض دے مشخصه
کلهٔ په هر زبان بیان دے شک پرې مهٔ کړه
ومعنې ته یې نظر لره اخصه
هر کلام دے پیمانه معنیٰ دانه ده
پکښې تولي څوک غنم څنې حمصه
ودانا ته دمعنیٰ دانه ښکاره کنده
دعارف وته معلومه لهٔ حصحصه

چې معنیٰ صورت بیل نهٔ کا پهٔ دانش کښې
ائینه یې د زړهٔ زنګ ده منغصه

هیڅ صورت بې معنې نهٔ وي کهٔ باورکړې
دا صورت پهٔ مثال ګوټې معنې فصه

بې غمیه ګوټې زیب نهٔ کا پهٔ ګوته
بې معنې صورت روښان نهٔ دے و لصه

پهٔ جهان کښې پهٔ ټولونه خریډ فروخت دے
ځنې دُرّ (او) جوهرپېوي (او) څوک خصه

د هلک وړاندې درهم د مېوه کښېږده
لهٔ جوهر به پهٔ مېوه کا ډېر عرصه

جوهري د جواهر پهٔ قدر پوه دے
پهٔ نظر یې د مېوې حاصل عنصه

ښهٔ کلام پُر معنیٰ دُرِ ګران بها دے
و ناپوه وته بې قدره چون و عصه

د دانا کلام ملهم د خوږو زړونو
د نادان پر زړهٔ تېره بلوسي ترخرصه

کهٔ جاهل ځنې منکر شي څهٔ یې باک دے
د مخلص وینا پهٔ نص حدیث ده رصه

## وصاحب اخلاص موحد است و از شرک از ریا خلاص نیست مگر موحد صاحب وحدت

---

د اخلاص څښتن موحد دے او د شرک او ریا نه خلاص نهٔ دے مګر د وحدت څښتن ۔

---

چې پس رو د چیل رهبر شه لهٔ اِخلاصه
لهٔ مقصوده بهره ور شه لهٔ اِخلاصه
د پیر و مرتبې ته به ورسي
چې پهٔ نغوته د پیر شه لهٔ اِخلاصه
چې یې غیر پهٔ نظر کښې نهٔ کېښووځي
موحد عارف خبر شه لهٔ اِخلاصه
چې موجود یَې سا سوا وي پهٔ خاطر کښې
دابلا شرک عافل دور تر شهٔ لهٔ اِخلاصه
نور عالم مثال اندام دے پهٔ صورت کښې
موحد پټهانه سر شه لهٔ اِخلاصه
موحد تمام عالم د کړه اعضا ګوري
پهٔ معنیٰ یقین هر هر شه لهٔ اِخلاصه

خوشبويي يُې تر هرچا پوزې(ور) رسي
خاص الخاص عارف اگر شه لهٔ اِخلاصه

چې سايه يې د ريا لهٔ مخه تښتي
موحد په مثال نمر شه لهٔ اِخلاصه

عبادت موحد خپله چار گڼي
په خپل کار سرے پېشتر شه لهٔ اِخلاصه

د بندگۍ په صفت فخر د حضرت وُ
د جمله مرسل افسر شه لهٔ اِخلاصه

بندگي عين نيستي ده که باور کړې
په فنا د کل مصدر شه لهٔ اِخلاصه

مرايي خلق بنده د بندگانو
په بندگۍ مخلّص سرور شه لهٔ اِخلاصه

---

# في المناجات گويد

---

تهٔ قادر توانا حکيم يُې ما عطار کړه لهٔ اخلاصه
چې خوشبوي تر هرچا ورشي ما گلزار کړه لهٔ اخلاصه

تهٔ کريم د رنگ وبوی يې پهٔ باطن کښې دبنهٔ خوي يې
دبنهٔ خوي خوشبويي غواړم مابهار کړه لهٔ اِخلاصه

پهٔ بهار کلونه زينې هم له کله وشي وني
پهٔ وني کښې مېوه شي ما اثمار کړه لهٔ اخلاصه
مېوه روح پهٔ روح لذت کا دې عمل پر چپل عادت کا
روح پهٔ روح مې عمل زيات کړه ما پرکار کړه لهٔ اِخلاصه
چې اخلاصه کا رسوخ پوخ دې مغز ئې نشته خالي بوس دے
دکل خېر مغز اخلاص دے ما اخيار کړه لهٔ اخلاصه
پهٔ اخلاص عمل پيټ ذکر ما دې وحَفلاؤ فکر
ذکر لوے يو مرتبه ده ما اذکار کړه لهٔ اخلاصه
ذاکر ذکر بل مذکور دے چې دا ورک شي هوئ نور دے
- - - - - - - - - - - - ما انوار کړه لهٔ اخلاصه
چې دا ذکر کا ندي نور شي دے بده شرک دور شي
چې يې شپه لهٔ مخه تښتي ما اسحار کړه لهٔ اخلاصه
چې دکل ذکر کا کل شي د مخلص د زړهٔ حاصل شي
چې دا ذکر کا ديندار شي ما ديندار کړه لهٔ اِخلاصه

---

ايت : **مَا زَاغَ الْبَصَرُ وَمَا طَغٰى** ( النجم ايت ۵۳ ) **چشم**
**حضرت ميل نکردند يعني بگوشهٔ چشم ننگريست بسوي نعمت دنيا و**
**اخرت . مي فرماني نکردند پس بايد که سخن حقيقت با مردم ناسوتي**
**نبايد گفت که ايشان بي خبراند - زود تر با مراض انکار بيمار نشود**
**که تکلم الناس بقدر عقولهم -**

مازاغ البصر وما طغیٰ - د حضرت سترګو هېڅ اشتیاق او نهٔ درلود یعنې د دنیا او د اخرت پهٔ نعمت پسې یې ونهٔ کاتهٔ - او نهٔ یې څهٔ بې فرماني وکړه - ناسوتي خلقو ته د حقیقت خبرې نهٔ دي کول پکار - ځکه چې دوي ناخبره دي او هسې نه چې د انکار پهٔ مرضونو بیمار شي - د خلقو خبرې د عقل پهٔ مقدار وي -

---

کهٔ لهٔ غېره دواړه عین کړې اعراضه
د دیدار د فیض به مومې لهٔ فیاضه
کهٔ ما زاغ البصر وما طغی شې
له بنهٔ دوسته به دیدار کړې اعتیاضه
کهٔ نظر لهٔ دواړو کونو وچار باسې!
یار بهٔ مخ د رته څرګند دکا، بې اعراضه!
د یار مینه به هاله درشي پر زړهٔ کښې
چې د غېرې حب درست غوڅ کړې له مقراضه
لا اِله مثال مقراض د ے پهٔ باطن کښې
پهٔ مقراض د لا کړه غېرې کل تحاضه
چې د غېرې کدورت کا له زړهٔ محوه
د زړهٔ مخ به یې سپین صاف شي لهٔ بیاضه
دیقین عروس به هاله مخ څرګند کا
چې کمان یې شي لهٔ بېخه انقضاضه

دے طفل روژه طعام زغملے نشي[1]
شیر خور لره شیر ورکړه انفضاضه[2]
ناسوتي د شریعت طفل شیرخوار دے
..... ... ... .. ...
بنهٔ لقمه د حقیقت يې پرځان رنځ دے
ضعیف دل طفل هلاک شي لهٔ امراضه
څو توانا دا ضعیف پهٔ یقین بنهٔ شي
د مولٰی پهٔ ذات يې مهٔ ګوره حراضه
د یقین پهٔ ښو به ورشي تر مقصوده
د یقین د وړاندې سم فراز اراضه
روحٔ د معرفت ګوره مخلصه
د اشنا خاطر بې نیازشهٔ لهٔ ریاضه

# وله

کهٔ دې نوش کهٔ د وحدت له مې بیضه
واعلاته به پرواز کړي له حضضه

---

[1] اص: دے روژه طفل طعام زغملے نشي
[2] اص: شیرخواره لرشیر ورکړ زر انفضاض

افتاب یو (دے او) ښبنمي د کثرت ډېرې
د کثرت په ملک کښې ډېر وينه د حضه
افتاب يو ښبنمي شوي ډېرې په جهان کښې
يکرنګ نورشۀ په څو رنګه تفضضه[1]
په ښبنمي کښې د ښبنمي په رنګ څرګند شه
اصل رنګ يې په نظر پټ شه غضضه[2]
د وحدت افتاب به نۀ وينې په قطي
څو ښبنمي په تلقين نۀ کا سره فضه
الا الله به په شپن لوري جلوه کړ شي
دا ګمان د لا په پای کوه هضه
چې موجود بې خدايه نۀ ګڼې دارين
زړه يې خلاص شه د ګمان شک له مرضه
يو صورت په ډېر مراتو کښې څرګند شه
په نظر شه د کثرت ملک تر عرضه
کل کثرت د وحدت عکس دے باور کړه
وحدت[3] شخص کثرت عکس شه د فضه
د موحد نظر پر شخص باندې پرېوت
ځکه شرک يې د وطنه شه نهضه
د مشرک نظر پۀ عکس شه مخلصه
په دانش کښې ډېر کم ترشۀ له موضه

---

[1] اص : تفضضه

[2] اص : غرضه [3] اص : وحدت

## حدیث : ضد ان لا یجتمعان حب الدنیا والاخرة، بدان توحید میوه توکل درخت است

دوه مخالف څیزونه یو ځائے کیږي یعني ددنیا مینه او د اخرت مینه پوه شه چې توحید مېوه ده او توکل اونه ده۔

---

کله ګمان کړی دیقین پر تېغ تعیض
دیقین په دید به وګوري عریض
د سپیدې د سیاهي ضد دے په عالم کښې
د صبا رڼا کا زر سیاهي تحمیض
دیقین چراغ چې بل شي پر ذره باندې
دګمان له تیاره خلاص شي لکه بیض
ضد له ضده ګریزان یواځې وسي
توکل طمع د چا نه شي عضیض
ددنیا د اخرت مینه ضدان دي
محبان ددنیا زریه عقبیٰ حیض

اخرت ئې لهٔ نظره پټ پنهان شي
پهٔ نظر ئې د دنيا ملک شي تعريض
اخرت د کل يقين پهٔ ديد ليدهٔ شي
د يقين تبنتې دانه کاندي تخفيض
د گمان اهل پهٔ کار د دنيا چست دي
مشکلې د اخرت چار کا تغويض
کافران د اخرت پهٔ کار جبري دي
مومن دل کړهٔ پهٔ عقبئ دنيا تعويض
توکل د لوئے يقين تبنتې اختيار کـهٔ
د گمان اهل پر زړهٔ ځني تبغيض
توکل د توحيد اونهٔ دهٔ مخلصه
لوئے توحيد ئې دے ميوه هم ئې احريض

---

## دربيان فرق ميان ضعيف و فقير صوفي ان ست که هيچ صفت را بخود نسبت نه کند -

---

د ضعيف او د فقير پهٔ مينځ کښې د فرق بيان - صوفي هغه دے چې د هيڅ صفت نسبت ځان ته نهٔ کوي -

---

د دانا خبره ونغوږه رایضه
په خودي ریاضت عین تفاوضه
صوفي کېښ له تصرفه منزه دے!!
فقیران نهٔ شي ګوښه لهٔ عوارضه!!
فقیران کا تصرف پخپل عمل کښې!!
صوفي خلاص دے دخپل ځان لهٔ فرائضه!
شر وخیر لهٔ مولیٰ (تل) مومي بې خواسته!
د بنده څهٔ دي دخواست له عوایضه
د مولیٰ د وړاندې نېستۍ رضا پرېږده
مشریکي تر هر ګناه ګوره قایضه
هر صفت چي پر ځان کښېږدې انبازي ده
د ښه بد صفت پر ځان مهٔ بږده فایده
د قادر د وړاندې نېست په صفت وسه
پر طالب ګڼه نیستي لهٔ غرایضه
پر نستي کښې بقایي دابد مومي!!
په خپل ځان باندې سر په مکړه حافضه
کهٔ صفات خپل تمام ورکړې پهٔ صفات شه
ذات صفات به باقي مومي له فایضه
پهٔ مولیٰ به حي علیم ګویا بینا شې
پهٔ دریاب به کړې بدل د نضایضه
موتوا قبل ان تموت وته څرګنده
د مخلص وینا ساده ده معنیٰ غامضه

# فی المناجات ګوید

ته واقف د زړهٔ په حال يې زهٔ پسو کړم حال معروضه
ډېر چا زړهٔ درښکاره دے کهٔ ملک انسان لهٔ عوضه
ستا رضا ده چې زهٔ سوال کړم دښه يئ څرګند حال کړم
له تا سوال زما ډېر لوے دے له بل طمع ده د حوضه
چې بې تا بې سايل شه کل محبت دده باطل شه
په ډنډوکي باندې پرېوتهٔ بې بحره شهٔ له فوضه
په کرم کړم ډېر خوښېږي وسايل تر ندقهرېږي
دکريم سايل (رخه) ښه ليشي جبين ندکاندي خموضه
ستا کرم سړے سايل کا وګنا و ته يې مايل کا
ستا کرم ډېر غره کړي نهٔ وېرېږي لهٔ محوضه
تر غضب دې رحم ډېر دے د عاصي عذاب پروهير دے
تر سايه يې عاصي ناست دے ستا کرم رحم زبوضه
لا تقنط زېړے دې وکهٔ د مخلص زړهٔ دې پرې ښهٔ کهٔ
د مجرم بخره دې وکړه د رحمت له ښهٔ يعضوضه

## دربیان صراط مستقیم و انکه این راه بے مرشد کامل درنیامد اگربعلم وحکمت از حکیم بقراط بگذرد

---

د صراط مستقیم بیان : دالار بغیر د کامل مرشد نه نهٔ ښکاره کیږي - کهٔ په علم او حکمت د بقراط حکیم نه زیات شي هم -

---

کهٔ خبر شي د هستۍ له انبساطه
هیڅ اشیاءٔ بهرون نهٔ دي له احاطه
د هستئیه دریاب لوئے لطیف محیط دے
هیڅ موجودۍ بهرون نهٔ دي لهٔ رباطه
د هر څیز هستي صراط د حق پر سوري
ور به نهٔ شي چې غلط شي لهٔ صراطه
چې پر دالارې روان شي باور وکړه
پاک لطیف دریاب به مومې بې اضغاطه
بې مرشده به دا لار درښکاره نهٔ شي
کهٔ پهٔ علم حکمت زیات شې لهٔ بقراطه
د خپل ځان پېژندګلي د حق عرفان دے
د خپل ځان په دانستن کړه احتیاطه

کـهٔ خبر شې چې، زهٔ څهٔ یمٔ څه موجود یُم
د عرفان کنجي دې بیاموندهٔ شطا طـه
یو زمان فـکر تر ډېر عبادت بہه دے
د فـکرت پهٔ نور به بیا مومې زراطه
کرامت له عبادتـه حاصل کـیږي
معرفت ذیږي لهٔ فـکر بې استلاطه
نن طالب لـره د فـکر بصر یو بیه
چې معلوم کا د قبطي قوم له اسباطه
نن قبطي روح د سبطي دے په جهان کښې
معرفت د هر یوهٔ دے فرض عطاطه
د سبطي پهٔ نغوتـه چارکوه مخلصه
د قبطي لهٔ گروهه سهٔ کړه اختلاطه

---

## دربیان آنکه عالم مرکب جماد و نبات و حیوان است و عالم بسیط عالم روح است۔

---

د عالم پهٔ بیان، چې د جماد، نبات او حیوان نه مرکب دے او د بسط عالم د روح عالم دے۔

---

هر نفس پهٔ تن ناله ده لهٔ محیطه
چار واتهٔ ئې دي واصل ته سنیطه
چې پر لب د نالهٔ چې ترسنیده ورشي
مګر پښې یې د یقین زرشي تبلیطه
د باور پهٔ پښې به ورسي تر بحره
کهٔ ګمان شک ئې پر لار کښې نشي حیطه
کهٔ تهٔ بحر پورې ورشې وبه ګورې
چې محیط دَله مرکب هم لهٔ بسیطه
احاطه یې پر ظاهر باطن شامل ده
پهٔ درون بېرون پهٔ هر اشیا تسلیطه
حق رقیب د ذرهٔ د ژبې د اندام دے
دے له هره څیزه ګرځ محیط سولیطه[له]
هر اشیاء پهٔ مانند یخ دے پهٔ دریاب کښې
پهٔ صورت که دي باریک دے (اِشْ) غلیطه
یو لطیف دے کثیف شوے پهٔ کثرت کښې
اور او بهٔ هوا سماشه هم غبیطه
موالیه ثلثه ئې فرزندان دي
مور عنصر پلار ئې اسمان له سوابیطه
یو وجود ګورم کثیف لطیف الطف شه
خاښن وپانې ګل مېوه شي لهٔ مخیطه

---

له تسولیط

موحد کثرت وحدت گوري بېشکه
د اوبو د يخ بيوره کومه سليطه
پر مخلّص د بايزيد مسکين نظر وَ
چې يې ذرهٔ شهٔ د توحيد (د) در حريطه

## وله

غوش اواز يې د اسمان لو يه بربطه
هر اشياء درباندې تار گورم حططه
لوے اسمان دے احطه عالم پهٔ ميان کښې
دا محيط فلک دهر اشياء محيطه
بې مثلي عجب اواز کا پهٔ هر تار کښې
لهٔ سامعه اروي کل (واړه) رططه
بعيدان کښې اواز لـه تار وخيژي
قريبان لهٔ بېمثلي اروي طيطه
اواز کل دَ بېمثلي لهٔ بحره پيا څي!!
کهٔ سبب يې شهٔ د څين جنبش ربطه
پهٔ دا سبب مقرب سامع پوهيږي
چې نظر يې لهٔ سببه يې فرطه

چې واسطه د سبب لري کاله میانه
له مولی په هر دم اروي تغطمطه
د عاشق د ذرې راحت دے یا اواز دے
چې خطاب له یاره کاندي مخ کشطه
بې واسطه د خپله یاره خبر واروه
له قریبه با قربت ز رشه سلطه
که وصال اضطراري حرکت گوري
.... .... .... ... ....
که وصال غواړي فاني شه په صفات
واصلان دي له جمله صفاته شطه
د واصل اضطراري حالت وګوره!
بې اختیار ئې حرکت شي بل شخطه
مرده تن چې پروانه دروي جنبش کا
له اوبو یې حرکت هم ئې وخطه
اے مخلطه په خود خلاص له تا کالیفه
هر باخود باندې فرښته ده تسلطه

# فی المناجات گوید

تهٔ رقیب عتید بید ارئ زهٔ غافل اوده سقوطه
نفس شیطان غالب شجاع دے زهٔ عاجز ضعیف معطوطه
زما تښته ده وتاته ستا امان سپر دے بلا سته
چې تا وژغرلې محفوظ شو لهٔ شیطان موزي عفروطه
چې تا ونهٔ ژغرهٔ پهٔ نغوته برهنه شهٔ دساړهٔ ته
د غفلت داورو سوړ سمخ کهٔ دیښ دارډے یا سنوطه
چې اسره پخپل قوت کا بد شیطان به یې غلت کا
کهٔ لاحوله ولاقوت شي کارئ وژغرله حبوطه
کار ئ چرې حبط شي چې لهٔ عُجب پستنه شي
چې غوره پخپل عمل شهٔ کبنته ولاړشه په حطوطه
چې فلوس پرځوړې ولاړ شي دزړهٔ ملک ئ دشت اوجاړ شي
چې دنفس مصرودان شي نفس انا وائي طبوطه
نوس فرعون دوح موسیٰ دے په بد نوس مبتلا دے
د مخلص مددګار تهٔ شې خپل امان ئ کړه تحوطه

# وله

چې بیا موږي د بېرنګه دریا حظه
نور حظونه به ربي پر ذرهٔ شي بې حظظه
د دنیا حظونه کل واړه فاني دي
عاقبت به د دنیا خط شي کلظه
د مولٰی د معرفت بهره دایمه
په دوه کونه به محفوظ وي بې غیظه
کل حظ په بېلتانه کښې دے باور کړه

..... .... .... ....

د حق ذات په هر حال دے تغیر نشي
د عارف ویئم هر دم مزید احظه
د مولٰی په دیدن مینه نه ماتیږي
پس عاشق باندې بېلتون یو دم کنظه
د روح مینه له دیدنه یو په دوه شي
په طعام ګورم نوس موړ هم شي په حظه
د نوس اوږي مختصر دي سراب ذرهٔ شي
او کاسه د سترګو لویه ډکه غلظه

له اص : لوی دی

د مخلص سترګې حریصې مستغني دي
نهٔ مړیږي د دیدار لهٔ ډېره حظه

---

## دربیان صفت ذکرخفی مانند شهاب ثاقب است برگرهٔ شیطان و مانع صعور لشکرِ شیطان است برعرش دل .

د خفي ذکر پهٔ صفت کښې چې د لګېدونکي ستورې (شهاب ثاقب) پهٔ مثال دے - چې د شېطان مخ نیوې او د زړهٔ پهٔ عرش د شېطان د لښکر د حملو د پاره یو خنډ دے .

---

کهٔ خبر شې د پټ ذکـــر له حظوظه
بد شېطان به بې بهره شي د ډېر مغنوظه
تهٔ د ذکر شهاب واخله شېطان وو وله
د زړهٔ عرش دې لهٔ شېطانه کا محفوظه
کهٔ همت جهد اختیار کړې مردانه شه
د شېطان لښکر به تښتي لهٔ عطوظه

---

لهٔ اص : دل

هرچي کوش يې کړه زبون شهوت يې کم شي
د کمزوري الت پرېوزي له نعوظه
تر منزله به ذر ورنشي مخلصه
چې د نوس پخوارې لېږي د مبهوظه

**بهرهٔ معرفت بی پیر کامل است وانکه قالب چون ظرف و معنیٰ چون مظروف است.**

---

بغیر د کامل پیر نه په معرفت نمانځل کېدل گران دي.
قالب (لفظ) په مثال د ظرف دے او معنیٰ مظروف.

---

که د پسه عقل له مرکه شي ایقاظ[2]
د کامل پیر نوربه دروي په اتکاظ
بې کامله معرفت موندل يې گران دي
... ... ... ... ...
نن د معرفت بهره له پیره یوسه[3]
تل به نه وي په (فاني) جهان نظاظ

---

[1] اص : نور
[2] اص : د عقل پسی له مرکه شی ایقاظ
[3] اص : اوسه

تهٔ پهٔ روح لطیف باریک یٔ لیدهٔ نهٔ شي
پهٔ صورت کښې څرګندیږي استغلاظ
یو لطیف صورت به ګوري په کثیف کښې
پهٔ لطیف کښې بهٔ الطف ذات کړي نړاظ
بینا دل اولوالالباب شه (که) باور کړي
کل معني به کړي حاصلي له الفاظ
دي معني پکښې مظروف صورت یٔ ظرف شه
درست معني لره صورت (یٔ) شه اشظاظ
دې معني صورت جیدا د بله نهٔ کا
د عارف پهٔ نظر نهٔ دي استقاظ
دا صورت د معرفت الت مخلصه
دا نادل څکه وځان کهٔ احتفاظ

# في المناجات

دګمان افت عظیم دے امان غوارم لهٔ حافظه
دګمان علاج یقین دے ایقان غوارم لهٔ حافظه
دیقین مشعل مې بل کړ دعمل تیل باندې تل کړ
پهٔ عمل یقین روښان شي غوارم له حافظه

---

له اص: رظ

پهٔ عمل یقین روښان شي پهٔ عمل ایمان عیان شي
د اعمل دایمان توغ دے نښان غواړم لهٔ حافظه

بې ایمانه عقل هیڅ دے په ایمان کښې گمان هیڅ دے
کهٔ یقین اخلاص مې جوړ شي ایمان غواړم له حافظه

کلیمه دایمان اصل نورعمل پرې باندې فصل
پهٔ عمل اهل جنت شي جنان غواړم لهٔ حافظه

دغه ښاخ د اصل زیب دے اصل شاه فرع ئې نیب دے
روح بادشاه صورت نایب دے ابدان غواړم له حافظه

.... .... .... ....

..... ..... ..... ....

بې مخدومه خادم خوار شي نه پېږ نړمه نه پېږ کار شي
ښکر لوټ شي بې بادشاهه سلطان غواړم لهٔ حافظه

د مخلص د زړهٔ بادشاه دے هم ئې امن هم پناه دے
د حاسد حسد اتش دے امان غواړم له حافظه

---

در بیان شاهراه که ان راه در باطن آدمی ورفتن بدان راه بیا ی دل است که هیچ چیز سریع السیر از دل نیست -

---

په بيان د هغې لويې لارې، چې د انسان په باطن کښې ده۔ په دې لاره تګ د ذرې په پښو وي چې هيڅ څېز د ذرې په شان سريع السير نۀ دے۔

---

کۀ خبر شې لۀ دې حقيقي شارعه
پس د لاره به ذرو رشې تر واسعه
پس د لاره به سفر د ذرې پر پښې کړې
دغه ذرۀ سريع السير دے لۀ لامعه
د لاهوت په صحرا سير د دې عارف دے
ناسوتي سيرېږي ملک کاندي شايعه
لۀ مکانه لامکان وته پرواز کړه
د مکان په تن کښې مۀ اوسه قانعه
لۀ صورته د معنٰی پر لور نظر کړه
د معنې ديار وسيع دے هم رافعه
چې هوا ئې د لوے غره ليدلے نۀ وي
د هېران په هوا خوش وي کم طالعه
د ناسوت په تېرو ځکه غافل خوش دے
چې لاهوت ورځرګند نۀ وي مخ جالعه

---

ل اص : د پېم

د صفت په ارو ېدو سعيد طالب شي
په طلب شي له مطلوبه منافعه
چې باور يې د کامل په وينا وشي
له ديداره بهره مند شه له نافعه
چې يقين يې د داعي په وينا نه شي
د غفلت پر بچاونه پروت دے ضاجعه
د طلب همت يې نور دے په زړګي کښې
کم همّت نامرد له جهده ډېر خاشعه
بې کوشښه کشش يو يو سعيد مومي
د کشش سبب کوشش دے بې مانعه
اے مخلصه ځوي درد دامن کېږ نشي
له صنعته به ورنه شي تر صانعه

---

حديث : طالب الدنيا كثير وطالب عقبىٰ قليل و طالب المولىٰ اقل ايضاً الدنيا حرام على اهل الاخرة والاخرة حرام على اهل الدنيا وهما حرامان على اهل الله ايضاً من سرالمولى فله الكل۔

---

د دنیا طالبان ډیر دي او د عقبٰی طالبان لږ او د مولٰی طالبان د لږ و نه لږ دي — دنیا د اخرت په خاوندانو او اخرت د دنیا په خاوندانو حرامه ده او دا دواړه د الله په عاشقانو حرام دي ځوک چې د مولٰی شوهر ځه د هغه شو .

---

د دنیا له طلب ډیر ګرځي اسرع
لږ عالم دے د عقبٰی په کار راجع
د مولٰی طالبان لږ په لږ کښې لږ دي
چې يې حب د غیر الله له زړه اقطع
چې له دوو کونو حب پرې کاله خاطره
هغه خلاص شه د شیطان نوس له خدع
دواړه کونه د ابلیس د مکر حال دے
له دوو کونو د عارف سترګې خشع
هر چې ما زاغ البصر وما طغٰی شه
پاس پر عرش د قربت کښیناست مربع
د خاصانو پر قطار به داخل نشي
ځو د دوو کونو جامه نه دهٔ کا اخلع

---

له مَا زَاغَ الْبَصَرُ وَمَا طَغٰی ٥ النجم ایت ۱۷
(هغه پیغمبر) نه وخوزېدو او نه وړاندې شو

(د) یو خدائے محبت ورولہ پۀ زړۀ کښې
چې لہ دوو کونو مولیٰ دې شہ راجع
چې دنیا غواړي عقبیٰ ورځخہ دروي
لۀ بهشتہ بې نصیب شي شوم طمع
د عقبیٰ طالب مولیٰ نۀ مومي قطعي
څو دنیا اخرت نۀ کاندي ودع
هرچې غواړي لۀ مولیٰ هغہ بہ مومي
کل بہ مومي چې مولا ئې شہ مزرع
مخلصہ ووې کۀ مولیٰ غواړې پہ قطعي
د کامل پر نور راوګرځہ اسرع

---

**حدیث قدسی: لا یسعنی فی الارض ولا فی السماء ولکن یسعنی فی قلوب عبد المومن و ازمغی تخلقوا باخلاق الله وانکہ نام مومن بر صاحب این دل جائز است.**

---

قدسي حديث: زمکې او اسمانونو زۀ ځائے نۀ کړے شوم خو د مومنینو بندیګانو پہ زړونو کښې ځائے شوم. او د تخلقوا باخلاق الله د معنیٰ پۀ باره کښې او داچې د مومن نوم د داسې زړۀ د څښتن د پاره جائز دے.

---

د عارف زړهٔ دے تر عرش کرسي وسيعه
پهٔ جهان کښې عرش کرسي وسيع دفيعه
د بي مثله زړهٔ صفت لويې وګوره
پکښې وينم دحق ذات صفات جميعه
کهٔ دغه زړهٔ دې حاصل کهٔ صاحب دل شوے
د مردانو پر قطار به شې رضيعه
دمومن نامه دحق ده پهٔ قران کښې
نن صفت دمومن ونيسه سميعه
تخلقو باخلاقي شه که عارف يې
د بشر لهٔ خويه تښته کړه سريعه
د بشر صفت عذاب دمساکين دے
خدايي خوی دمساکين شه باغ بديعه
قراري صفت د روح دے له جنشه
نه جنبش کړه وصورت وته توديعه
روح لهٔ خښتهٔ او خوردنه پاک هم له جنشه
لوے درياب دے لا مکان بيحد توسيعه
روح اعظم لهٔ تلو راتلو خلاص دے مخلصه
دجمله روحو سردار دے هم شفيعه

## در بیان خضوع و خشوع که در نماز فرض است یعنی شرط است وان در حقیقت خود محو فانی گردان است

---

د خضوع او خشوع په بیان کښې چې په مونځ کښې فرض دے یعنې شرط دے - او هغه په حقیقت کښې ځان محوه کول او فاني کول دي -

---

کهٔ خبر شه لهٔ ډېې حقیقي خضوع
لهٔ هستۍ خود پرستۍ نهٔ شي خشوع
حقیقي خضوع نېستیه لهٔ هستیه
د هستیه لهٔ تکبیره شه ممنوع
د مولا دو ړاندې خپله هستي ته کړه
بیا د حق پهٔ هستۍ هست شه درست مجموع
تهٔ د حق پهٔ یو هستۍ بینا شنوا شه
هم د حق پهٔ هستۍ هر کار کړه شروع
کهٔ لاحول ولا قوت شي صفات وړک کړه
پهٔ مولی به کړې قیام سجود رکوع

---

لهٔ اص : لسد یه

تکبر عجب خودي به دي شي ورکه
له ریا به و اخلاص نه کړي رجوع
لوئے امان دحق نیستي حق پرستي ده
نن کړه محوه ذات صفات اصل فروع
دجمله گناهه سر خود پرستي ده
خود بیني ویم دکفر شرک ینبوع
دشیطان گناه خودي خود پرستي ده
دادم گناه شهوت څرگند طلوع
دشهوت تښتن پښیمان په زحمت سرشه
له رحمته د خودي صاحب شه جوع
کل ظلمت ئې له نقصانه دے مخلصه
چې ئې نه وي په طاعت کښې ذره خضوع

# في المناجات

بخشنده نور دافتاب دے زما ذره ئې روښان شمعه
دغفلت په سیاهي سیاه دے سیاه دِل کړه بیجان شمعه
دځیل یاد صیقل پرې گښېږ ده چې شي پاک هله ئې پرېږ ده
په پاک دل کښې مهربانه مخ څرگند (کړه) خندان شمعه
داستا مخ درخشنده دے دعارفو نور دید ه دے
دعاشق سترگې پرنور کړه مخ (دے ستا) درخشان شمعه

رخشنده په هر مکان يې هم پر زمکه پر اسمان يې
نابينا دي ليدے نشي ته ئې څرگند د جهان شمعه
کل عالم په تا څرگند دے زما ستا پر مخ سوځند دے
په عدم کښې عالم پټ وستا په مخ شه عيان شمعه
په تياره عالم پنهان وُ بنه او بدتربيل نه انه وُ
ستا په نور څرگند بنه بد شه دے ستا نور د عرفان شمعه
زما زړه صفا روښان کړه نيک وبد ورته عيان کړه
د ښېکړې توفيق ودکړه ستا توفيق د احسان شمعه
د احسان عمل ديدن دے ديدن روح عمل يې تن دے
بې ارواحه تن شي خاوري ستا ديدن دا بدان شمعه
د مخلص د زړه ږيوه يې ائې غافله په پرده يې
غافلان دي ليدے نشي د عارف د رضوان شمعه

ايت : وَمَا الْحَيٰوةُ الدُّنْيَا اِلَّا لَعِبٌ وَّ لَهْوٌ ۔ ( الانعام ايت ۳۲ )

حديث : العمل کل ميسر لها خلق له وانکه قسمت ازل برهريک را ميسر شد

---

ايت :۔ ددې دنيا ژوند يوه لوبه تماشه ده

حديث :۔ ازلي قسمت هر يو ته رسي ۔

د دنیا داهل حب له لهوه لاغه
د عقبیٰ لهٔ کاروباره دي فراغه
د بهشت داهل مینه پهٔ طاعت ده
تهٔ د زړکي رفتارمهٔ غواړه لهٔ زاغه
د طاؤس لهٔ مرغزاره سریکار دے
د قارګه محبت چرې دے له راغه
د مردار پهٔ خوند (او) بوی دېر فریفته دے
د ګلزار بوی نه وردرومي تر دماغه
د دیدار بهښت به هله ورڅرګند کا
چي يې سترګي دي دوو کونو ته مازاغه
د زړهٔ تخت وته پهٔ څشکل ورسیږي
څوکوز نهٔ شي د نوسوتي لهٔ اولاغه
چي د نوس پهٔ خته و نښت خلاص به نشي
د جیفه حب نهٔ کمیږي لهٔ کلاغه
کهٔ دوام کړې (دې) سختي دي مرغ ګیږي
د نفسک هوا سخت ګیره ...........
د هیح حب دګندګي پهٔ توکول دے
د طوطي بلبل دایم مینه لهٔ باغه
چي يې بخره پهٔ ازل ده هغه غواړي
وهر چاته د ازل بخره بلاغه
اے مخلصه پهٔ څو رنګه عالم رنګ شه
پهٔ جهان کښې واړه رنګ دے له صباغه

در بیان انکه جامۂ انسان که برگزیدۂ ومقبول باری تعالیٰ است

ترجمه :- د دانساني لباس په بیان کښې چې د الله تعالیٰ په نزد محترم او مقبول دے )

---

آن بادشاه اعظم در بسته داشت محکم
پوشیده دلق آدم امروز بر در آمد

ترجمه :-
هغې عظیم بادشاه خپل دروازه محکم تړلے و یعني پټ شوے و دغه پوشیده بن دادم په جامه کښې ښکاره شو۔

---

دانسان جامه مولا کړې وروغ
په قدرت صورت دحق تمامه روغ
انساني لمیس ئې واغوست په کثرت کښې
روحاني بادشاه څرګند دے له فروغ
کل حیوان ئې مسخر کړه په عالم کښې
په جهان کښې راغې شاه له تاج وتوغ

چې شېطان ورته سجده نهٔ کړه مردود شه
دګل قدر مېنه مهٔ غواړه لهٔ دوغ
خوشبوئ بوی بد ئې ونهٔ رسي بیني ته
چې سبز لي پوزه يې ډکه له بدوغ
ظاهر بين وآب وګل وته نظر وي
باطن بين په نظر غوربيل کا لهٔ دوغ
دکامل د قدم خاورې شه مخلصه
بل دبه) خلاص شې دخود بيه لهٔ آروغ

## درمعنی ابیات شیخ مصلح الدین شیرازی قدس الله سره العزیز

ابیات

نخفته است مظلوم ز آهش بترس
ز دود دل صبحگاهش بترس

نه ابلیس بد کرد نیکی ندید
بر پاک ناید ز تخم پلید

ترجمه :- مظلوم ټوله شپه نهٔ دے اودهٔ شوے دهغه د آه نه ویرېږه ـ دهغهٔ د سحر د وخت د زړهٔ دلوګي (يعني اسوېلو) نه ویرېږه ـ

نا ابلیس صرف بدي وکړه نیکي یې ونهٔ لیده
د پلیت تخم نه پاکه مېوه نهٔ پېدا کیږي ـ

---

د مظلوم آه برنده ویښم لهٔ تېغه
د ظالم زړګے به غوڅ کا بې دریغه
ذغره سپر کوټے د وړاندې منع نهٔ دي
پهٔ کوم اوټ پناه به ظلم کا تامېغه
د مظلومو فریاد رس عادل بادشاه دے
خلاص به نشي په ښکر نهٔ لهٔ کړېغه
د عادل بادشاه پهٔ ملک کښې ظلم مهٔ کړه
عاقبت به شي پښېمان چاهـله ېېغه
پهٔ دنیا په آخرت کښې به عاجز شي
نهٔ ویرېږې د قاهر قهر لهٔ مېغه
زر توبه د استغفار وکړه پښېمان شه
څو نزول د بلا شوے نهٔ دے الېغه

چې نزول يې د بلا شي سود به نه کا
استغفار هله بې قدره له سبيغه
ودانا ته د عمل جزا څرګنده
د نادان سترګې تاريکي له تارمېغه
تر ابده به ولاړ نه شي مخاصمه
هرچې پرېوځي د فقير د زړه له تېغه

---

### دربيان انکه بی وفائی دولت دنيا که آخر تهی دست ودل پر از افسوس از وی جدا خواهد شد۔

د دنيا د دولت د بې وفايي په بيان کښې، چې آخر به تش خالي لاس او د افسوس ډکه زړهٔ جدا کېږي۔

---

د دنيا د دولت نشته بقا دريغه
عاقبت به ځني بيل شې جلا دريغه

کهٔ پهٔ ډېر محنت دولت نعمت حاصل کا
د قضا سوارګي به يې لوټ کا وړيا دريغه
کهٔ خدم حشم يې ډېر دي پهٔ جهان کښې
د ے پر زمکه کښې ماوئ کا تنها دريغه
چې لهٔ کبره پاس پر زمکه پياده نه تلهٔ
کوز پر زمکه کهٔ پراتهٔ اغنيا دريغه
چې دپاسه خلقه پرې دوانيږي
توري خاورې يې مدام شوې ما وا دريغه
د جهان د بناشته وتقصير نشته
کهٔ يې حسن بر قرار وې سدا دريغه
د ګلو نو پهٔ څېر څو ورځې تازه وي
ز رې يې رنګ تغير تبديل کا هوا دريغه
حسن عشق عاشق د واړو قرار نهٔ شته
څکه عشق پهٔ څړه رنګ بې وقا دريغه
بې مثالې پرېوځ حال عشق پرې باقي وي
رنګ وخوند پهٔ جهان زرشي فنا دريغه
پر مرده باندې د عشق بقا نې نهٔ وي
چې مرده بيا د ته راتشي احيا دريغه
دوځ پر روح لهٔ مرده ګانو حب ګمېږي
چې زنده يې د ے ناامېد له لقا[1] دريغه

---

[1] اص : لاقا

د حاصل ساعت يې نن دے که حاصل کړې
کهٔ حشر پهٔ قيامت نهٔ وي فردا دريغه
کهٔ دې نن کړه اساني سستي اختياره
پهٔ فردا برخورداري وي عنا دريغه
پهٔ خدمت د پير کامل توحيد حاصل کړه
بل به نهٔ کړې ډېر ارمان پهٔ عقبىٰ دريغه
دا ارمان به پهٔ عقبىٰ کړې سود به نهٔ وي
پېش لهٔ مرګه پهٔ توحيد وي دانا دريغه
پهٔ حشر به ډېر عالم وائي مخلصه
کاشکې زهٔ د ميا روښان وې ګدا دريغه

---

## بيت

چه خوش باغے است باغ زندگانے
گر ايمن باشد از باد خزانے
چه خورم کاخ شد کاخ زمانه
گرش بودی اسائش جاودانے
ازاں بهر برآمد اين کاخ دل افروز
چو جاد اکرم کردی گويدت خيز

ترجمه: دژوند باغ څهٔ ښکلے باغ دے کهٔ چرې دا د
خزان د بادهٔ پهٔ امن وي.
د زمانې محل څهٔ ښکلے محل دے کهٔ چرې ددې دا اسائش
تل عمري وې.
دد غه خوشحالۍ نه دا زړهٔ روښانوونکے محل راغلے دے
کله چې یې پهٔ محل کرم وکړو نو تا ته به وائي چې پا څه.

---

## وله

---

د جهان باغ کې ښائسته دے که مدام وي ګلبن دریغه
کهٔ بهار کهٔ پرې خزان شي یکسان نهٔ دے چمن دریغه
د بلبل زړهٔ مدام ژاړي پهٔ لیدهٔ د ګل نه ویاړي
د صورت باغ دل پزیر دے کهٔ باقي وي ګلشن دریغه
پهٔ هفته کښې کې حال بل شي مړ روي خورد صورت ګل شي
د ځوانۍ باغ کې تازه دے کهٔ یک حال وي بدن دریغه
پهٔ یوهٔ حال کښې نهٔ وسي کهٔ کې هر څو سړے یوسي
پر زمان کې رنګ تغیر شي هر نازک د سوسن دریغه
د ځوانۍ جامه خوش رنګه پهٔ زوړوالي شي بد رنګه
پهٔ ځوانۍ کې غره مهٔ شه صورت زر شي کهن دریغه

تېر عمر واړه وهېر شي دا موجود کورم چې تېر شي
کاشکې نهٔ وې په جهان کښې د بنهٔ عمر چلن دریغه

که جامه کاندي ورېښمنه يا ذري اطلس رنګینه
عاقبت به ئې جامه شي شوي سپين دکفن دریغه

د دنیا دولت مهین دے فیل شتر که اسپ وزین دے
حور قصور حالي ئې د پرې کړې نهٔ وي رفتن دریغه

د دنیا دولت پر خوړ دے عاقبت ئې تښتن مسې دے
کیقباد او جم تېرے هسې ولاړ شهٔ بهمن دریغه[1]

بادشاه د پر بندي که تل وي ترابده ئې ملک خیل وي
.... .... .... ....

د مخلص د پنا سودمند که ته يې ونغوږه هوشمند که
د دنیا حب هله زيات کړه که مدام وې وطن دریغه

---

# في المناجات

---

ته حکیم زهٔ زحمتي يم زما تن کړه له زحمت روغ
د سړي حکمت نه رسي ته ئې کړه پخپل حکمت روغ

---

[1] اص : کد قباد وجم تېرې ولاړ وهسې ولاړ شه بهمن دريغ

ته په هر چا توانا يې په هر رنځ دوا دانا يې
دا ضعيف عاجز درد مند کړه ته رحيم پخپل رحمت روغ
دے رنځور پخپل شومت دے اميد وار ستا په رحمت دے
د رحمت نظر پرې وکړه چې يې تن شي په سرعت روغ
دا ستا چارکن فيکون دے زما يقين پيدا سخن دے
په صورت باندې ګراني ده بيمار تن کړه له عسرت روغ
رنځ صحت کورم له تا دے په قران کښې دا ښدا دے
زه صنع ته صانع يې دا شکسته کړه په صنعت روغ
په سحر در ته زاري کړم زه تا ري له زهيري کړم
ته لطيف خبير اګاه يې زما لاس کړه بې علت[1] روغ
د مخلص زاري هر ده د ېر زهير دلاس له درده
ته د درد دارو طبيب يې بيمار لاس کړه له قدرت روغ

---

## در بيان نسبت وحدت با کثرت وانکه موحد اصل بين است واحول فرع بين است

---

د وحدت او کثرت د نسبت په قله - او دا چې موحد اصل ليدونکے دے او احول فرع ليدونکے دے.

---

[1] اص: بعلت

یو احد بشماره د بې شه لهٔ الافه
د وحدت تخم زرغون شهٔ څو اصنافه
بښاخ وګل پاڼې میوه شه پهٔ کثرت کښې
سر تا پایه شهٔ ښکاره څو اوصافه
دا کثرت عین وحدت دے شک پرې مهٔ کړه
لرې بحر یخ اوبهٔ دې بې خلافه
دیک بین ستر کې ئې وینې چې موجود دے
د احول د دید ځواځې ولېنم کذافه

.... .... .... ....

.... .... .... ....

چې ئې اصل په نظر ښبوت یک بین شهٔ!!
دے احول د اصل نخبنه کړه اخطافه
یو الطف لطیف کثیف شه پهٔ کثرت کښې
د اوبو پهٔ مخ ځک یخ شه ایتلافه
دریاب پټ نحس ښکند و ظاهر بین ته
دا باطن بین عارف خبر شه له رجافه
د لطیف دریاب اوبه به کتې نهٔ شي
څو پرده د یخ په لا نهٔ کا شګافه

---

له خاېن

له اص: لر بحر یخ ادب دی پی خلاف

لا اِلٰه د معنیٰ تبر دے باور کړه
پهٔ دا تبر محکم بیخ کړه انکشافه
د لطیفو اوبو مخ به درڅرګند شي
پهٔ لیدهٔ یې زنګ زده سینه کړه صافه
کهٔ پهٔ لا نفي د غیر شک کا لرې
الا الله به مخ ښکاره کا بې غلافه
ومخلّص ته یې لطیف وجود څرګند کهٔ
ډېر شاګرد دے د روښان پیر له الطافه

---

انکه بر دا باب علم باطنی گشاده کرد ود بر ظرف اش بیند درون
وبیرون اوند .

---

هغه چې چا د باطن د علم دروازه لرې کړه او پهٔ هر شي
کښې یې اوبهٔ ولیدې بهر هم هغه دے او دننه هم
هغه دے .

---

کهٔ پهٔ تا شي د باطن علم مکشوف
وبه وینې پهٔ هر ظرف کښې یو مظروف

---

ے اص : اندک

پهٔ یو مزي پسیلي دي مرہیلہ
دغه مزے د عارف سرہي معروف
د یوهٔ دریاب اوبهٔ دي پهٔ هر ظرف کښې
هم دریاب دے ترهر ظرف چاپیر معطوف
ترشین لوري دے چاپیره (دا) بې حده
دا بې حد دریاب غلاف عالم مغلوف
پهٔ دریاب کښې .. . . . . . . . .

. . . . ... ... . . .

پهٔ پس کښې هر صفت چې ځرګندیږي
دے پدرئې پهٔ هغهٔ صفت موصوف
دانسان وجود جامع د نیک وبد دے
داسرے کهي قهار شي کله رؤف
دا جلال جمال دحق د ذات صفات دي
کهي موج ئې د جلال کهي عطوف
کل احسان ئې دجمال پهٔ موج بشکاره شي
دجلال موج ئې د شر دچاه مجوف
دانسان صورت مظهر ددواړو وصفو
ځکه نمر د ذرهٔ که وتیسي کسوف
قبض و بسط دي دجلال جمال موجونه
دغه ذرهٔ کبه پرې تازه شي کبه جفوف

د سرې زړۀ پۀ يوۀ حال کښې نۀ وسي
پۀ يوۀ زمان کښې څو رب شي کۀ شفوف

بنيادل وته د زړۀ احوال څرګند دے
کۀ اغوستے رڼې) ورښمن وي يا زين صوف

دځيل زړۀ احوال بهحاله ورښكاره شي
چې همېش وي دځيل زړۀ دكعبې طوف

چې يې فكر تل د زړۀ پۀ ملك حيا روځي
هغه كس به شي بېشكه فيلسوف

نن طلب دتوحيد وكړه كۀ پوهېږې
دانائي دهٔ دتوحيد پر لور موقوف

اے مخلصه دتوحيد تمثيل څرګند دے
دا مولٰى مانند سياهي خلق حروف

---

*در صفت دریای وحدت که تمامی کثرت کف است برآن دریای .*

---

د وحدت د درياب پۀ صفت كښې چې ټول كثرت
د دې درياب ځګ دے .

---

ل اص : هيېږ

زهٔ پسو کړم د بېحد دريا تعريف
د ے بېچون د بېچګون خبیر لطیف
د وحدت د درياب حد نهايت نشته
درست کثرت پرې باندې وينمه کثيف[1]
چې نظر يې لهٔ کثيف څکه بترشهٔ!
دا عارف د ے د روښان ديار حريف
چې يې غشيے د نظر ترځکهٔ[2] پرېوځي[3]
د يقين لينده يې سسته زړهٔ ضعيف
حقيقت به په صورت کښې دانا ويني
حقيقت لکه معنیٰ صورت تصنيف
لهٔ صورته د معنیٰ پر نور روان شهٔ
د معنیٰ درياب کريم تطهير حنيف
دا سرې لهٔ يوه ښته پيدا شوي
معنیٰ بېن دي په سرېو[4] کښې شريف
د معنیٰ پر نورې به سېرکولے نهٔ شي
چې ګمان يې د ے فربه باور نحيف

---

[1] اص: درست کثرت پر باندِ څکه وينم کثيف
[2] اص: تردکه
[3] پر نوزی
[4] اص: ..... پسرې يوکښے شريف

لمینه سفله هغه پهٔ حقیقت کښې
چې ګمان یې وي ثقیل باور خفیف
چې د سال وتن ایمان زکوٰة یې ورکه
دا مومن دے پهٔ مومنو کښې عفیف
د پاکانو مرتبې ته به ورنشي
هر چې زړهٔ یې د دنیا پهٔ حب وي جیف
چې یې علم د دنیا شو پر زړهٔ پرېمشت
دانایان کسان یې نهٔ بولي ظریف
دانایۍ سبک روحي پرې باندې درسته
چې دوستي یې وي کمتره لهٔ کثیف
ګران جان لیم چې یوښ شي پهٔ مجلس کښې
پرې تازه زړونه شي یوخ فصل حریف
کریمان فصل بهار دي پهٔ جهان کښې
پهٔ دیدن یې زړهٔ تازه وینم تضعیف
اے مخلصه کهٔ تکلیف تعلق نهٔ وي
مرګ ژوندون به دواړه پېښه بې تکلیف

---

[1] [2] اص : پېښې

. . . . . . . . . . . . . . . . . .

. . . . . . . . . . . اوذکرخدائےتعالیٰ است جل جلاله

---

او د الله تعالیٰ جَلّ جَلَالَهُ ذکر دے .

---

د سړي د دم جلب خلاص دے لهٔ کفه
د اس عمر ئې تېز دو ځي له جدفه
دم قدم ئې شب و روز پرې روانیږي
یو زمان ئې قرار نهٔ وي لهٔ زرفه
دوځ په دوځ واخرت ته نږدې کیږي
لرې ووځي پهٔ هر دم لهٔ دې تنفه
پهٔ هر حال کښې عمر د رومي نهٔ دریږي
کهٔ پرغم ئې تېروي یا ئې لهٔ دفه
دم ګوهر ئې بې بها دے په صورت کښې
بې بها ګوهر لېنه مهٔ کړه تلفه
د خدائے یاد ئې دے بها یه د واړه کونه
بې بها ئې بېرون مهٔ کړه له صدفه
سرمایه ده شرین عمر پهٔ جهان کښې
بې هوده ئې تلف مهٔ کړه ناخلفه

د دنیا فاني متاع کودي یاد شوي
بې بها عمر یې مه کړه له خزفه
د دنیا لعل و جوهر دي سرې سکروټې
پر قیامت به محوولي شي له تلفه
د دنیا مینه زړه تور سخت کا تر کاڼي
که دانا یې د دې حب کړه بر طرفه
د دنیا په دولت خپسر بزرګ مه بوله
که دې بویه د دین دارو له شرفه
د دنیا کمال زوال لري د وړاندې
زر سلیمان سکندر کوز شوله رفرفه
په ځوانۍ تندرستۍ هېڅ اعتماد مه کړه
د مرګي د خار د وړاندې ځي خشفه
شب و روز د مرګ له یاده غافل مه شه
نه په روځې صرفه کاندي نه پر شفه
لوے پند د مرګي یاد یې دے سر یو
هر چې یاد کا بنه یاران چې دي سلفه
چې یې نن د ناصح پند پر زړه ونه نیو
عاقبت به په ارمان کا زړه حرفه
اے مخلصه د مرګ یاد پر زړه لازم کړه
چې له زړه د دنیا حب (دې) شي طنفه

## در صفت دریای لطیف که موصوف است به صفات کل

---

د لطیف درياب په صفت کښې چې په "کل صفات" موصوف دے۔

---

د ذرۀ سترګې به اسان وینې لطیف
په هر څۀ کښې به عیان وینې لطیف
که ګمان ئې له ذرۀ ورک شینه ربیا ګوره
په یقین به بې ګمان وینې لطیف
د سرې غمې ګمان پرمخ حجاب دے
بې حجاب به جانِ جان وینې لطیف
دے باطن د هر باطن پټ دے په پټ کښې
په باطن به پټ عرفان وینې لطیف
په ظاهر سترګو ظاهر دے په معنیٰ کښې
کل باطن به حق یزدان وینې لطیف
که د ذرۀ غوږ ئې شنوا شي بې ګمانه
په هر څه کښې به ګویان وینې لطیف

کهٔ د حق له معیته خبردار شي
پهٔ هر حال به نګاه بان وینې لطیف
خدایین سترګې کهٔ مومي لهٔ کاملـه
پهٔ هر لور به لامکان وینې لطیف
د ے د هر مکان مکان پهٔ ذکر
بې مکانه به کل کان وینې لطیف
کهٔ د روح لهٔ معرفته خبردار شي
د مخلص په تیز به ځان وینې لطیف

---

تهٔ دانا توانا بادشاه یې پهٔ کرم همت معروف
ستا رحمت تر غضب وړاندې ته پهٔ داصفت معروف
زهٔ عاصي ظلوم جهول یم کهٔ قبول کهٔ نا قبول یم
ستا پهٔ رحم امید وار یم ستا همت منت معروف
ستا پهٔ کُن عالم موجود شي لهٔ نیستیه هست وجود شي
د پٔلک[1] تر ځنبل وړاندې ته پکار سرعت معروف
لهٔ نیستیه دې پیدا کړم پهٔ هستیه دې اشنا کړم
د انسان صورت دې راکړه پهٔ احسن صورت معروف

---

[1] اص : فلک

چې احسن دے زشت ئې مهٔ کړې چې ئې مخ دے پشت ئې مهٔ کړې
لهٔ اسفله یې وژغورې تهٔ پهٔ لوئے خلقت معروف
تهٔ قادر توانا حکیم ئې دزنځور ضعیف بندیم ئې
د فقیر علاج پهٔ تا دے تهٔ پهٔ کل حکمت معروف
پهٔ حکمت کانهٔ شنوا کړې نابینا واخلې بنیا کړې
پهٔ قدرت مرده زنده کړې ته پهٔ لوئے قدرت معروف
زهٔ لاحول ولاقوت یم ناتوانه بې قدرت یم
تر هر درد پورې عاجز یم پهٔ ضعیف خلعت معروف
تهٔ قوي قادر معروف ئې پر عاجز باندې روف ئې
پر مخلص عاجز همت کړه ته پهٔ ډېر رحمت معروف

---

*دربیان صفت حقیقت وکار عاشق وکار اجیر پرہیزگاری خایف از ترس عذاب دوزخ است وپرہیزگاری عاشق از خوف از ناخشنودے وجدای معشوق است .*

---

د حقیقت دصفت او د عاشق او اجیر دکار پهٔ بیان کښې . د خائف پرهېزگارې د دوزخ دعذاب نه دیرې پهٔ وجه ده او د عاشق پرهېزگارې د معشوق د ناراضګۍ او د جدایۍ له ویرې نه ده .

---

د خپـل يار ثنا به وايم لهٔ اشواقـه
د عاشق كار مبرا دے لـهٔ نفاقـه
محبان ئې هره چار په محبت كا
د اجـير اميد دے اَجر له خـلاقـه
خايفان د اور لهٔ ويرې پرهېزګار دي
عاشقان ئې پرهېزګار دي لهٔ فراقـه
د دوزخ د اور لهٔ تاوه پرهېزنهٔ كا
لهٔ دوزخـه جدائي پر عاشق شاقـه
اوس طاعت ئې د معشوق پهٔ خوشنودي دے
د رجا خوف و طاعت ئې كهٔ بې باقه
پهٔ عوض بندګي مزدور كا پهٔ عالم كښې
بې عوضه بندګي كړه خواره عاقـه
كهٔ زاهد دے حور قصور وتـه هوس كا
رند عاشق ئې وديدارته دے مشتاقـه
حقيقي محبوب به چرې پرې راضي شي
څو چې نهٔ كا د بهشت حوره طلاقـه
د عقبىٰ عروس به مخ ورښكاره نـهٔ كا
څو دنيـا دې زر ورنهٔ كا لهٔ وثـاقـه
چې بې دوستهٔ پر څهٔ خوښ شي پهٔ دوه كونه
لهٔ محبوب سره ئې قـطـعي وي شقاقه

پۀ مخلص عاشق يې څکه مهر د پر دے
د دوؤ کونو حب يې کوز د زړۀ لۀ طاقه

## صفت وثنا باری تعالیٰ و درصفت وعلامت کاذب وصادق

د باري تعالیٰ پۀ ثنا صفت ، او د کاذب او صادق
د علامت پۀ حقله .

اے د دوؤ کونو خالقه
ستا ثنا به کړم سابقه

ستا صفت د محب درد دے
نور څه نۀ شي له عاشقه

تۀ حي محي عليم يې
هم د هر حيوان رازقه

تۀ بصير سميع مريد يې
پۀ کلام قديم ناطقه

پۀ قدرت کړې واړه حادې
تۀ قادر حکيم حادقه

تۀ لطيف خبير پۀ هر څه
يې واقف له حقائقه

د هر زړۀ حال د ټخر کندي دي
کاذب بيل کړه له صادقه

د کاذب حب لۀ دنيا شه
صادق زړۀ پر حق سايقه

د ښتيني زړهٔ پاک شوے — د دنيا لهٔ علايقه
چې يې مينه په دروغ شوه — دروغ ژن زړهٔ دے فاسقه
لهٔ فاسقه لرې ګرځه — بد فاسق دے منافقه

د مخلص وينا پښتو ده
پهٔ ايت ده موافقه

---

## دربيان نعمت حق تعالیٰ که بر انسان عنايت فرموده است وبرانسان شکر آن نعمت واجب است

---

د حق تعالیٰ د نعمت باره کښې چې پهٔ انسان يې عنايت کړے دے او پهٔ انسان د دغه نعمت شکر ادا کول واجب دي .

---

کهٔ خبر شهٔ د مولا لهٔ ښهٔ حقوقه
شکرانه به د حق فرض ګڼې مرقوقه
د انسان صورت يې در کهٔ پهٔ جهان کښې
دے فی احسن تقويم ګوره ترقوقه

پهٔ خیال روح یٔ چې علیم کړه په حیوان کښې
نوراني عقل یٔ چراغ ورکه فاروقه
دانا زړهٔ یٔ پهٔ کوګل کښې بېدار ورکهٔ
بینا سترګې یٔ پر سر درکړې مسبوقه
دواړه لاس یٔ دصورت خادم پیدا کړه
دواړه پښې یې دي مرکب په مثال نوقه
حق سجدې دپاره بند پر بند موجود کړ
هم پهٔ پوزه لذت اخلي لهٔ خلوقه
نور وښتهٔ یې ستا پهٔ تن باندې زینت کړهٔ
سرهٔ نوکونه دي زیب زیات کا له عبوقه
پهٔ احسن صورت یٔ روغ کړې سر تا پایه
پهٔ عالم کښې ستا پهٔ څېر نشته مخلوقه
ښهٔ رازق دمرزوق رزق کهٔ پهٔ آسمان کښې
تهٔ پهٔ رزق پسې کوشش مهٔ کړه مرزوقه
پهٔ هر حال کښې شکرانه درباندې فرضه
چې و ذکر ته یٔ تل وسې تشوقه
نن کفران دنعمت کفر دے باور کړه
چې پهٔ کفر کښې داخل نهٔ شې زعفوقه

---

اصل : سجده

شکرانه دنعمت دا دَه کهٔ یې اَروي
چې نعمت دحق وباسه له صند وقه
هیڅ نعمت دحق پټ مهٔ کړه لهٔ عالمه
کهٔ مزید دنعمت غواړې بې زهوقه
پر مخلص باندې یې شکر ډېر واجب دے
چې خپل مخ یې وراړوکند کهٔ بې حقوقه

---

**دبیان انکه خلق مخلوق خالق است هر که مخلوق وی ناحق رنجاند ازاں کسے خالق ناخشنود است وانکه مخلوق فعل خالق است وخلق نیکوست .**

---

ددې بیان پهٔ باره کښې چې خلق دخالق مخلوق دے څوک چې مخلوق پهٔ ناحقه تزنوي دهغه کس نه الله تعالیٰ نا رضا وي ـ مخلوق دخالق فعل دے او خلق نیکي دهٔ-

---

ل اص : دی

مصرعه:

زینکو هرچه صادر گشت نیکو است

ترجمه:

د ښکلو نه هر څه چې صادر شي ښکلي وي

---

ددې خپل زړهٔ له منطقه
زهٔ به وکښم څو سبقه

هر چې داسبق ئې واخیست — پر مخلوق به شي مشفقه
کل اشیا مخلوق دحق دے — پر مخلوق مینه الحقه
هر چې دوست دچا ازار کا — د دوست زړهٔ بدشي مطلقه
په هیڅ څیز ئې کوتړ مهٔ بڼ د ه — واړه ښهٔ ګوره احمقه
لهٔ ښو ښهٔ دتل پیدا کیږي — دا وینا رښتیا دهٔ حقه
ښهٔ تر بد پورې معلوم شي — روح څرګند ه لهٔ غسقه
پر بساط باندې باید ه وو — که فرزین اس ځي بیدقه
خدائے عبث څه پیدا نهٔ کړه — کهٔ تړغ اس که ابلقه
چې څهٔ دي واړه بکار دي — کهٔ نښتر وي یا بُندَقه
کل رنګونه د ښي رنګ دي — کهٔ سور زیړ زرغون ارزقه
هر اشیاء مظهر دحق دے — څوک ازار مهٔ کړه ناحقه
ځائے ظهور دجلال دینه — ځائے جمال شي پرې رونقه
که جلوه کا په عذرا کښې — ګهه ظاهر شي له وامقه

ځای نیاز من چرې بې نیاز شه | ځای غمزن چرې الفقه
په هرځین کښې ئې هستي ده | هستي تن تن ئې یلمقه

د مخلص وته ګویا شه
د دې خپل ذره له منطقه

---

**دربیان زبده وخلاصه نصائح شفیق بلخی قدس الله سره العزیز**

**که هارون الرشید را فرموده بود وقتی که شفیق لطواف حضرت ....**

---

د شفیق بلخي قدس الله سره العزیز د نصیحتونو
دا علیٰ برخې او خلاصې په بیان کښې چې هارون الرشید ته
ئې کړي دو هغه وخت چې شفیق د حضرت په طواف ....

---

دا د سود خبره واروه له شفیقه
چې هارون کړه په خاطر باندې تصدیقه
هارون ووې چې شفیقه زاهد ته ئې
چې د دنیا دولت دې پرېښو له توفیقه
ده وېل چې زه شفیق یم زاهد نه یم
زاهد ته ئې چې دنیا دې کړه رفیقه

زهٔ لوے ملک دآخرت لرم توانګر یم
پهٔ قلیله دنیا تهٔ پاتو تعلیقه
پهٔ قرآن کښې ددنیا متاع لږ یاد ده
دعقبی نعمت باقي دے بې تفریقه
بیا شفیق ویل کهٔ پند راکړې راضي یم
دستا پند وینم دزړهٔ پهٔ کښت خلیقه
بیا شفیق ویل که اورې (ته) سامع شه
دښو پند پر زړهٔ تصدیق لره صدیقه
کهٔ پهٔ بیدیې بېدیا تږي ترحد زیات شهٔ
کهٔ څوک یو جام اوبه دروړي لهٔ ابریقه
کهٔ وواییې بادشاهي راکړه جام واخله
څهٔ به وایې وېنا وواییه تحقیقه
دهٔ ویل چې بادشاهي به درسته درکړم
بنهٔ اوبهٔ به دجام وڅښم له رحیقه
بیا شفیق وې غره مهٔ شه پهٔ شاهیه
چې بهاې یو جام اب وینم غرنیقه
دمولی طلب کامل میړهٔ یاد شوے
دعقبی طالب عاقل دمال تحمیقه

---

ـلـه اص : تصدیق

د فاني په طلب عمر ضايع مه کړه
خرمهره برابر نه دہ له عقيقه
د مولا حُب به يُ هله (وي) پر ذرهٔ کښي
چي يُ ذرهٔ له غيره حبّه شي عتيقه
د مولا د حب ضدان حب د کونين

... ... ... ...

که مولیٰ غواړي له دواړو کونو بري کړه
بي مولا په څهٔ مشغول مه شه اعشيقه
د معشوق غيرت زياده دے له عاشقه
عاشقان د غيرحب کاندي حريقه
که عقبیٰ د نيا دي دواړه طلاقي کړهٔ
بيا هاله که شي معشوق پر تا شفيقه
دواړه کونه لوے حجاب د دوست پر لار کښي
اے مخلصه حجاب واخله له طريقه

---

**دربيان انکه هرکه صفاتِ خود به حق سپرد و از صفات خود فاني شد درگوش و زبان فاني بنيا و شنوا و گويا بحق گردد و هستي حق بحق شناسد مشاهده حق را بچشم حق بيند و او از حق بگوش حق شنود .**

په بیان ددې چې ځېل صفات په حق وسپارئ او دخپلو صفاتو نه فاني شئ ـ خپل سماعت او ګویایئ فاني کړئ او په حق سره بنیا، شنوا او ګویا شئ او د حق هستي په حق سره وپېژنئ د حق مشاهده د حق په سترګو سره وترځ او د حق آواز په حق سره واورئ ـ

---

(ت) پر هر لوري به ګوري درخشان حق
که بینا دې شي په سترګو کښې نهان حق
د حق ذات (به) په حق وینې په هر څه کښې
که په تا کښې شي بنیا شنوا ګویان حق
که له ځانه شي فاني وجود دې نیست که
په فاني کښې شي دانا توانا تابان حق
د زاهدو په جنت حورو قصور وي
د عارفو په جنت ویښم خندان حق
و عارف ته تجلّي کا په هر لوري
ورڅرګند په هر زمان په هر مکان حق
د عارف د ذرهٔ ګمان هاله نفي شه
چې ئې ولیده د ذرهٔ په دید عیان حق
له غافله یې حجاب پر مخ نیو لے!!
و عاشق ته یې ښکاره که مخ عریان حق

چې د غېرې ګمان ورک شهٔ لهٔ عارفه
هر زمان په ځېر ځېر ګوري پهٔ ایقان حق
څو خلوت ضرور پر ځان باندې فرض نه) کا
پهٔ بازېد به چرې بیا مومي انسان حق
څو پهٔ دا جهان حاصل دحق او نه کا
بیا به نهٔ مومي هرګز په ان جهان حق
مومنان صادقان دادي په جهان کښې
چې جاري ئې وي پر ژبه هر زمان حق
لهٔ ناقصه دروغژنه به تایب شي
چې ښکاره شي وطالب ته د روښان حق
دې مخلص ئې له طفیله نعمت بیامونډ
چې مسکین ئې کهٔ پهٔ خیل کرم مهمان حق

---

## در بیان صفت عشق و انکه هیچ دل از عشق خالی نیست یا دروی محبت دنیا ویا محبت عقبیٰ یا محبت مولیٰ باشد

---

د عشق پهٔ صفت کښې دا چې هیڅ زړهٔ دعشقه خالي نهٔ دے یا به پکښې ددنیا محبت وي یا د عقبیٰ او یا دمولیٰ .

---

هر چې نه لري په ذره کښې د مولا عشق
په خاطر کښې به ئې وسي د دنيا عشق
د مولا د مينې ضد د نيا عقبى ده
له دې دواړو سره نه وسي د خدا عشق
چې سالک د حق له مينې و جار باسي
د طالب پر لار کښې سد وي د عقبا عشق
په يوه ذرګي کښې يو محبت ځائے شي
پر هر ذرۀ باندې تنها کاندي ما وا عشق
په يوه ملک کښې د دو بادشاه ځائے نشي
په دا دوه پر ذره کښې نه اوسي د انا عشق
کل عالم له محبته پيدا شو سے !!
کل جهان ئې د ے پسر کورم بابا عشق
هيڅ (يو) ذره له محبته خالي نه د ے
د هر کس په يوه څيز وينم جدا عشق
څوک پر زر جوهر مينه څوک ..........
...... ..... ..... ......
د فرښتې حب په طاعت په عبادت د ے
په خوردن شهوت تمام د ے د چارپا عشق
هر څيز چې پټوي پټ شي له خلقه
په هيڅ څيز کښې نه پټيږي د شيدا عشق
چې له تاوه ئې ګوګل سيزي په تن کښې
ذره پر ذره دننه اور وينم خفا عشق

د بل، ثمین مینه وخدای ته رهبر نهٔ شي
و مولی ورته رهبر دے پرکویا عشق
کهٔ پوهیږي (دوی) غافل لهٔ دې معنې دي
پهٔ معنیٰ کښې د مولا دے پر زېبا عشق
پر باقي عشقٔ تل باقي وي تر ابده
پهٔ فاني باندې فاني دے انتها عشق
اے مخلصه دکامل پر مخ شېدا شه
دکامل محبت عین د مولا عشق

# في المناجات

تهٔ علیم حلیم صاحب يې زهٔ بنده کوږ باعاقه
خبر نشته په بنده کښې کل احسان دے لهٔ خلاقه
زهٔ بدنویه بدکردار یم پرګناه باندې اقرار یم
د مُقر ګناه کریمه تهٔ کړه محوه لهٔ اوراقه
زهٔ مقر ستا پهٔ کرم یم ستا پهٔ نوې صفت محرم یم
ستا رحمت تر قهر زیات دے زهٔ بندهٔ یم بداخلاقه
تهٔ کریم رحیم مولا يې پر عاصي باندې رحما يې
د عاصي ګناه کریمه پهٔ کرم يې کړه بې باقه

کهٔ فرزند دسړي عاق شي لهٔ پدره په نفاق شي
پدر قهر ورته وکه هم يې کم کا لهٔ نفاقه
تهٔ ستار يې عيب پوشه هم د مهر پيا له نوشه
کهٔ مرزوق دي گناه وکا دزق يې کم مهٔ کړه رزاقه

---- ---- ---- ----

---- ---- ---- ----

زهٔ کبنکے بړګ ابلق يم کبه دنيا شم کبه غسق يم
دخپل ياد چراغ کوزمه کړه دفقير د زړهٔ لهٔ طاقه
زهٔ دردمند پهٔ ځان مشغول يم زيات ګرفتار يهٔ دغم غول يم
لهٔ دې رنځهٔ مې زړهٔ خلاص کړه پهٔ هر چاره کښې طباقه
د مخلص د زړهٔ حبيب يې د رنځور تن يې طبيب يې
ته صحت عافيت ورکړه هم دخپل حب لهٔ اشواقه
د فقير علم مزيد کړه (پهٔ مريد) د بايزيد کړه
تهٔ کريم استحقاق راکړه زهٔ ناقص يم استحقاقه

---

در بيان حرمتِ کبر و عجب و انکه خود بينی و خود پرستی از بتا پرستی
د بشرکيست و انکه نيستی حق پرستی است

---

دکبر او عجب د حرمت په بیان کښې - او دا چې خودبیني او خود پرستي بت پرستي او مشرکي ده - او دا چې نیستي حق پرستي ده -

---

ته پیدا له اب وخاکه
تکبر مه کړه بې باکه

د دوو پیشاب له ځسته ستا صورت راغې نم ناکه
د ستا اصل له مني دے ده مني غونډه ناپاکه
د ستار کوڼ مه پِه ده له کبره وویرېږه له هلاکه
دے شیطان کبر پر زړه کړه کبر کوز که له اسماکه
لعنتي طوق یې پر غاړه دے رانده شه له افلاکه
چې سری یې بې بنیاد[1] دے چې په کبر تمنا که
تواضع تسلیم اختیار کړه مرتبه به دې علیا کا
عجب کبر لوے گناه دے طاعت وُلسړي له راکه
مُجب مال عمل وسپړي پیڅ ساعت یې پو فنا کا
دآب مخ نه بشکاره کیږي څو پاک نشي له خاشاکه
دخودی[2] خاشاک پرې پروت دے دریاب پټ ستا له ادراکه

---

[1] اص: چه سړی چه ی بی بنیادی

[2] اص: بد

لهٔ خودبينه شـهـا پـتـه — خود بيني سړے اعـما کا
خود پرست بت پرست ياد دے — خلاص به نشي لهٔ اشراکـه
بې کامله به ونـــو ځي — د پيټ شرک چاه لهٔ مغا کا
(۱) د شرک خوشه پيدا شي — د خودۍ انګور لهٔ تاکـه
څو پـهٔ لا نـفي نېست نشي — خلاص به نشي لهٔ سواکـه
لهٔ نېستيه ويره مهٔ کړه — دا نېستي به دې بقا کا
د هستيه ګمان بد دے — خـفي شرک واخله بريا کا

بنهٔ نېستي حق پرستي ده
کهٔ مـولىٰ پر تا عطا کا
هغه خلاص فـلاح مخلَصه
چې عمل کل پـهٔ مولا کا

---

انکه نبی وولی افتاب دلها است وکفر وجهل مانند شب است بر دلها انکه کوردل است از روشنای افتاب بی بهره و بے خبر است . حدیث قدسی : لا یسعنی فی الارض ولا فی السمآء ولکن یسعنی فی قلوب العبد المومن .

---

نبیان علیه السّلام او ولیان رحمة الله د ژړونو نمرونه دي ـ کفر او جهل دشپې په شان دي ـ هغه زړونه چې تور دي د نمر د رڼا نه بې برخې او بې خبره دي ـ قدسي حدیث ـ
زهٔ زمکې او اسمانونو کښې ځاے نهٔ شوم خو د مومنانو پهٔ زړونو کښې ځاے شوم ـ

---

چې یښې لرې لهٔ خاطره بدګمان کهٔ
دیقین څخه یٔ هغهٔ وسته عیان کهٔ
تاریکي یې له پرتوه شوه غایبه
چې ښکاره دې) پهٔ جهان افتاب روښان کهٔ
د روښان پهٔ روښنائیٔ به بینا وینې
لهٔ ړندو یٔ روښان نمر پسونهان کهٔ
ازلي کم بخت د نمر لهٔ نوره تښتي!
بختور یٔ د افتاب د نور جویان کهٔ
پر نجس یٔ دهیځ تاڅکه کړه میته
دبلبل د بهنورا حب یٔ له بوستان کهٔ
دهر چا د بخرو وېش پهٔ ازل شوے
د چا بخره یٔ ګمان د چا ایقان کهٔ
وکافر یٔ جهل ورکهٔ پهٔ زیاتې کښې
د مومن یٔ پهٔ ایمان مزید ایمان کهٔ

---

له اصل : تی

چې باور ئې د مرشد په تلقين وشه
حقيقت ئې د هر څيز ورته عريان که
حقيقت لکه معنی صورت بيان شه
د معنی مقصود ښکاره حق له بيان که
که معنی غواړې په تن کښې يې وغواړه
ستا صورت ئې د معنی د تن ايوان که
دخپل زړه ايوان وغواړه که طالب ئې
د مومن د زړه محل ئې خپل مکان که
د مومن زړه لامکان مکان ئې نشته
لامکان په لامکان کښې ځان ګنجان که
بې جهت به په جهت کښې کا استوکه
دے بې مثله (څه) په مثل کښې استان کا
دا بې حد په بې حد (کښې الپدا نه شي)
دے بې چونه (څه) په چون کښې ځان نهان که
د مومن زړه تخلقو باخلاق الله
خپل صفت ئې د مومن پر زړه کښې کان که
د مومن زړه ائينه عکس پذير دے
شبه مولی تمام صفات پکښې تابان که
اے مخلصه په پاک زړونو کښې ئې ځائے وکړو
په پاک زړونو کښې مولی جمال علان که

# وله

چې همېش د ذرهٔ پر باغ باندې نظر کا
په څولونه به حاصل ګل و ثمر کا
د عارف د زړګي باغ دے له بهشته
ودې باغ وته نظر دایم داور کا
دا ظاهر ګل د باطنه نمونه ده
نمونه سړے پرولن سړي اظهر کا[1]
لهٔ خرمنه کا څرګند خریدار موتې
د ډېر اور په حقیقت خبر اخګر کا
پهٔ دنیا کښې اخرت دهٔ ته څرګند شهٔ
د فردا د حال خبره پېغمبر کا
دا دنیا واخرت ضد دي باور کړه
لهٔ اضداده داضداد معلوم پهٔ کر کا[2]
لا اله اِلّا اللّٰه ضد دے یاد شوے
عارفان د لااله وته ګذر کا
لهٔ صورته د معنیٰ پر لوري دروي
لهٔ ګمانه د یقین پر لور سفر کا

---

[1] اص : نمونه لر پرونو سړی اظهر ک

[2] اص : پکیر

د صورت عالم گمان حجاب پر بحر
په دا لوی محیط کښې محو کل صور کا
د کامل تلقین محوه د اشیاء دي
په عظیم بحر کښې ولي کل لر بر کا

.... .... .... ....

.... .... .... ....

د دووم وجود به نه وي په جهان کښې
د خپل ځان به شه پخپله خواب در کا
چې دا ملک د حق واحد قاهر غالب دی
دا دووم څوک چې دعوی ئې د کشور کا[۱]
کل حکمونه دیوه حکم به ګرځي
هر چې نن په دا جهان حکم هر هر کا
د عارف یوم الدین نن دی په نظر کښې
و جاهل ته به معلوم روح په حشر کا!
ای مخلصه نیک و بد په قیامت ګوره[۲]
چې له تا سره یې ذبه (کا) یا عمر کا
چې ئې غیري موجود نه وي په نظر کښې
موحد به د سرور په صف مختمر کا!

---

[۱] اص: د دووم څوک دي چه دعوی ئې دکشورک

[۲] اص: ای مخلص نیک و بد له حق روز قیامت کور

## در صفت ذکر خفی و بزرگی دل بیمثل دانکه صاحب دل کسے است که از دل بیمثل واقف باشد و حکمت و علم که ورثه نبی است

---

ترجمه : د خفي ذکر او د بېمثل زړهٔ د بزرګۍ په حقله - او دا چې د زړهٔ څښتن هغه دے چې د بېمثل زړهٔ نه واقف وي - حکمت او علم د نبيؐ ورثه ده -

---

پهٔ اخلاص هر څوک چې ذکر دوهاب کا
دغه ذکر به يې غوڅ له زړهٔ حجاب کا
خفي ذکر دے صيقل د زنګو زړونـــو
پهٔ صيقل به زړهٔ روښان لکه افتاب کا
تجلّي به د بې حد پرې باندې وشي
د عارف زړهٔ به بې حده لوے درياب کا
زړهٔ بې مثل لوئے درياب لانهايت وي
دا د غوښو زړهٔ پر زړهٔ چرې حساب کا
صاحب دل د لدارانِ لنِ دي پهٔ جهان کښې
حق يګان يګان د زړهٔ د ملک ارباب کا

چې بې مثل ذرۀ حاصل کا صاحب دل شي
صاحب دل ته کشاده د حکمت باب[۱] کا

تر دا لویه مرتبه په جهان نشته
چې يې ذرۀ لوح محفوظ ام الکتاب کا

چې همېش د زړۀ تخته کوري په ځیر
په نظر کښې به حاصل علم شتاب کا

که دېر لوښه نعمت کېږ دے وسرې ته
تر حکمت به ترې نور څه چې انتخاب کا

دانائي مې د نبي ورثه راغلے
دانایان به د نبي په لور مآب کا

دانا کس هغه سړے دے په جهان کښې
هر چې معرفت حاصل ئې له شتاب کا

نوښده لخته هر لور وته ځاروځي
په څوانئ ځائے یګانګي د زړۀ محراب کا

د توحید علم دې زده کاله کامله
چې فردا په قیامت ځان خلاص له عتاب کا

د توحید د مئ ساقي مرشد روښان دے
د مرشد په لاس دې نوش د غه شراب کا

---

[۱] اص : صاحب دل ته کشاده د حکیم ته باب کا

اے مخلصه پر نور مه عقل زایل شي
دغه مه سرې دانا اولوالالباب کا

---

## درصفت توکل وتسلیم وآنکه جمعیت درترک تعلق است وتعلق حجاب راه است

---

د توکل او د تسلیم پهقله - او داچې جمعیت د تعلق په پرېښودلو کښې دے او تعلق دلارې حجاب دے -

---

چې یقین ئې په رازق کا
دغه ذره ئې واثق کا
چې ئې توکل په خدائے شه
د دوستیه ئې لائق کا
چې تسلیم شه وخالق ته
دے بې نیاز له خلائق کا[۱]

---

[۱] اص : دی بې نیازش له خلائق ک

چې باور ئې په وعده شه
په مومن کښې ئې صادق کا
د ے غني شه په خاطر کښې
چې يقين ئې په خالق کا

--- --- --- ---

--- --- --- ---

جمعيت ئې د زړهٔ بيا مونده
چې ئې خلاص له علايق کا
تعلق حجاب ياد شوے
له حجابه ئې سابق کا
چې سابق شه له حجابه
د ے محرم د حقايق کا
چې محرم د حقيقت شه
له خاصانو ئې لاحق کا
چې پيوست شهٔ له خاصانو
و وصال ته ئې شائق کا
و مشتاق ته شها گوري
په رحمت ئې ځان فايق کا
پر مخلص شه مهربانه
ځان غدرا يار ئې وامق کا

# در صفت ذکر وفکر لا اله اِلاَّ اللّٰه و در صفت کامل ومکمل گوید .

## د ذکر او فکر، لا اله اِلا اللّٰه او د کامل اومکمِل پېژندله

چې دایم په ذکرفکر يې شاغل كړ
پرې اسان يې د جهان واړه مشكل كړ
چې په ذكر يې يقين شۀ بې ګمانه
معرفت د يګانګيه يې حاصل كړ
په يوه وجود موجود تمام عالم دے
په تلقين يقين يې غبرې كل باطن كړ
الا اللّٰه اثبات د هر اشياء محے شه
لا اله د جمله اشياء قايل كړ
چې له مرګه مخوا ومر بې ګمانه
د عاشق معشوق له ځان سره واصل كړ
چې په ترك وجود واصل شۀ له محبوبه
د اسربان يې په خاصانو كښې داخل كړ

چې دریاب وینې کامل عارف بنهٔ مرد دے[1]
چې دریاب شي له کامل نې مکمل کـهٔ
هر چې عارف دے پهٔ هر لوري دریاب گوري
د امواج لید ونے گوري پهٔ ساحل کـــهٔ
کهٔ عاقل یې د افتاب طلبگار وسه
داکثرت یې د وحدت دافتاب ظل کهٔ
چې آفتاب یې کا اختیار پر سایـه باندې
داادنی یې پهٔ دوه کونه لوے عاقل کهٔ
چې سایه یې دتوحید پهٔ نمر شوه محوه
سرتا پا یې دافتاب پهٔ نورشا کل کهٔ
قراري چې یې حاصله شوه مخلصه[2]
دا مسکین یې پهٔ فاضلو کښې فاضل کهٔ

---

## درصفت راه عشق وعلامت عاشق صادق در راه عشق۔

---

د عشق دلار او دصادق عاشق د علامت پحقله

---

[1] اص: چه دریاب وینې کامل عارف مرد دی

[2] اص: چه ی قراری حاصل شو مخلص

چې تر سره يې د اشنا ببيه پت کړ
په جهان کښې يې صاحب د لوی همت کړ
په ياری کښې د روغژن هغه باله شي
چې له ياره يې بېلتون په لږ زحمت کړ
وفادار عاشق هغه دی په جهان کښې
چې له دوسته يې قبول پر ځان محنت کړ
د عشق لار ده له بلا محنته جوړه
په دا لار کښې (يې) يکان يکان قامت کړ
د عاشق پر لار تهمت (او) ازمښت ډېر دی
دلداده عاشق اختيار بلا تهمت کړ
د دوستانو په قطار به يې داخل کا
صابري چې په بلا په مشقت کړ[1]
چې مقصد يې شي اعلی په دواړه کونه
پرې اسان يې کل بلا (او) ضرورت کړ

... ... ... ...

... ... ... ...

کل ګرانی پر هغه واړه اسانی شوې
چې نازل يې پر خاطر خپل محبت کړ
د دنيا توانګر يې واړه محتاجان دي
پر هغه چې يې عطا خپل معرفت کړ

---

[1] اص: چه صابری په بلا ......

چې د معرفت جلوه ئې باندې وکړه
دا عارف ئې سرفراز په خپل قربت کړه
چې اواز ئې د خپل دوست په غوږو ونغوت
په دوه کونه ئې حاصل لوئې سعادت کړه
چې منصب ئې د وصال بیا مونډ له دوسته
په عالم کښې ئې عظیم صاحب دولت کړه
دا واصل ویګانګۍ وته مشتاق دے
د امان د ارام ځائے پاس (ئې) وحدت کړه
چې له دوسته یګانګي ئې شوه حاصله
د اسرار په پټه پوهه ئې رفعت کړه
هر نښان د بې نښان نښان څرګند دے
بې نښان په هر نښان کښې مخ وریت کړه
د انسان وجود ئې لویه نښانه ده
په انسان کښې یې ظهور تمام صفت کړه
د انسان په لیده ئې حق یاد کړه مخلصه
په انسان کښې ئې د ذات صفات وسعت کړه

# فی المناجات

زهٔ ناپاک الود پهٔ ذم یم نن طبیعت غواړم لهٔ پاکه

حق صمد طبیب معصوم دے زهٔ عصمت غواړم لهٔ پاکه

دے قدیم عظیم دریاب دے کل عالم پردهٔ حباب دے

دے تطهیر دهر ناپاک شهٔ پاک صفت غواړم لهٔ پاکه

دے پاک کړونے د ناپاک دے د جمله اشیا پرې ژواک دے

چې پاک ذکر څوک پاک دي پاک رویت غواړم لهٔ پاکه

دے شنوا دانا بینا دے هم ګویا قادر توانا دے

چې یې و پېژاند سعید شهٔ سعادت غواړم لهٔ پاکه

دے خالق رازق رؤف دے پهٔ کرم رحم معروف دے

پهٔ رحمت یې عاصي پاک شي زهٔ رحمت غواړم لهٔ پاکه

پهٔ رحمت یې روح تازه شي ګنهګار پاک له بزه شي

پهٔ قدرت یې رنځور روغ شي زهٔ صحت غواړم لهٔ پاکه

دے معطي غفور خدا دے د رنځور د درد دوا دے

لوئے نعمت سلامتیا وي زهٔ نعمت غواړم لهٔ پاکه

پهٔ هر درد علت دانا دے پر صحت یې توانا دے

تر صحت دولت لوے نشته زهٔ دولت غواړم لهٔ پاکه

حق د دوو کونو مالک دے دا مخلص د دهٔ پالک دے

بنسهٔ دیوار د روح راحت دے نن راحت غواړم لهٔ پاکه

## در صفت کسیکه دل او بیدار باشد از خواب دزگاه بان پاس انفاس و دور باشد ازمردم غافل و بقضای حق راضی باشد .

---

دهغه چا په حقله چې زړهٔ يې دخوبه بېدار وي ، دساګانو نګهبان وي ، د غافلو خلقو نه لرې وي او دحق په قضا راضي وي -

---

هرچې زړهٔ يې دغفلت لهٔ خوابه جاګه
شيطان غل يې دباطن (د) ملک بېهاګه
سر تا پايه څرګ نورشي په باطن کښې
هرچې وسينې د محبت لهٔ اګه
چې دحق محبت نهٔ ورځي پر زړهٔ کښې
پهٔ عالم کښې دے څرګند شقي بنهاګه
کهٔ دعرش ولور ميدان (و) ته دې هوش دے
تهٔ پرې مهٔ بدده يو زمان دنفسه تاګه
پهٔ يوهٔ نفس به ورسې تر عرشه
دغه مزے دے دعرش پهٔ لنګرګ لاګه
بنهٔ اواز دشاه دبار دے په سرود کښې
--- --- - - - . . بې راګه
د ارواح دايمان زيان به ځني موي
د اغيار غافل صحبت به دے لهٔ ناګه

لهٔ غافله دنیا داره لرې کړځه
د مرداري حب به بیا موږي لهٔ کاکه
پهٔ قضا دحق راضي شه غاړه کښېږده
د قضا د لښکر نښتي ښه دي راکه
اوږ د امید پرې کړه لهٔ ځانه غره مهٔ شه
د ژوندون دمزي اوم سپنسي دي داکه
که رستم اسفندیار ئې خلاص به نشي
زور ور مرګے به تا وهي لهٔ مراکه
چې دې سر د ګور پهٔ خاورو کښې ورشینږي
پهٔ دنیا کښې څهٔ ښېوه کوي له پاکه
کهٔ ئې زړهٔ دحق پهٔ مینه مبتلا وي
پهٔ جهان کښې لبه نشته لهٔ پراکه
پرهر لور څه ئې رضا ده دروي ځغلي
چې دعشق مرکب ئې رانیولو راکه
د دنیا لهٔ اړه لهٔ کوښي تنها کړځي
چې د محبت خدنګ ئې پر زړهٔ لاکه
دمولٰی مینه الله پر زړهٔ نها لش دے
چې ئې ددین د دنیا حب لهٔ زړهٔ تیاکه
اے مخلصه دمولٰی عاشق هغه شي
هر چې بخت ئې له اودهٔ خوابه درځاکه

---

[1] اص : بخته

[2] اص : محبت

## دربیان تلقین پیر کامل و درحرمت غفلت ودربیان ذکرو ندای نفس وانکه انفاس مانند شاخهای درخت طوبیٰ است بهر خانه سایهٔ او رسیده است .

---

د کامل پیر د تلقین ، د غفلت د حرمت ، د ذکر او د نفس د ندا په حقله . او دا چې ساکاني د طوبیٰ داوني د شاخونو په شان دي چې سیوري یې هر کور ته رسېدلي دي .

---

چې په لاس يې د مرشد د تلقین سانګه
شیطان د یو به څنې تښتي په څو دانګه
دا نفس ... ... ... ...
زیان کار غوځ کړه (ددې لاپه توره) دانګه
چې د ترقه له (بنه) سوده دې جارباسي
دغه زړهٔ دے په ګوګل د ننه تپانګه
چې د معرفت عطا دربانـدې وکا
دهغهٔ مرشد کامل په خدمت دانګه

څو درست محوه پهٔ محیط دریاب کښی نهٔ شي
د پاکئ صفت به وانخلي له کانکه

زهٔ هغه یم هغه زهٔ به څنې واروي
کهٔ شنوا شي پهٔ هر دم ددم لهٔ بانګه

کل اعلی اسفل به وار ه درښکاره شي
تهٔ یوهٔ ځله دنفس پهٔ تمال وزانګه

پهٔ هر کور پهٔ هر مکان د ے رسید لے
دا نفس د ے دطوبي داوني څانګه

کهٔ عاشق یٔ ددیدار کوشش اختیار کړه
دهمت د مرکب زین تینګ کړه لهٔ تاسګه

کهٔ عاشق یٔ صبر نهٔ کړي پسي درومه
څویٔ وګوره اشیا برهنه نانګه

اے مخلصه د وحدت په ملک یکرنګ دے
دکثرت پهٔ ملک څرګند شه په هر سوانګه

---

حدیث نبوی : شر النفس اشد من شر الشیطان - ددروفای
عمر وجهان جهنده - آیت شریف : نحنُ اَقربُ اِلَیهِ مِنکُمْ

الواقعه ایت ۸۵ -

---

قدسي حديث: دنفس شر دشيطان دشر نه زيات دے،
او په منډه دتلونکي عمر او جهان پحقله.

---

پهٔ دالار کښې ویره ډېره کړه لهٔ ټګه
زیات لهٔ نوسه اماره بخیله سګه
لهٔ شیطانه د نوسک مکر تېرهٔ دے
د نوسک پهٔ ارزو ډېر تېر شو لهٔ مګه
لهٔ شیطانه سره لښ ډېر سر ئې جګ شي
ونوسک وته بې لاسه دي بې پګه
کهٔ نور څا سره احسان وکړې مطیع شي
مګر نوس چې پهٔ احسان کاندي ارګه
چې دهسي رنګ نادان پهٔ نغوته چار کا
پهٔ تمیز دانش کمتر دے لهٔ ګهګه
عاقبت به داجل لهٔ باده پرېوځي
دصورت داوږې ولیي دي السګه
لهٔ جهانه جهنده زړهٔ پستنه کړه
هيڅ وفا ئې بقائې مهٔ غواړه لهٔ جګه
په هيڅ لورحق به بیا نهٔ مومې بې ځانه
پهٔ طلب ئې کهٔ ډېرستړے شې لـهٔ تګه

نحن اقرب الیک پیغام وارد ه
حق په ذات صفات نزدې د له شهه رګه
اے مخلصه وحدت بحر کثرت څُک دے
که عارف ئې مشغول مه وسې له څُکه
که غواص د زړه د بحرئې غوټه کړه
بې بها دروته وکاږه له سټکه
ښه معنی د زړه په بحر کښې ګوهر دا
په جهان بهتر نور څه د زړه له ننګه

---

درصفت ذات بیچون که چندین لباس صفات را دربرکرده

وعارف درهر لباس شهه رامی شناسد .

---

د بیچون ذات په صفت کښې چې د صفاتو په ډېرو لباسونو کښې ملبوس دے او عارف شهه په هر لباس کښې پیژنی -

---

حق په ذات بیچون بې مثل دے بې رنګه
د صفات جامې یې واغوستې څو رنګه
که ئې خبر د کثرت په لباس پټ که
وعارفو ته ښکاره برمنډ ه ننګه

د خپل زړهٔ په آئینه کښې به یار ګورې
که په ذکر صافې بیا مومې لهٔ زنګه
چې خفي ذکر دوست نهٔ لري په زړهٔ کښې
د غافـل زړهٔ دے سیاه سخت دے لهٔ سنګه
د عارف چې د باطن سترګې بینا شوې
پرهـر لور ګورې محبوب لهٔ هره څنګه
لهٔ شیرینه ځانه تېر شه کهٔ عاشق یې
سـربازي هنر حاصل کړه لـهٔ پتنګه
په ثواب تر خنګ بهتر عبادت نشته
په جهان امر معروف بیه دے لهٔ جنګه
د ملکوتو په کتل کښې حاصل نشته
د مرشد په خدمت ودره لهٔ منګـه
د لاهوت په ملک به سیل (چرې) کړے نشي
په باطن یې (چې) د فکر پښه ده لنګه
چې د معرفت وسعت ورته څرګند شـهٔ
په نظر یې د دوو کونو عرصه تنګه
د(دې) زړهٔ د غون پرده به دې شي لرې
که د هو تسبیحات ونغوړې لهٔ چنګه
اے مخلصه یګانه یکرنګ یې ګورې
په ګمان دے ورک شوے له دورنګه

# في المناجات

تهٔ غني غریب نوازئې زهٔ غریب بېکس بې برګه
د سفر توښه مې نشته ډېر ویرېږم پس لهٔ مرګه

د دنیا پهٔ حب کښې بند یم زهٔ ګرفتار په زن فرزند یم
د طاعت شهپر مې نشته چې پرواز وکړم تر ارګه

مګر تهٔ مې پورته[1] بوځه د رته وایم د زړهٔ روځه
پهٔ عمل مې امید نشته چې ما درولي تر مرګه

ستا قبول دي بې علته تهٔ بې نیازئې لهٔ طاعته
د طاعت اونه مې خدایه بې مېوې مهٔ کړې بې برګه[2]

نوس شیطان پر زړهٔ کښې غلهٔ دې دیو دوارهٔ سرهٔ ملهٔ دي
پهٔ دایم مې زړهٔ وژغورې دایم ذکر د زړهٔ ترګه

لهٔ شیطانه مې زړهٔ ژغوره د شیطان وسواس له نوره
فلوس فکر د زړهٔ زوه د شیطان وسواس غنمرګه

هغه چې ډېر پوهیږي له نوس کښه به ویرېږي
د مخلص سا تند وے تهٔ ئې لهٔ نوسک سپره ګرګه

د کمزوري اسره تهٔ ئې د امان باړه ئې تهٔ ئې!
نوس بینی ه تهینګ تیرانداز ډېر چې زړې نهٔ لګي بې تخرګه

---

[1] اص : بوزی [2] اص : روزه

در صفت اشتیاق و بی ارام عاشق و انکه بیمار دل نشست و برخواست ازخلق جدا دارد وانکه هر چیزی بدله دارد و بغیر عمر عزیز که بی بدل است .

---

د اشتیاق او د بي ارام عاشق پهٔ صفت کښي - او داچي دناجوړه زړهٔ ناسته او پاسته د خلقونه بیله وي - او داچي هر څيز بدل لري بغیر د خوږ عمر چي بي بدله دے .

---

د عاشق د معشوقې پر لوري ځله
پر معشوق پسې عاشق دردمند بي کله
هیڅ ارام قرار يې نهٔ مومي لـهٔ درده
جدايي ده د مهجود پر زړهٔ کښي شوله
يو زمان يې په روغ دله ناسته نهٔ شي
د رنځور ناستې دايم لره وي بيله
صبر عقل يې لهٔ مخه تښتي ځغلي
چي پري ورشي د عشق د دریا چپله
د يقين پهٔ نور به ذات پهٔ هر لور ګوري
چي د عشق پهٔ اور دي نهري ګمان جله

وجه الله به په هر لور وینې مخ ورته
چې پوزره یې د عرفان ډیوه شوه بله

د وحدت ولوړ مقام ته به ورنشې
په باطن یې چې د فکر ښه ده شله

د زړۀ غوږ به په صفا مولی نشین کړې
کۀ د لا په جارو لرې کړې خزله

د دنیا طالبان ډېر دي په جهان کښې
د عقبیٰ طالب قلیل د حق اقله

چې خدای (محبت نۀ لري) په زړۀ کښې
په باطن کښې یې مخ توروي بډیره کلـه

د ښۀ خوی بوي به نۀ مومې کۀ باور کړې
دا دنیا دې په باطن گنده بغله

بې جذبې د حق وتل له تا محال دي
ډېر سرېښناک یې د دنیا بوختۀ دلدله

چې یې مینه په دنیا وي دنیا دار دے
کۀ خوراک یې نان جوین پوشاک کنبله

د هر خیش بدله به مومې په جهان کښې
خوب ژوندون دے په جهان کښې بې بدله

---

ۀ اص : بوښته

چې د ذکر چراغ نهٔ لري د وړاندې
پهٔ تیارهٔ شي ډېرښ پر لوړ ژور د ربله
معرفت پهٔ دا جهان د دیدار تخم
دا وینا فقیر وېلې ده څوځله
اے مخلصه پاکداران به کانده مومي
چې ئې نن ده پهٔ بار بار وریسې ځله

---

درصفت تلقین پیر کامل گوید وتجله روح وتصفیه دل از تلقین حاصل شود وتن جامه روح است .

---

د کامل پیر د تلقین پهٔ صفت کښې - او دا چې د روح تجلي او د زړهٔ تصفیه د تلقین نه حاصلیږي او تن د روح جامه ده .

---

پهٔ تمام یقین چې ورشي تر کامله
د تلقین بله ډېوه نکه حاصله

---

ﻟﻪ اص : فقر

ﻠﻪ اص : پاکدار

پهٔ د انور به ئې د زړهٔ غولے روښان شي
تلريکي به ئې لهٔ زړهٔ شي کل زائيله
چې تيارهٔ د بدګمان شي لهٔ زړهٔ لرې
تجله به د ارواح شي پرې نازله
روحاني محبوبه مخ ورته څرګند کا
ستا پهٔ څېر دے روحاني شاها شاکله
ستا صورت مثال جامه سکښتي پر دم دے
روحاني صورت ئې اغوستے دے قابيله
دو لطيف (محبوب) به وګورې په زړهٔ کښې
د کامل تلقين چراغ ګنه عاقله
اهينه د زړهٔ به پاکه کړې لهٔ زنګه
کهٔ مدام پهٔ ذکر فکر يې شاغله
د کامل دليل چراغ لره د وړاندې
حق باطل به کړې جدا له دلايله
چې پهٔ نغوته د مرشد ځې لار به مومې
بې دليله غلت درومې ناقابله
چې د حق طلب ئې پرښيو غېږې غواړې
دے کوردل حق جدا نهٔ کړه لهٔ باطله
پهٔ باطن کښې سترګې نه لرې کوردل دے
چې پهٔ دسې محبوبا ګرځې غافله

کهٔ عاشق یٔ موتوا قبل ان تموت شه
پهٔ یقین له مستـه شاه به شي واصله
لهٔ وصلته یکانګی وته کوشش کړه
یو زمان ګوره دبل زمان قاتله
کل عالم یوه تنه مولیٰ یٔ روح دے
پهٔ هر ځین کښې به احد ګورې فاعله
پهٔ باطن به یکانګي و در څر ګند یږي
هر موجود به یو وجود وینې فاضله
پهٔ هر چا به مهربان ترمور وپلارشې
کهٔ دې نوش کړه د وحدت پیاله سنګدله
اے مخلصه سکونت لره روان شه
د وحدت ګنج له ښترولره شامله
د مخلصانو لهٔ قطاره یې داخل که
چې عقبیٰ دنیا یٔ دواړه وبا زله

---

در مذمت دنیا و انکه هوای نفس مانند جال است و یګانګان
ازین جال خلاص یافته اند و انکه مستی دنیا از مستی شر (ازیاد) تر است
و انکه زنده ګانی چون آب است و صورت چون
غربال است .

د دنیا په مذمت کښې ، او داچې دنفس هوا د جال په مثال ده - یګانګان ددې جال نه خلاص شوي دي، او داچې د دنیا مستي د شرابو د مستۍ نه زیاته ده - او داچې ژوند داوبو په مثال دے او صورت د غلبېل .

---

پسو دېر ئې د دنیا بـد ه جنجاله
اهل الله له تا پر زړهٔ دېر دي ملاله
زیات عالم دې دهوا په جال بند ي کهٔ
په جهان کښې کوم څوک خلاص لهٔ دغه جاله
په عقبیٰ به ئې نصیب نشي لهٔ نعمته
هرچې غواړي په جهان کښې ستالهٔ ماله
جوانمردو په نکاح نهٔ کړه بد بویه
څکه پاتو په جهان شوه بکره زاله
دېر عالم ئې په مئ مست کهٔ بې خبر دي
دا دنیا مثال شراب شو هم کلاله
چې په دا مستیه مست شو نهٔ ویرېږي
بې پرواشي له عذاب هم له وباله
د دنیا مستي ستره ده له خمره
دا مستي کانده یګان سنبهاله

دا صورت مثال غلبیل څوندون اوبه دي
اوبه چرې ودرېږي له غربالـه
هر نفس درځخه درومي قرار نه کا
ددې عمر چلن واوره له کړیاله
عمر دې روځ په روځ کمېږي خبر نه ئې
ناګهان به مرګے درتښي کسیالـه
هر نفس لوے غنیمت کړه پکار شه
په دنیا کښې څوندون لږ وینم څوساله
د سفر د موت ساعت ئې څرګند نه کړه!!
هیڅ برنا پیر بې غمه نهٔ دے له زواله
لوے عاقل سړے هغه دے په جهان کښې
هر چې خلاص شي د دنیا له قیل قاله
عاقلان په دا جهان کښې فقیران دي
چې یې زړهٔ وابسته نهٔ وي له عیاله
په دنیا کښې به دوزګار په بې غمي کا
په حشر به زحیر نشي لـه سوالـه
اے مخلصه فقیران ترغنې وړاندې
په بهشت (کښې) به داخل شي پوس کاله
په معراج ترخپس وړاندي په بهشت کا
پیغمبر اذان ونغوډې له بلاله

---

له اص : وددړی

## درصفت بی وفای باغ و گلزار دنیا و انکه صحبت یاران غنیمت شمارد .

د دنیا د باغ او گلزار د بې وفایي په حقله ، او دا چې د یارانو صحبت غنیمت شمېرل پکار دي -

دا بلبل چې مینه د ېره کا لـه ګله
د خزان وېره ئې نه درومي له دله
چې همېش ئې په ګلزار باندې نعره ده
د خزان په غم نېولے وي بلبله
یو زمان دګل قربت پرې غنیمت دے
چې نابوده زمانه ئې ولیدله
چې دا هسې زر بېلتون شته په جهاکښې
محبان سره قربان شوي یو د بله
ښه یاران څه سره کښېني لله فی الله
دغه هسې ساعت پېښ شي کله کله
د ېر عالم مې کوت دنیا بې صرفه وخوړ
لږ عالم دے چې دنیا یې وخوارله
د دوو کونو حب دے نه پرېږدي پر زړه کښې
چې پر زړهٔ یې د حق مینه وکرله

هغه کس به د زاهدو په قطار شي
چې له زړه ئې د دنیا مینه شلوله
په دوه کونه کښې څولونه لذت کوم
د دین لذت لذیذ دے یو په سله
چې بې غم د ځان له غمه شي باور کړه
مسته شاه به ئې غم خواره شي یځپله
د مولی په د رنیستي یو سه مخلصه
یو باقي هستي به مومي تل تتله

هرکه سعید است از شنیدن پند ناصح ملول نشود وانکه شقی است از پند ناصحان ملول و تلخ کام شود .

هر هغه چې خوش قسمته دے . د ناصح د نصیحت په اوریدو سره خفه کیږي نه . او هغه څوک چې بدبخته وي د ناصحانو په پند خفه کیږي .

د فقیر خبره و نغوږه معقوله
د ناصح په نصیحت مه شه ملوله
د ناصح په نصیحت به سعید خوښ شي
د شقي پر ځان سخت تره وي له دوله

دحکمت ددنیا قدر په دانا دے
دحکمت قدر مه غواړه له جهوله
دا حکمت خیراً کثیر یاد په قرآن کښې
ددنیا دولت قلیل یاد دے معزوله
ددنیا دولت ورثه ده له فرعونه
دحکمت ورثه راغلے له رسوله
د قبطیو د فرعون ورثه (ده) خوښه
د سبطیو د موسیٰ ورثه قبوله
په دا دور د قبطي سبطي فرقې شته
د بېتانه سال، ځرګند دے له بې سوله
دحکمت دولت همېش درسره مل دے
ددنیا دولت اخر ووځي له موله
دا سړي په دانش بهشي په مخلوق کښې
له هر ځیز سره دحق هستي شموله
هیڅ عمل بې علمه نشي له سړیه
دا سړي څکه له علمه دي مسئوله
دتوحید دعلم سوال کا لېس له مړګه
د توحید له علمه مه ګرځه مجهوله
دتوحید د علم زده کړه له مرشده
موندہ نشي نه له فقه له وصوله

اے مخلصه شک له میانه (زړه) واخله
لهٔ مولی به یګانه شې بې حلوله[1]

# في المناجات

زهٔ عاجز بې دست ویایم تهٔ خبر زما له حاله
زهٔ لا حوله ولاقوت یم تهٔ توانایې ذوالجلاله
پهٔ هرچا دې دسترس دے کهٔ سیمرغ دے کهٔ مګس دے
تر تاپورې عاجز دے هم کهٔ عوج کافر دجاله
تهٔ بادشاه واخلې فقیر کړې هم فقیر زهیر امیر کړې
(هیڅ) دخاورو مجال نشته چې سوال وکاله کلاله
عالم خاوره تهٔ کلال یې زورور غني بې سوال یې
ټوک پوښتنه (هیڅ) کړې نشې چې توانګر کړې یا کنګاله
زورور واخلې کمزور کړې دکمزورې ښکو زور کړې
کهٔ سرے پرے فرښته دے کل وتا ته بې مجاله
هر چا ستا درګاه پناه دے کهٔ نېکخواه دے یا بدخواه دے
عاصي ستا رحمت عره کهٔ حق رحیم صاحب جماله

---

[1] اص : حالونه

هغه چار چې په چا نشي هغه ستا په قدرت وشي
چې آسمان زمکې ته کورم په نور چادے چار محالـه
ته له نيست وهست پيدا کړې هست موجود واخلې فنا کړې
رنځور روغ کړې روغ رنځور کړې ته قادر صاحب کماله
په دنيا کښې دې عزيز که په امزولي (دې) لــذين کــه
يو احسن صورت دې ورکړ ته احسن مه کړې بد حالـه
څپل نما نځلے څو سپک نه کا هسې کار کا فوترک نه کا
ته کريم رحيم حليم يې زه بنده يم بد افعـالـه
بنه له بدو بد له بنه کا ترخه ورکړې دارخـواږه کا
چې پخه ميوه وولې ميوه دکا نه ئ لـه دالــه
د وارو بنو کان ته يې که ماشه دے کــه رتيې
له تا بنه له بنده بد شي بنده زيات وي بدخصاله
چې بنده د نفس شهوت شه د حيوانو په صفت شه
زه حيوان ناطق يم خدايه ملک نه يمه اعماله
په قرآن کښې ضعيف ياد يم په دا رنگ يې هرکور بنا ديم
پر ضعيف قوي وجود يې زه ضعيف دره کا حـــالــه
ته کريم زه دې سايل يم په کرم دې د پر مايل يم
لوئے کرم دې صحت کورم راکړه لا ميـزالـه
دا مخلص رنځور بنکاره دے ذړه يې درست پارپاره دے
که يې ته علاج ونه کړې دې به تل کړې ملالـه

---

له اص : دا شعر پوره نشي لوستلے کيدے . اص : درد کار حاله

## دربیان انکه جمعیت دل در دوام ذکراست وانکه ذکر خفی مرہم وصحت دل مجروح وبیمار است

دداوي ذکر محقله چي دزړهٔ جمعیت او آرام دے - او داچي خفي ذکر دبیمار او زخمي زړهٔ مرهم اوصحت دے -

کهٔ پهٔ هر زمان خبر واخلي لهٔ دمه
جمعیت به د زړهٔ بیا موي اتمه
جمعیت دحق پهٔ ذکر بنبي دے قطي[1]
داخبره پهٔ قرآن کښي ده رقمه
داخفي ذکر صحت درنځور زړهٔ دے
پهٔ دوام ذکر زړهٔ خلاص کړه لهٔ المه
دحق ذکر دے مرهم دزړهٔ پرهار له
پرهار ژلے زړهٔ روغ نشي بې مرهمه

---

[1] اص : جمعیت دحق پهٔ ذکر کسیدي قطي

کۀ پر بده لاري دروي وربه نۀشي
دغه دم وحق ته لار وردرومي لسمه
او بې خدایه فکر واړه د زړۀ غم دے
په دوام ذکر زړۀ خلاص لره لۀ غمه
غافلان په غم اختر دي نۀ پوهیږي
پر ذاکر غفلت بتر تر جهنمه
لوے عذاب په ذاکر غیږي الله ښنه دہ
ذاکران په دایم ذکر دي خرمه
د خشکۍ د حیوان مرګ دے په دریاب کښې
پر ماهي باندې وتل مرګ وي لۀ یمه
د عارف بښیا خوښي د نمر په نور ده
د کور موش جاهل خوښي لۀ توره تمه
د بعید کانه بهره له سازه نشته
د دوست راز اوري سامع له زیروبمه

.... .... .... ....

.... .... .... ...

واصلان ویګانګۍ وته هوس کا
موحد یګانه خلاص د شک لۀ وهمه
چې په علم د توحید ئې باور وشۀ
هغه خلاص شۀ د بد شرک له لوے ذمه

هر عاصي يې پهٔ کرم خپل امید وار کـهٔ
مشرکان يې نا امید کړهٔ لــهٔ کـرمه
چې هستي دځان جدا کړي لهٔ حقـه
پهٔ خـفي شرک مبتلا دي نامحرمه
لهٔ خــفي شرکه به پاک خلاص شي مخلصه
چې يې څاڅکے له دریاب سره کهٔ ضمه

---

## بیان انکه بزبان حال و وصف نمودن حق تعالی ذات خود را و اظهار ساختن خود در مظاهر

---

په بیان دحال دڅېږي ، او دحق تعالیٰ دخپل ذات پهٔ صفاتو دنما تجلو او پهٔ مظاهرو کښې د اظهار پچقله -

---

کهٔ زهٔ مخ وخپل اشنا وته عریان کړم
د ذرهٔ غوله به يې نوراني میدان کړم
هر اشیا زما مظهر دے پهٔ هـر لوري
پهٔ هر څهٔ کښې به خپل مخ ورته عیان کړم

دیقین افتاب به هله ورڅرګنـــد شي
چې یې لرې لهٔ خاطره بدګمـان کړم
دیقین سترګې به ورکړم پهٔ باطن کښې
ننداره چې به یې دخپل ذات په ایقان کړم
چې د ذرهٔ پهٔ دید زما وذات نهٔ ګوري
پهٔ باطن به یې تر عرش کوسي کلان کړم
زهٔ اول اخر ظاهر باطن موجود یم
پهٔ ظاهر باطن به مخ ورته تابان کړم
پهٔ ظاهر باطن به ما ګوري پهٔ سترګو
چې هر ذرهٔ باندې چراغ بل د عرفان کړم
چې دمرګه مخوا ومري پهٔ جهـان کښې
خپل دیدن به ورڅرګند پهٔ دا جهان کړم
چې مخپله هستي نیست هست پهٔ مولیٰ شي
په هغهٔ به بقائي ورجاوېدان کړم
چې فنا في الله بقا بالله واصل شي
دا واصل به یګانه عارف سلطان کړم
یګانه چې قراري مومي لهٔ خواسته
د ساکن (به) په ایمان مزین ایمان کړم
چې د رُوح قراري وشي لـه جنبشه
دا عارف به پهٔ قطار د مسکینان کړم

---

له اص : چه می روح ....

سکونت به یې هاله وزړه ته ورشي
چې یې روح اولولالباب هم همه دان کړم
د تقوی وینا لازمه پر مسکین ده
چې ارواح یې پرقرارتن یې گردان کړم
دا مخلص د حق په داد ډیر هوسیږم
چې مرید یې د بازید مسکین روښان کړم

---

## درصفت جام وحدت ومستی او وقطره چون در دریا افتد دریا گردد.

د وحدت د جام او ددې د مستۍ په حقله، او دا چې قطره کله په دریاب کښې پرېوځي نو دریاب شي -

---

دیدار تو دیدم وجود همه یک شد
هر چیز که درکان نمک رفت نمک شد

---

کله چې مې ستا دیدار وکړ نو د هر څه یو وجود ښکاره شو. د مالګې په درنګ کښې چې کوم شے داخل شي هغه هم مالګه شي -

در معنی رباعی حقائق پناه ملا جامی رح

گر در دل تو گل گزرد گل باشی
در بلبل بے قرار بلبل باشی
تو جزو دلی و حق کل است روز چند
اندیشه کل پیشه کنی کل باشی

---

ترجمه :-

که چرې ستا په زړهٔ کښې د ګل خیال تېر شي نو ته به هم ګل شې او د بې قراره بلبل په زړهٔ کښې بلبل شې - ته جزو ئې او حق کل دے که ته څو ورځې د کل په خیال کښې مشغول شې نو ته به هم کل شې -

---

که دې نوش که د توحید له پاکه جامه
په مستۍ کښې به ځان شې ګورې غلامه
دغه جزو به ئې کل شي په یقین کښې
چې مشغول د کل په ذکر کښې دواسه
هر اشیاء چې د نمک په کان کښې پرېوځي
په څو وخته شي نمک په څو ایامه

د توحيد علم فرض شوے پر همه دے
هر سړے دي غاړه خلاصه کا لهٔ دامه
پهٔ هر چا به مهربان عدل به کا بندي
موحد د جهان سر تن يَ امامه
دا وحدت مثال او به کثرت پرې نجس
د غد نجس پهٔ څو رنګه پهٔ څو نامه
يو انسان ګوره ليده شي پهٔ جهان کښې
پهٔ صورت کهٔ سفيد پوست کهٔ سياه فامه
دا وحدت پهٔ مثال بيخ کثرت بناخونه
د يوهٔ ميوه پخه د بل خو خامه
څوک عليم خبير دانا شه په هستيه
څوک بې فهمه بې شعور کا له انامه
د چا زړهٔ يَ د يقين په نور ارام کـهٔ
څوک د شک پهٔ رنځ اختر دي بې آرامه
دا خاصان يَ داخص پهٔ توحيد بزرګ کړه
د خاصانو توحيد بېځ شي لهٔ عوامه
د مشرک وينا پريشانه ده مخلصه
موحد عارف بنکاره دے لهٔ کلامه

در صفت راه و رسم عارفان پس رسم ره عارفان چیست یعنی

هر کار بحضور حق تعالیٰ کردن است -

---

د عارفانو د لار او رسم بحقله ، د عارفانو لار
او رسم دا دے چې هغوي هر کار د حق تعالیٰ په
حضور سره کوي -

---

که خبر شې د عارفانو له رسومه
هره چاربه په حضور کوي معلومه
حق په هر زمان مکان موجود حضور دے
سوا الله دي د عارف له ذره معدومه
يو الطف کورم لطيف کثيف موجود شه
دے کثيف کوره لطيف کړي مکتومه
چې بدلې يخې او به کوري په ذات کښې
له دي دنيده دي غافل جاهل محرومه
عارفان يې عين موم وينې دراصل
که په دېر لونه صورت روغ کړي له مومه

پهٔ کثرت کښې چې څو لونه رنګ څرګند شهٔ
کل ظاهر شهٔ د وحدت لهٔ یوهٔ خومه
بې رنګي د کل رنګونو اصل خم دے
پهٔ څو رنګ ګیاه زرغون لهٔ د غر یومه
د توحید د علم یافت لهٔ پیر کامله
مونده‌ٔ نشي له هیئت رمل نجومه
کهٔ رانجهٔ د معنیٰ پورې کړې پر سترګو
کل مجاز به حقیقت ګورې مرقومه
که ذات بیني سترګې غوارم پهٔ عالم کښې
پهٔ جهان کښې تر دا نویه بخره کومه
یو یو د خاص الخاص په توحید پوه شه
د اخص توحید مهٔ غواړه له عموم[1]ه
چې ئې علم د توحید ځني حاصل کهٔ
دا مخلص ئې شهٔ خادم د وښان مخدومه

---

**دربیان انکه انسان مظهر وضع صانع است و علت غائی و خلیفه خدا است و بادشاه عالم جمله حشم اوست و انکه دیگر چیزهائ مظهر قدرت اند وانسان مظهر ذات وصفات حق تعالیٰ است۔**

---

[1] اص : غموم

د انسان په حقله چې د (حقیقي) صانع د صنع مظهر او د خدائے غائي علت او خلیفه دے او د عالم بادشاه دے او باقي جمله څیزونه یې خادمان دي او دا چې نور څیزونه د قدرت مظاهر دي او انسان د حق تعالیٰ د ذات او صفات مظهر دے -

---

ته داتا بینا گویا زه دې مظهر یم
ته چالاک هنري یاد زه دې هنر یم
ته صانع یې زه دې صنع په جهان کښې
ته کاتب زه کتابت ستا په دفتر یم
ته نقاش یې زه دې نقش یم په عالم کښې
ته غایب شوې بې اثر زه دې اثر یم
د اتمام عالم زما په سبب وشه
په معنیٰ کښې ته سحاب زه دې مطر یم
(د) ټولاک[1] معنیٰ دغه ده که پوهېږې
چې کلي عالم حشم زه یې داور یم
که د یگانگۍ دې ملک وته نظر کړې
د اتمام عالم یې تن شي زه یې سر یم

---

[1] اص : پولاک

پهٔ نور ځیز کښې د صفات علامت ګورم
زهٔ د ذات صفات مظهر د حق اظهر یم
خلیفه یُ پخپل ځائے کړم پهٔ جهان کښې
پهٔ مخلوق کښې پهٔ کرم د حق مهتر یم
د نور چائ د صفات معرفت ورکهٔ
زهٔ د ذات په معرفت ترکل بهتر یم
کهٔ حاصل د معرفت د ذات وُنهٔ کړم
پهٔ جهان کښې ترجمله حیوان بتر یم
نور عالم یُ کل زما د پاره وکه
نن زهٔ معرفت ذاتي لره فطر یم
کهٔ پهٔ ذات یُ اشنا نشم پهٔ جهان کښې
پهٔ اعا[1]تیب کښې لایق شو ے د سقر یم
دا سړے پهٔ سړي هوښ سړے بالهٔ شي
پر بله خوی کښې ډېر کهتر تر مودم دریم
د معاش په عقل هر زنده روزګار کا
د معاد پهٔ عقل ښه پهٔ درکشور یم
دا سړے بې تربیته سړے نهٔ شي
ځکه هر سړے محتاج د پیغمبر یم
د نبي وارثان تل دي پهٔ جهان کښې
یو پهٔ یو له[2] دي خبره زهٔ خبر یم

---

[1] اص : عتایق [2] اص : لدنیه

دنبي وارث چې بيا موندہ مخلصه
په تحقيق روښان صاحب زه يې نفر يم

---

دربيان علامت وارث الانبياء عليهم الصلوت والسلام۔ داگر

ازحق رنج وراحت رسد دربر حال رجوع بحق بايد

---

د انبياء عليهم الصلوٰت والسّلام د علامت په تحقله۔ که چرې
چا ته له حق له اړخه څهٔ رنج او راحت ورسي دوي په
هر حال کښې دحق په لور رجوع پکار ده۔

---

تعلق حجاب است بی حاصلے
چو پیوند ها بگسلے واصلے

---

ترجمه : دڅيزونو سره تعلق يو حجاب دے چې هيڅ حاصل
نهٔ لري کله چې پيوندونه ( حجابونه ) پرانزي
نو وصال به دې نصيب شي .

---

هغه کس چې علم بيا موند لهٔ عليمه
دنبي وارث هغه دے مستقيمه

دنبي علم فائده له چا نه مومي
دنبي علم بې نيان دے له تعليمه
دنبي له علمه نور څوک فائده مومي
دنبي علم مفيد دے له کريمه
هر عالم چي له کتابه فائده مند شه
دنبي وارث ئې مه بوله نديمه
دنبي د قومه حق بنبيل سنت دے
هم هر کار کا بې رجا بې خوفه بيمه
لله في الله عبادت کا په جهان کښي
دانښان د انبيا دے له قديمه
که له خدايه درد وغم وربانديي پيښ شه
هم وخدائے وته رجوع وکړي اثيمه
په هر حال تښته وخدائے وته بايد دي
که مومن ئې داپند واخله له حکيمه
دغه زړه دې د مولى حرم ياد شوے
ته په ذکر غيري دور کړه له حريمه
نور شيطان دي په درون کښي غليمان دي
د زړه تخت په دوام ژغوره له غليمه
ددنيا د اخرت مينه حجاب دے
د دووکونو حب پر زړه مه کړه مقيمه

دل بستګي په هیڅ اشیا مهٔ کړه مخلصه
دغه پند نصیحت واخله لهٔ نسیمه
تعلق حجاب یاد شوے راللهٔ هر څیزه)
محبت له هیچا مهٔ کړه بې رحیمه
پهٔ عمل علم غره مهٔ شه عالمه
پهٔ دا لار کښې خلاصے نشته بې تسلیمه

---

در بیان انکه عوارض سالک، وانکه نفس راه است وذکر چراغ راه است وتوکل بی غمی است.

---

د سالک د رنځونو پهٔ حقله - او دا چې نفس لار ده او ذکر د لارې چراغ دے او توکل ئې بې غمي ده -

---

زهٔ مرید د میا روښان د میا پر لار ځم
پهٔ توفیق د خپل مولیٰ پر لار استوار ځم
پر دا لار کښې غولان د پر مردم فریب دي
د مرشد پهٔ بدرقه لیل ونهار ځم

بد غولان دلاري نوس شيطان دنيا ده
له ما نعو عوارضو خبردار ځم
ځلودم عوارض غول خلق يا د شوي
له نا جنسو غافلانو پر كنار ځم
دا نفس گودم ثابت لاري وحق ته
پر دا لاري پاك ديدارته په تلوار ځم
دغه ذكر دے چراغ په توره شپه كښي
په دا نور به برابر په شپ تار ځم
هيڅ بلا فتنه په مخ راښكاره نه كا
كه په نغوته كښي دايم دخپل سالار ځم
چي مي كاروبار خپل وسپاره وحق ته
د دنيا له كاروباره اوس اوزگار ځم
چي د توكل عطا رابا ندي وشوه
د دنيا له غمه خلاص له دغه دار ځم
چي ئي ملك داخرت راته څرگند كه
د دنيا له فاني ملكه په فكار ځم
چي پټ گنج د قناعت مي په لاس كښيوت
په جهان كښي بي پرواه له دنيادار ځم
د شيطان دښمنه په لاس رانه رسيږي
كه پر لار د انبياء هوښيار بيدار ځم

بنهٔ یاران د لاری مله لره مخلصه
دیارانو پهٔ صحبت به تېز رفتار ځم

---

در صفت یقین که دست اویز مرید است وانکه دین

عارف توحید است۔

---

دیقین په حقله چې د مرید سند دے او دا چې د عارف
دین توحید دے۔

---

دست آویز به د کامل ته څېل یقین ورم
دا یقین به استوار سکه اسپړین ورم
چې یقین مې د کامل په تلقین وشهٔ
ځکه زړهٔ د معرفت پهٔ رنګ رنګین ورم
کهٔ بینائې وهر مخ وته نظر کړه
ن سیما د معرفت پر مخ جبین ورم
چې پهٔ هر ځنهٔ کښې هستې د مولې ګورم
پهٔ دنیا کښې زړهٔ فارغ لهٔ کبرو کین ورم

چې مرید د میا روښان شوم په عالم کښې
ځکه بخره په جهان لویه د دین ورم
د عارفو دین توحید دے په جهان کښې
ځکه زهٔ په کل ادیان کښې دا آمین ورم
چې دازق متین می بیا موند په عالم کښې
څه منت به د وزیر د سلاطین ورم
چې بې خدایه نورڅه نشته په دوه کونه
لهٔ کامله مکمله دا یقین ورم
هیڅ په کاتب کاتبی به منعه مائل نشم
د روښان تلقین پر زړهٔ خاتم نگین ورم
چې د روح له معرفته خبر دار شوم
د غه روح په مثال لاس صورت استین ورم
عبب (ړی) واره د یقین په دین لیدهٔ شي
دا مخلص په زړهٔ یقین استوار متین ورم

---

ایت کریمه : وَلَقَدْ كَرَّمْنَا بَنِيْٓ اٰدَمَ (بني اسرائیل ایت ۷۰)

لَقَدْ خَلَقْنَا الْاِنْسَانَ فِيْٓ اَحْسَنِ تَقْوِيْمٍ ه (التین ایت ٤)

---

له اص : معطل

ترجمه :- او موږ بنیادم ته عزت ورکړے دے (بني اسرائیل ایت)
موږ انسان په ډېر ښکلي صورت کښې پيدا کړے دے
(التين - ايت ۴)

---

د مولى د کرم شرحه به بنا کړم
چې يې ژبه په خوله گويا په زړه دانا کړم
په مخلوق کښې يې بهتر کړم په جهان کښې
په دوو سترگو يې بينا په غوږ شنوا کړم
په خپل خواست يې کړم مريد د صاحب خواست شوم
هم خپل روح يې حيات قوي توانا کړم
نوراني عقل يې چراغ راکړ په سر کښې
په دا نور يې په خپل ذات بينا آشنا کړم
لاس وپښې يې په صورت خادمان راکړ
شکرانه د خپل خالق بېگاه صبا کړم
بنه قرآن يې ميراث راکه په عالم کښې
هم دانا يې په تاثير د هر اسما کړم
هم في احسن التقويم ياد په قرآن کښې
په جهان کښې يې تر هر مخلوق زيبا کړم
کل حيوان راته عاجز فرمان بردار شو
چې له خپله دانايه يې دانا کړم

---

له اص : خادم

هر اشیاء چې تر ما راشي لار بیا مومي
په جهان کښې یې دهرځینې راهنما کړم

دا جهان توره تیاره ده په معنیٰ کښې
ددې هسې لوړې شې یې زهٔ ضیا کړم

د حضرت له نوره هر وجود موجود شه
کل عالم زما پس زهٔ یې آبا کړم

کهٔ یې نور آشیا دحال په ژبه ستائي
دا انسان یې په فصیح زبان ګویا کړم

شکرانه به یې په ځائې نهٔ کړم مخلصه
کهٔ یې شکر پهٔ هر دم خلا مــلا کړم

---

در صفت دایم ذکر بدم و آنکه رهبر است بسوی ذاتِ قدیم
و دم نم بحر محیط است

---

پهٔ دم سره ددایمي ذکر بحث له - او دا چې دم د قدیم
ذات پهٔ لوري رهبر دے، او دم د محیط بحر نم دے -

---

ے اص : هنیا

چې مشغول په دایم ذکر شي په دم
دغه دم به ئې رهبر شي تر قدم
که د دیو او بو سرحد پسې وغواړې
دغه دم دے د محیط دریاب به زیم
هر اشیا په دهٔ زنده نشو ونما دے
و هر چا ته رسیږي دغه نم
دغه نو دریاب چې راځکوي وځان ته
هغه ځینې دروي پر لوري د عدم
بنیادل ماهي دریاب په هر لور ګوري
لهٔ کوردله ماهي پټ د ژوندون یم
زیات عالم لهٔ دغه بحر نا محرم دے
په دا بحر دي یکان یکان محرم
یو زمان به له دیداره فارغ نهٔ وي
چې ئې فهم په دریاب وي دم په دم
تر ژوندون ځهٔ خوارهٔ نشته په جهان کښې
دے ژوندون د هر حیوان هم دادم
کشکے قدر د ژوندون په چا ځرګند وي
په ژوندون به وسیږل خوشحال خورم
د دنیا غم به ئې ندو روست وزړهٔ ته
تر هر څهٔ عظیم دخپل ژوندون ماتم
کهٔ هر څو خوار و زهیر وي په دنیا کښې
د دنیا محنت تر مرګ پورې دے کم

ددې دم قدم به هله ورڅرګند[1] شي
چې دادم ورڅخه[2] درومي په آن دم

داوجو قدر به هله وربنکاره شي
که ماهي پاس په خشکۍ کښې شوې قدم

له بې حده بحره څوک وتې نه شي
چې معلوم کا د بې مثله لوے حرم

ګـه حاضر ګهې غایب شوے له سرېو
به يې وکوت دا محیط له هر چا ضم

چې بې چون بې مثله بحر ورڅرګند شه
پر مخلص ؤ د مسکین روښان کرم

حقیقت ده اشیا به پکښې ګوري
چې یې ذره شه په باطن کښې جام دجم

---

انکه ذکر بادم .... بیان است بسوی بلندی عرش و انکه ادم
هم ساجد وہم مسجود ساجد مرحق راست ومسجود مر غیررا

---

[1] اص : ددې دم قدم ربه حاله ....

[2] اص : دخه

د دم د ذکر په مقله چې د عرش په لور ختل دي - او دا چې آدم
هم ساجد دے هم مسجود - ساجد د حق او مسجود د غیر

جان بلندی داشت تن پستی خاک
مجتمع شد خاک پست جان پاک
چون بلند و پست با هم یار شد
آدمی اعجوبهٔ اسرار شد

ترجمه :- روح د بالا عالم سره تعلق لري او تن د
سفلي عالم سره - پاک روح د سفلي عالم سره یو
شو - هر کله چې بالا او پست سره یو شو نو آدم
د اسرارو یوه عجوبه شوه -

نن به خواست زهٔ د معبود کړم
د زړهٔ خواست به ورکشود کړم
دے حکیم د خوږ و زړونو
رنځ د زړهٔ به پرې اسود کړم
د حق یاد د زړهٔ فرحت دے
محزون زړهٔ به پرې خشنود کړم

پهٔ دم ذکر پیتکے دے
زهٔ به عرش وته صعود کړم
روح عرشي صورت فرشي دے
پهٔ فرشي کښې یې موجود کړم
زهٔ مرغه د لامکان وم
پهٔ مکان کښې یې ورود کړم
د قدرت سحر دې گورم
پهٔ قفس کښې یې نمود کړم

خلیفه یې کړم پهٔ زمکه
هم ساجد هم یې مسجود کړم
حق مسجود کړم د هر شیبه
او ساجد یې د خپل وجود کړم
چې پسرو د پیر کامل شوم
پهٔ عالم کښې یې مسعود کړم
پهٔ ازل سعادت مند وَم
پهٔ اسلام کښې یې مولود کړم

# في المناجات

ته غني بادشاه کریم يې زه وتاته دعا کړم
دا ستا ذات محیط په کل دے زه به ستا د ذات ثنا کړم
دا ستا ذات عظیم دریاب دے جاري شوے په هر باب دے
چې د زړه سترګې دې راکړې په پټ بحر دې بینا کړم
چې دا ستا پرې کرم نه وي ستا پر ذات به محرم نه وي
دا دې عین لوے کرم دے چې پخپل ذات (ردې) دانا کړم
تاکرم پر ما ډېر کړې (هر) څوک (تا دې) د سر کړې
دا ستا ورکړه بې منت ده ځکه خواست دایم له تا کړم
که د وه ورځې له چا خواست کړم خپل عزت به کم و کاست کړم
له سائله ملول نه یې ځکه خواست له تا خدا کړم
زه راغلے یم له تا نه حضوري غواړم سلطانه
د مومن راحت دیدار شه له تا خواست زه د بقا کړم
زه غایب کېږې حاضر شم که غافل کېږې ها در شم
زه ضعیف عارض مې ډېر دے ځکه تا ته التجا کړم
عوارض نوس شیطان دي د دنیا خلق بد دوان دي
مګر ستا کرم مې خلاص کا زه يې کېر بېګاه سبا کړم
زه عاجز د نوس له لاسه درمانده یم له خناسه
د عاجزو دستګیر يې زه که نوس شیطان ترپیا کړم

نوس دنیا رایا دوینه بد شیطان می ورلیږینه
یو ذاتي محبت راکړه چې پرې وهم[1] دنیا عقبا کړم
دنیا عقبیٰ دواړه حجاب دے ما لوستلي په کتاب دے
وخپل حب محبت راکړه چې بې تا پرې پر پو فنا کړم
د مخلص په خواست شنوایی ئے بیمار ته یې دوایی
د هر درد دوا در تخنه[2] حکه خواست زه د شفا کړم
رنځ ظاهر باطن یاد شوے ستا په دم وارۀ یاد شوے
خپل دم رابا ندې پو کړه په دا دم به رنځ هبا کړم

---

درصفت ذات بیچون و بیچگون و انکه حق تعالیٰ بذات وصفات محیط است بعالم وانکه صفات از ذات منفک نمی شود وانکه مکان لطیف (در) کثیف ومکان الطف در لطیف است .

---

[1] اص : ومیں
[2] اص : دردخر

دبېچون او بېچګون ذات په صفت کښې - او داچې
حق تعالیٰ په عالم په ذات او صفات سره موجود دے - او
داچې صفات د ذات نه جدا کېدے نشي - او داچې د لطیف
مکان په کثیف کښې دے او د الطف مکان په لطیف کښې
دے -

---

په پښتو صفت به وایم لهٔ بېچونه
دے لطیف بې مثله ذات بې نمونه
د دهٔ ذات دے لامکان مکان ئې نشته
بې جهت عظیم دریاب دے بېچګونه
حد پایان ئې په شپږ لوري مونده نشي
هم محیط په کل اشیاء دے دیګر ګونه
نحن اقرب الیک خبر وارو ه[1]
دے محیط په هر اندام دے په رګونه
حق په ذات صفات محیط په کل اشیاء دے
تل له ذاته نهٔ بیلیږي صفتونه
کهٔ د نمر شعاع پر ځمکه وغوړیږي
هیڅ بېلتون لهٔ نمره نهٔ کا په ملکونه

---

[1] وَنَحْنُ اَقْرَبُ اِلَيْهِ مِنْكُمْ وَلٰكِنْ لَّا تُبْصِرُوْنَ

الواقعة ایت ۸۵

نهٔ خارج نهٔ داخل یاد دے پهٔ عالم کښې
لکه روح هسې محیط په عالمونه
روح داخل نهٔ خارج یاد دے په صورت کښې
روح محیط دے پهٔ وښته هم پهٔ نکونه
دے تر ځان دځان نزدې یاد پهٔ حدیث کښې
حق صفت د جان لرې پر زړونه
دے الطف دے پهٔ لطیف کښې ئې ځائے وکه
حق الطف زړهٔ لطیف یاد پهٔ کتابونه
دا لطیف زړهٔ پهٔ کثیف تن کښې محیط شهٔ
هر یو کا پخپل مکان کښې دوزکاروونه
پهٔ کثیف کښې دلطیف مکان لیده شي
پهٔ لطیف کښې د الطف وي مقامونه
پهٔ خاورو کښې مکان د اوبو کوردم
پهٔ اوبو کښې دهوا دي بازارونه
پهٔ هوا کښې نور مکان لري الطف دے
کهٔ د پیر پهٔ خدمت رسي پهٔ کالونه
دغه علم به بې ذوقه حاصل نهٔ کړي
څو مزه دي په حلقوم نشي درونه
د شکرې پهٔ وېل خوله خوږه نهٔ شي
بې له دو به اشنا نشي پهٔ ذاتونه

که د ذرهٔ سترګې حاصل کړي لهٔ کامله
پهٔ دا سترګو به حق ګوري لهٔ بطونه
اشنائي به دي روزي شي بې ګمانه
د مخلص پهٔ ځتېن کهٔ مومي یقینونه

---

## دربیان معنیٰ این ایته کریمه : وَاعْبُدْ رَبَّكَ حَتّٰى يَأْتِيَكَ الْيَقِيْنُ ۝ الحجر ایت ۹۹

---

ددې ایت کریمه پهٔ معنیٰ کښې چې "ترهغې دخپل رب عبادت کوهٔ چې یقین ته ورسېږې ."

---

کهٔ ته ورشې د یقین ترسر زمینه
عبادت به دې پوره شي لهٔ یقینه
د یقین صاحب هغه دے پهٔ جهان کښې
چې به ئې مرتبه حاصله شي تمکینه
د تلوین اهل دې لري لهٔ باوره
د تمکین تښتن ته شوي لهٔ تلوینه
د تمکین تښتن طاعت کا پهٔ تصدیع
د طاعت تکلیف ساقط شي لهٔ مسکینه

پهٔ صورت کا عبادت روح ئې آزاد وي
د مسکین روح پهٔ خدایي صفت[1] متینه
د مسکین ارواح آزاد لهٔ تلو راتلو دے
نهٔ کښېنې نهٔ ودرېږي نه څه خورینه
د مسکین ارواح آزاد لهٔ تلو راتلو دے
کل د جسم صفت محوه لـهٔ امینه
امین روح اضافي عظیم دریاب دے
پاک لهٔ جسم لهٔ اتصال هم لهٔ ایینه
د صورت خوي د بنده بندګي کاندي
خلاص به نهٔ شي لهٔ بندګیه څوومرینه
د صورت دے عبادت تر مرګه پوري
پهٔ مرګي لـهٔ عـبادته ازاد شینه
د ارواح یقین لهٔ حقه یـګانګي ده
د صورت یقین مرګ یاد له موسلینه
د صورت لهٔ عبادته روح ازاد شي
د صورت کار پهٔ صورت باندې بنایینـه
چې صورت پهٔ بندګي کښېناسي دانا دے
د صورت پهٔ بندګۍ روح فلاح مومینه
چې د تن پهٔ عبادت کښې ئې روح خلاص شه
د مخلص پهٔ عبادت ده دېـره مینه

---

[1] لهٔ "تخلقوا باخلاق الله" ته اشاره ده

نیک بختان به د کامل خبره نغوږي
کم بختان به دهوا وینا نغوږینه
د کامل متابعت به هغه کاندي
چې یې بخت نن له اوده خوب ویښوینه
چې د نوس هوا دے خدائے کښې ملحد دے
د کاملو مرتبه ورځنه څینه

---

بدانکه صورت انسان باغی است درچمن او گلهای صفتهای ذاتیه ظاهر شده اند وانکه مظهر است که ذات وصفات حق دروی تجلہ نموده اند -

---

د انسان صورت په چمن کښې یو بهار دے او ذات د صفتونو دگلونو په څیر ښکاره شوے دے - او داچې د (انسان صورت) مظهر دے دحق ذات اوصفات په ده کښې تجلي لري -

---

د انسان مخ (یې) ښائسته دے لهٔ گلشنه
ذاتي گل یې نمودار دے لهٔ گلبنه

د انسان د مخ چمن ګویا شنواد ے
هم بنیا بویا دانا له هره فنه
هر اندام یې د ګلونو په دود زیب کا
سرتر پایه ښائسته دے له چمنه
دواړه زلفې یې سنبل سترګې نرګس دي
د نرګس سترګې ړندې دي له دید نه
د سنبل خوشبویي چرې ده په ذات کښې
د محبوب زلفې خوشبویه له یاسمنه
که سوسن د ے سرتر پایه خره ژبې
هیڅ ګفتار کلام مه غواړه له سوسنه
د انسان د قد تمثیل د سهي سروه
د شمشاد د سروې قد شه له رفتنه
د انسان او نه په ناز په ښیوه دروي
تو ولاړې زیب (یې) زیات شي له چلنه
د اشنا سره زندان عین بوستان وي
بې اشنا چمن بتر وي له ګلخنه
د هر خیز له خپله جنسه سره مینه
په جهان کښې بنه ملک نشته له وطنه
تر مهتاب نوراني خیز په جهان نشته
هیڅ الفت ورسره نشي بې سخنه

---

له اص : به

هر اندام د انسان نور روغ لهٔ حکمته
د کلام میوه یې دړې لـهٔ دهنـه
د انسان وجود د حق مظهر یاد شـوے
د حق ذات پکښې ظاهر دے مبرهنه
حق پهٔ خپل صورت رغ کړے پهٔ دوه لاسه
د رسول خبره نـهٔ ده دروغـژنه
د انسان پهٔ لیدهٔ حق یاد کړه مخلصه
پهٔ انسان کښې تجله د حق روشنـه

---

در بیان احوال جهان که رنج و راحتش بریک قرار نیست
بیت :

شاد برانم که درین دیر تنگ
شادی و غم هر دو ندارد درنگ

---

ددې جهان د رنج او راحت پحقله چې پهٔ یو حال نهٔ وي.
د بیت ترجمه :

خوشحاله پهٔ دې یم چې پهٔ دې لنډ وخت
او زمانه کښې غم او بنادي څـه قـرار نهٔ
لـري .

---

بیت: بایزید بہ زبان ہندوی فرمودہ است

سچا بول بایزید کا جو بیناوی کوئی
چو مرن پہر پہلے وی پر نہ مری سوئی

---

ترجمه: ددې شعر مطلب په پوره باورسره بیانولے نشم خو بیا هم ماچې ترې کوم مطلب واخست هغه څۀ پړدارنګ دے
"د بایزید د ښتونې وېنا د هدایت یوه لار ښائي. هرکله چې مرګ شته نو بیا په حقه لار مرګ پکار دے"

---

دا جهان په یوۀ حال نۀ وي مزېن
په بهار پسې ئې زرخـزان کا تېن
د دنیا خوارې تیارۀ راحت برېښنا ده
بقایې د دوارو نۀ وي زمانېن
ګټه محنت کښې راحت په سرې پرېښې شي
د دوران رنځ وراحت دي قـد مېن

---

ګوان تکی او معنی: کوئی : لار
سوئی SIDE - PATHE . TOWARDS (هرانګ)

د جهان په ښه او بد زړه ښه بد مه کړه
په عالم کښې کېږي روح شي ګېږي ربن
بقا ئي د رنځ راحت په جهان نشته
په هر حال کښې زړه خوشحال لره په جبن
د ازل قسمت به و جار ېږي نه شي
فريدون که کيقباد يا ذوالقرنين
چې راضي شي په قضا راحت (ئې) بيا موند
خوښ به وسي په هر حال کښې في الدارين
دا ژوندون په سړي قرض د مولا پور دے
په رضا يا بې رضا به واخلي دَين
که يو ځله موتوا قبل ان تموت شي
په جهان کښې به بيا نه مري کسرتين
پس له مرګه د مولا ديدن برحق دے
حق موجود به قطعي وګوري په عين
چې په مرګ معنوي ومري وُبه ويني
چې موجود بې خدايه نشته په کونين
حق پر هر لوري حاضر عارف ئې ګوري
ځکه نمونځ کړے رسول په قبلتين
دے دے اَينَمَا تُوَلُّوا په قرآن کښې
په يو لوري سې مه ګوره معين

د حق ذات به په هر لوري کتے نهٔ شي
ته یقین د سترګو نه کړې قرتین
اے مخلصه حق ظاهر باطن موجود دے
په یقین ګوره باطن ظاهر په نښن

# في المناجات

زهٔ به خواست کوم لهٔ تانه اے د دوو کونو سلطانه
ته غني هر څهٔ دې ډېر دي په سایل يُ مهربانه
لویُ صفت بخشنده ګي ده د کرم پاشندګي ده
لویُ کرم د ګناه عفوه ګناه عفوه کړه لهٔ مانه
بنهٔ صفت (دې) عیب پوشي ده د ګناه فراموشي ده
دا صفت دواړه پهٔ تا کښې ته ستار غفور رحمانه
تهٔ حلیم هم بردبار يُ پرده پوش صاحب ستار يُ
ډېر ګناه د بنده ګورې پهٔ کرم يُ کړې نهانه
زهٔ امید دا ستاپهٔ لوړ کرم که ذرهٔ جمع کښې خور کړم
ستا کرم بندهٔ ذرهٔ ورکړهٔ نهٔ وینې له عصیانه

چې تښتي ئې بوده بارده دے دهغه مريے بدكارده دے
چې تښتي ئې به كا عفوه كه زه ډيره وكړم وړانه
ته اَرْحَمُ الرَّاحِمِيْن ئې هم ته رب العالمين ئې
د مربوب اميد په رب دے كه بدكار دے بد زبانه
ته خالق ئې زه مخلوق يم ته رازق ئې زه مرزوق يم
قادر رحم پر ما كړے په تا نذر يم بد گمانه
ځان عاصي گناه كار بولم تا غفار نيكو كار بولم
له ښو ښه له بد و بد شي كل بدي گڼم له ځانه
چې گناه ځيل پر زړه ياد كړم د زنځور په دود فرياد كړم
ستا رحمت ئې دستگير شي چې هر كور شي نا توانه
لا تقنطوا[1] مې زړه خوشحال كا چې گناه ئې ډېر ملال كا
ستا رحمت تو مهر زيات دے په دا زيري يم شادمانه
تر بدكار بل نشته هم تر تا غفار بل نشته
ستا رحمت ځيل گناه تول كړم چې كوم د روندشي له ميزانه

---

[1] لَا تَقْنَطُوْا مِنْ رَّحْمَةِ اللّٰهِ ط اِنَّ اللّٰهَ يَغْفِرُ الذُّنُوْبَ جَمِيْعًا ط اِنَّهٗ هُوَ الْغَفُوْرُ الرَّحِيْمُ ه (زمر ايت ۵۲)
د الله تعالىٰ د رحمت نه مايوسه كېږئ مه. بېشكه الله تعالىٰ به ستاسو ټول گناهونه معاف كړي بېشكه هغه ډېر زيات بخښونكے دے.

کهٔ بې هر څو کتاه په پرده کښې ستا رحمت ږور باندې تېر شه دے
کهٔ هر څو دې زمکه پلنه لويه نه ده له[1] اسمانه

---

در صفت اب دریاے محیط مرکه شوی اهل نساء را شیوهٔ
ازجامه وزیورات وانکه حق تعالی ارواح باٰمه کرد
رزق داده است ـ

---

ترجمه: د محيط درياب داوبو پهٔ صفت کښې ـ
څوک چې د نساء يعنې د ښځو د قبيلې نه شو نود
هغوی شېوه د جامو اوکالو نه شوه ـ او دا چې حق تعالی
روحونه د انسانانو سره کړهٔ نو رزق ئې ورسره ورکړے دے.

---

کهٔ پهٔ دهٔ ځښې د محيط اوبه رښې
او د ذکر په صافې ئې و چښې

---

له اص: ښير

کهٔ دغ اوبهٔ د زړهٔ په پټي پرېږدي
پرې تازه به کړي د زړهٔ د باغ منېږي
د زړهٔ شولې په دې تل تروتازه وي
کهٔ د ذکر پهٔ اوبه يې کړې پېېږي
پهٔ دا آب به د حکمت اوبه وزيږي
د زړګي د باغ درخت به شي ګڼېږي
د اوبو له نوره هر ګياه زرغون شي
پر زمين کهٔ ګندم جوړي يا چڼې
کهٔ يې حل درياب د زړهٔ پهٔ دين وکوري
درست جهان به پکښې کم حباب ګڼې
عارفان د معرفت پهٔ نور ښېبوره کا
د نساء ښبوره لباس د ے کېږي
د رزق غم پهٔ جهان مهٔ خوره څوړوندے يې
دغه روح مولیٰ د ذکر پهٔ کېږي
اے طالبه اندېښنې له ذکره تښتي
پرهر لور حي لکه باد پر مخ بڼي
د قيامت پهٔ روحٔ به ډېر لونه فرقې وي
څوک بينا څني ړندې څني ګڼېږي!!
اے مخلصه دا احوال حق در څر ګند کړي
پهٔ حشر به تهٔ لهٔ چا سره بڼي

---

## دربیان مذمت بیوفائی معشوقی دنیا وترک دادن امل دراز ۔

---

د دنیا د معشوقې د بې وفایۍ او د امل دراز او بد د امېد) په غند نه کښې .

---

مینه مه کړه (په دنیا بانډې) پُرانها
اے د دین په کار بهوله د دنیا سیانه
دغه عقل د دې جهل نه پوهېږي
چې دهسې بې وفا کړه پوړي پانه
ملګري له هیچا نه کا بېوفا ده
په تش لاس ځنې دوان شو راجا رانه
د دنیا دولت د خوب دولت یاد شوے
ته د خوب په دولت مه نازه انجانه
په عالم کښې مسافر سړے یاد شوے
مسافر په لاره نه کا تانه بانه
چې د کوچ ساعت وقت معین نه دے
له بارګیرو کوزه نه لري پلانه

---

ے اص : ملرے

د سړي امېد که اوږ د نهٔ وي پر ذره کښې
پر دا زمکه به چا نهٔ کرلې دانه
اوږ د امېد غفلت سړي ړانده کا نهٔ کړه
پهٔ دنیا کښې یې ووځي د بلبنې تانه
اے عاقله د قیامت پهٔ فکر اوسه
د دنیا اندېښنې دواړه پهٔ دوځ جانه
د مولا پهٔ در خالص طاعت قبلیږي
کهٔ ئې نن دوځې مېده کړي که ئې وانه
اے مخلصه د مسکین بانه وغواړه
د قیامت په دوځ به ډېره وینې تانه

---

وعارف در هر لباس شه را شناسد
مرد باید تا که باشد شه شناس
ناشناسد شاه را در هر لباس

عارف په هر لباس کښې شه پېژني ، سړي له پکار دي چې شه شناس وي . چې پهٔ هر لباس کښې شاه پېژني .

## و در مذمت محبت دنیا و مدح محبت روحانی میفرد ماید

او د دنیایي مینې په غندنه او د روحاني مینې
په مدح کښې .

---

د کثرت د باغ درخت هر کوره کښې
بې عدده بې حسابه کښې کښې
د ے احد عدد جامه کړه په څو رنګه
رنګ په رنګ جامې اغوستې دي جو کښې
عارفان به ئې غلط نهٔ کا په قطې
په رانجه ئې د عرفان سترګې انجښې
زیات بې یاره روزګار کاندي په جهان کښې
د دنیا په ملک کښې لږ دي سها کښې
حقاني مینه د روحاني محبوب د ے
د دنیا مینه ده عیني د ماکښې

روحاني محبوب وفا لري پر ذره کښې
بې وفا لباسي مینه د پښتنې
بې وفایئ[1] له عاشقان کا بې وفا دي
که هر څو یې په یار تل بولي سجني
ګهه غمژن ګهې خوشحال کا په دنیا کښې
دا دنیا په نیا وار کاندي کوتني
چې وفا مهرئ نشته په خاطر کښې
عاشقان ورته لیده واي جیوني
په وصال یې لږ د ور څو ذره خوشحال کړه
په هجران د بېچاره درون وسکني
اشنائي دې تر اخره پوره نه وي
بې وفایي د دنیا د باغ مالني
چې منبن شي په تا باندې بخل سپېشي
ته ورمه شي په ازل یې بده بښکني
هر چې ته یې په نکاح کړې تنها خوارشي
په نکاح د هیچا کس مه ووځې بانني

---

[1] اص : وفای

در بیان انکه هرکه بگشت بذکر حق تعالیٰ حصهٔ حکمت دو چند بدهد و انکه دولت حکمت را در قرآن خیراً کثیراً یاد فرموده است وانکه دولتِ حکمت باقیست و دولت دنیا فانی است و در معنیٰ حدیث ز المؤمن اخوة ایضاً . المومن کنفسٍ واحدٍ یعنی مومنان برادران اند .

---

هر هغه چې په ذکر مشغول شو حق تعالیٰ هغهٔ ته دحکمت دوه دونه حصّه ورکوي او داچې دحکمت دولت په قرآن کښې په خیراً کثیراً سره یاد شوے دے او داچې دحکمت دولت باقي دے او ددنیا دولت فاني .

او ددې حدیث په معنیٰ کښې چې ! مومن دمومن ورور دے ایضاً او مؤمنین یو واحد نفس دے یعنې مومنان ټول سره ورونړه دي .

---

چې یوه شپه کا دحق په یاد کښې رونړه
دحکمت بخره به مومي دونړه دونړه

د حکمت دولت به کل ورسره مل وي
د دنیا دولت به پرېږدي زویه لونه
دا حکمت خبر کښېږ یاد په قران کښې
تر حکمت بهتر نور څه دي ووې چونه
تر دا بهه نصیحت کوم دے چې ئې نه کړم
نه ئې اروې اے دزړهٔ په غوږ دکونه
دا دنیا به دې پرېږدي دېره ښه لګي
چې غافل په توب اوده پروټ وسې سونه
د مومن به پر مومن پېرزو نیکي وي
مسلمان لره یو تن یاد دي سم ورونه
تن د زړهٔ د روح په امر سم پر لار څه
ښیوکیږي د نوس په لغوته کښې مه پوهه
دا صورت په مثال کټ نفس ئې بانه دے
هر زمان دې نفس په بان رباندې وبونه
د کامل تلقین توتیا د خیره سترګو
په تلقین د پیر کامل سترګه کړه رونه
شیطان شکوني د زړهٔ په باغ کښې اموخته دے
ته د زړهٔ پالبز نګاه لره لهٔ شکونه

---

ئه اص : پراوت

د حاسد بخیل په ورغله ذرۀ سخت شي
اے مخلص لن ذرۀ دور کړه بد بنگونه

# في المناجات

ته دانا کشف القلوب يې د فقير ذرۀ سجنه
په هر حال احوال خبري د حقير د ذرۀ سجنه
زه صغير ته کبير يا دي ته مراد زه نامراد يم
له کبيره صغير خواست کا د صغير د ذرۀ سجنه
د فقير مراد حاصل کړې له مقصوده يې واصل کړې
حضوري د زهير خواست دے د زهير د ذرۀ سجنه
ذرۀ مي گرځند لور په لور دے کړه بنيا شي کړې کور دے
تل بينا يې پخپل مخ کړې د ضرير د ذرۀ سجنه
لوے دولت ستا حضوري ده په غيبت کښي ضرر[1] ده
په ضرر ذرۀ کے دلگير شي د دلگير د ذرۀ سجنه
په خلقت کښي دې اجير کړم د هوا دې دستگير کړم
ازادي له هوا غوارم د اجير د ذرۀ سجنه
د بندي خلاصے صواب دے د اسير ذرۀ کے کباب دے
د هوا بندي ازاد کړه د اسير د ذرۀ سجنه

---

[1] ص: ضروري

روح قچیر دنیا خزه دے ددهٔ حب سروبزه دے
لهٔ خزه نې ته وژغوره د قچیر دزړهٔ سجنه
امانت ورے دې راکهٔ دے جهول واخست پرشاکهٔ
د مخلص بارګیر باروا لهٔ الله دیارګیر دزړهٔ سجنه

---

## درصفت معیت حق تعالیٰ با بنده وودرصفت تجلّی وجه الله و درمعنی حدیث؛ حدیث نبوی: وَاللهِ کالجنة لیس فیها حورٌ ولا قصورٌ ولا نبیٌّ اِلا یتجلیٰ لهم دابهم ضاحک و ودرصفت پیر دستګیر۔

---

د بنده سره دالله تع د معیّت ، او دالله تع د مخ د تجلّی پهٔ صفت کښې - او ددې حدیث پهٔ معنیٰ کښې ! چې الله تعالیٰ دیو داسې جنت پهٔ شان دے چې نهٔ حور او قصور لري او نهٔ محلات مګر الله به دوي ته دیوې مسکا اوږنا پهٔ شکل کښې ښکا ره شي - او د پیر دستګیر په صفت کښې -

---

کهٔ خبر شي د محبوب لهٔ پته روه
دَ زړهٔ ملک به دې گلزار شي له ډې نوره
روحاني محبوب کهٔ مخ درته ښکاره کا
نوراني بهښت دغه دے پکښې دوه
پرهر لوري تجله بر ښنا خندان دے
پهٔ دیدن يې اندوه تښت کا دوا دوه
دَ عارفانو بهښت دادے که داخل شي
په کرسي بهښت پردهٔ د حوشي بوه
د دیدار بهښت کهٔ غواړې زما واوره
پهٔ اتهٔ شه د روښان پیر له جلوه
بې دیداره بهښت اور پر عاشقانو
د هجران سوے لهٔ دوزخه یو له سوه
بس دوي د مسکین مهٔ پرېږده سعیده
پیر روښان دے د عرب عجم پښو روه
خلیفه د پیغمبر دے شک پرې مهٔ کړه
بل (یې) نشي ستا ایمان سبک لهٔ جوه
معرفت به بې کامله حاصل نهٔ کړې
نادیده پر لار تلے نهٔ شي بې رهروه
څو کامل بدرقه نهٔ بیایې پر لار کښې
چرې خلاص شي د شیطان نوسک له څوه

---

ل اص

اے مخلصه پیر روښان دي بدرقه شه
چې ذرهٔ ور پر لاره تېز دروي بې بهوره

---

چې دخپل مرشد په نغوته يې روزګار وٌ
هغه کس په دواړه کونه کښې کامګار وٌ
چې دخپل استاد په نغوته عمل نهٔ کا
خود پسند خود رائے په دواړه کونه خوار وٌ
چې دخپل ناتمام ذرهٔ په نغوته کړځي
برهنه بې نوا تل پر واړه دار وٌ
ترقي به نوره بیانه موي په قطي
چې غره دخپلې پوهې په پندار وٌ
ناسوتي چې وراندې نه لاړ تر لاهوته
دا ناسوت يې دلاهوت پرمخ دیوار وٌ
يو مقام دبل مقام شيطان ياد شوے
چې دايم تل دهغه مقام مسمار وٌ
سکونت به يې حجاب شي لهٔ مقصوده
بې توحيده چې پر بل مقام قرار وٌ
پس لهٔ مرګه به خواب دتوحيد وركا
په حيات چې دتوحيد دملک دوار وٌ

هغه کس به تر توحیده ورسیږي
چې يې ئن هادي روښان غوندې غمخوار وُ
چې د هسې پير کامل خبره نغوزي
په يقين به شي غني که خوار نادار وُ
غني دل سړے هغه دے په عالم کښې
چې يقين يې د رازق په رزق استوار وُ
چې يقين يې د رازق په روزي نه وي
هغه کس به زيات د رزق په غم گرفتار وُ
دهر چا روزي به گوري په آسمان کښې
هر مومن چې له يقينه برخوردار وُ
په کوشش دانش به رزق دو چندان نه کا
د هر چا په ازل شوے خپل مقدار وُ
که روزي په دانش زياته د دانا شوے
نادان کس به په جهان کم دست بسيار وُ
و نادانو يې رزق ورکه بې حسابه
دانا کس د حق په داد حيران حصار وُ
اے مخلصه د حق ورکړه بې علت ده
دا کلام مې د دانا د زړهٔ اغيار وُ

## درمعنی بیان ایت کریمه : وَاَشْرَقَتِ الْاَرْضُ بِنُوْرِ رَبِّهَا

ترجمه ددې ایت شریف د معنیٰ بحقله : او زمکه به د پروردګار په نور سره وځلیږي .

---

ددې مستې محبوبا د مخ بربښنا شوه
د جهان تیارهٔ یې لرې کړه رڼا شوه
دا یستې توره تیاره ده په جهان کښې
د هستۍ دیوه یې بله کړه ضیا شوه
له وحدته د کثرت په میدان راغله
(د ظهور) جامه یې واغوسته پیدا شوه
وهر ښیز یې له وجوده (نمودار) کړو
په هر څه کښې شه ګویا شنوا بینا شوه
ارادت قوت یې رانیوله وارو
مسته شاه په ذات مریده هم دانا شوه
هر آشیا یې آئینه کا خپل مخ ګورې
شه بخپله پر خپل مخ باندې شیدا شوه
محبوبه لکه افتاب اشیا ښیښه ده
په ښیښه کښې د ښیښې په رنګ نما شوه

پهٔ جهان کښې دَ جهان په خبر موجود ه
لا ندې زمکه پاس پهٔ اسمان او به هوا شوه
د جلال جمال صفت ئې وينو راغـله
نور او نار مې د افتاب يدِ بيضا شوه
دا جلال کِسوت ئې واغوست شوه فرعونه
د جمال لباس ئې واغوست انبيا شوه
کل جهان ئې د جلال جمال مظهر شهٔ
پهٔ عالم کښې چرې زهر ځائے دوا شوه
بينادل پهٔ هر لباس کښې شها گوري
شها پته پهٔ کِسوت لـه نابينا شوه
اے مخلصه ذاکر نفس شيطان پرې وژني
دغه دم ئې د موسٰی کليم عصا شوه
دَجلال ظهور شيطان دے پهٔ عالم کښې
دَجمال صفت ئې وبنيو موسٰی شوه

---

در وصف ذکر خفی وانکه ماهی بيند و دريا از وی غايب بود کوردل است وانکه دريا بيند و ماهی از وی نهانند بنيا دل است وانکه ماهی و دريا هر دو بيند عاقل وصاحب بصيرت است .

---

دخفي ذکر د وصف په حقله ز څوک چې مهے ويني او دریاب
نه ويني هغه کوردله دے او هغه څوک چې دریاب ويني
او مهے ترې پټ وي بينا زړۀ لري او هغه څوک چې مهے او
دریاب دواړه ويني عاقل او دبصيرت خاوند دے۔

---

ذاکران چې دخفي ذکره خبر شوۀ
په دا ذکر ئې کدر زړونه انور شوۀ
چې دَ زړۀ ارسي يې پاکه کړه په ذکر
په خاطر باندې ئې پټ واړه اظهر شوۀ
چې د پیر رانجه ئې پورې کړه په سترګو
غایب بين صاحب يقين بينا بصر شوۀ
چې په ذکر ئې ګمان که له زړۀ لرې
په تحقيق له بنه يقينه بهره ور شوۀ
چې دحق په ذات کښې غرق ويني ځانونه
عارفان په پاک دریاب کښې مظهر شوۀ
چې ماهي ئې په نظر کښې دریاب پټ دے
د باطن په ديد ړانده دغه بشر شوۀ
چې دریاب ګوري ماهي ځنې غایب وي
عاشقان د زړۀ په سترګو ديده ور شوۀ
چې ماهي دریاب ئې دواړه په نظر کښې
دا ليدوني عاقلان صاحب نظر شوۀ

چې تنزيه تشبيه يې دواړه ثابت کړي
په دانش بنيش تر دواړو ګروهه برشوه
چې ظاهر باطن موجود (له) وجود ګوري
دا کتوني په زمره د پيغمبر شوه
دا دانش به بې کامله حاصل نه کړي
کاملان ددې دانش پر لور رهبر شوه
لاموجوده به غير ګوري په دوه کونه
په يقين چې د توحيد د ملک داور شوه
اے مخلقه په جهان کښې له توحيده
ددوښان يارانو اکثر بهشت خبر شوه

---

## دربیان انکه تمام عالم مظهر حق تعالیٰ است وحق در مظهر است

ابیات :-

چیست عالم مظهر ذات پاک
او از نورخویش روشن کرد خاک
از لطافت چوں کثافت را گرفت
رنگهای لانهایت را گرفت

---

په دې حقله چې ټول عالم د حق تعالیٰ مظهر دے او حق په مظهر کښې دے -

پښتونه :-

عالم څه دے؟ د پاک ذات یو مظهر دے - او د خپله نوره یې خاوره رڼا کړه — د لطافت نه یې چې کله کثافت په خپل ګرفت کښې وا خیست نو لا نهایه رنګونه یې پیدا کړه -

---

نن مې ولید و په هر څه کښې عیان یو
رنګ په رنګ جامې یې واغوستې ټمیان یو
په لباس کښې نه پټیږي له عارفه
هر وجود سره موجود ویني جانان یو
جانان یو آئینې ډېرې په جهان کښې
په زرګونه آئینو کښې ښه رخشان یو
هر اشیا احد مظهر کړه چې لیده شي
په مظهرو کښې لیده شي تل عریان یو
که زر یو نامې یې کښېښوې پرځان باندې
مسمیٰ[1] د کل اسماء په هر دوران یو
که جا حاصل ذات صفات بیل ګڼي کور دل دے
و عارف ته ذات صفات دي د سبحان یو

---

[1] اص : مسمات

چې لهٔ ذاته صفات غیرۍ کښې روند دے
وبینا وته دي کل ظاهر نمان یو

یو الطف کودم لطیف کثیف موجود شهٔ
کف حباب دریاب پشکه بې گمان یو

جاري روح د هر انسان جُدا جُدا دے
مقیمي[1] ارواح موجود د هر حیوان یو

دَ محیط دریاب نالې دي پهٔ عالم کښې
لوے محیط دے پهٔ جهان کښې بې پایان یو

هر اشیاء د حق مرکب حق ئې راکب دے
یو سوار کاږ پرې باندې سو رېم ئې عیان یو

دروغي دسترګو ډېرې پهٔ جهان کښې
دلیدو پهٔ دروغه کښې دیده بان یو

مقیّد پهٔ یوهٔ شان کښې دے احول ته
وعارفو[2] ته ښکاره شه پهٔ څو شان یو

هیڅ جهت مکان دحق معین نهٔ دے
چې لیدهٔ شي پر هر لور پر هر مکان یو

کل عالم ئې له پرتوه روښان شوے
چې لیدهٔ شي پهٔ جهان دغه روښان یو

---

[1] اص : حیواني

[2] اص : عارف

شو پورک يې ليدهٔ نهٔ شي لهٔ پرتوه
ميا روښان شمس ضحیٰ دے پهٔ جهان يو
دا مخلص يې لهٔ پرتوه بينادل شه
د روښان پهٔ نور يې وکوت پټ اعلان يو

## دربيان انکه اگرمومن ازجهان ايمان سلامت برد گويا دولت بی پايان برد انکه چراغ بر صراط معرفت حق است ونورِ درگور ذکر خدائے تعالیٰ است

کهٔ چرې مؤمن د جهانه ايمان سلامت يوړونو گويا بې حده دولت يې يوړو — او داچې د حق معرفت دَ صراط پهٔ لار چراغ دے او دالله تعالی ذکر دگور نور دے۔

مومنانو لهٔ جهانه لوے دولت يوړو[1]
چې ايمان يې لهٔ دې[2] ملکه سلامت يوړ

---

[1] اص: پهٔ دې ټول غزل کښې دا رديف پهٔ "يو" سره ليکلے شوے دے۔ [2] اص: لديه

پر صراط به يې چراغ دړومې دوړاندې
چې عارف لۀ دې جهانه معرفت يوړ
پۀ تاريک گور به يې نور شي کۀ باور کړې
چې يې زړۀ روښان د ياد په مصقلت يوړ
چې پسرو د پير کامل شو پۀ جهان کښې
هغه کس لۀ دې عالمه سعادت يوړ
چې مريد د ناقص پير شۀ پۀ غوږ واوره
دے شقي لۀ دې جهانه شقاوت يوړ
چې يې توکل پر خدائے کۀ پر خدائے کښېناست
دے مومن پۀ دې عالم کښې ډير عزت يوړ
چې لۀ ډيرو خلقو گوښې شو يسوازې
دانايانو پۀ گوشه کښې جمعيت يوړ
چې و هر در ته ولاړ نۀ دے يقين کړه
قانعانو پۀ عالم کښې لوئے حرمت يوړ
حرص شوم سړے طامع کۀ پۀ جهان کښې
لۀ طامعه طمعې گوړم چې نعمت يوړ
د ربنتينو پۀ ربنتياؤ کښې وقار دے
لۀ کاذبه کذب وينم چې شوکت يوړ
د لئيم پۀ ديدن زړۀ زهير ملال شي
د کريم ديدن لۀ مخه ملالت يوړ

د بهشت نعمت لذت ورځو یار پېژ وُ
لهٔ بهشته د بنهٔ یار دیدن لذت یوړ

چې یې خدایه پهٔ دوو کونو عرض نهٔ کا
دے عاشق په دواړو کونو لوے همت یوړ

چې معشوق خپسر ښکاره که وعاشق ته
لهٔ عاشقه یې د دوو کونو شهوت یوړ

چې یې علم د توحید که باندې کشف
د عارف لهٔ زړهٔ یې واړه جهالت یوړ

دا مسکین چې تخلقوا باخلاقي شهٔ
پهٔ جهان کښې یې له خلقه سلطنت یوړ

اے مخلصه چې اتهٔ مقامه خپل کا
دے ساکن په دا عالم کښې خلافت یوړ

---

**دربیان مذمت شغل دنیا و تفرقه در جمع کردن مال است وجمعیت دل در تفرقه مال وانکه گنج قناعت دارد غنی دل است اگرچه نادار باشد -**

---

د دنیا د شغل د غند نې پچقله ، د مال په جمع کولو کښې تفرقه ده او د مال په تفرقه کښې د زړهٔ جمعیت دے او هغه څوک چې دَ قناعت خزانه لري په زړهٔ غني دے اګر چې په ظاهره نادار وي۔

---

کهٔ مشغول تن د دنیا په قیل وقال وي
شب وروز د بې وفا دنیا دلال وي
فراغت جمعیت دې نه غواړه لهٔ دله
چې ګرفتار د دنیا کښه په جنجال وي
تن فرحت راحت محال دے چې حاصل کړي
چې همیشه غوښې بغ په زړهٔ ملال وي
پریشانی د زړهٔ د مال په جمعیت کښې
چې ګرفتار په تولول سا تـل د مال وي
د دنیا په ترکول کښې جمعیت دے
دا وینا به کړې باور کهٔ تن رجال وي
کهٔ تن ګنج د قناعت دې په لاس کښېښوزي
په جهان به غني دل شي کهٔ کهنګال وي
توکل به یې هالهٔ په زړهٔ قرار شي
په یقین د رزق استوار لکه جبال وي
لور په لور به په روزي پسې نهٔ ګرځي
کهٔ همیش مشغول د شوم نوس په ګوشمال وي

لوړ ه دوسته پهٔ هر حال لره طالبه
پهٔ مرتیا کښې بې خبر ولاړ دحوال وي
پهٔ ځوانۍ کښې له نوسکه سره جنګ کړه
پهٔ زوړوالي به (و) نوس ته بې مجال وي
لاس وپښې کهٔ غوزروي فائده به نه وي
څوک چې نښتې دامید حرص پهٔ جال وي
کهٔ رضا یې خپله وولسته لهٔ میانه
لهٔ مولیٰ به ډېر خوشنوده پهٔ هر حال وي
اے مخلصه خوشنودي به ددوست مولي
کهٔ خوشنود یٔ پهٔ اقوالهم (پهٔ) افعال وي

## في المناجات

عیب پوش صاحب دانایٔ تر تا نهٔ ګووم ستاریو
دهرچا پهٔ حال خبریٔ تر تا نشته خبرداریو
دهرچا اُمید پهٔ تا دے کهٔ بادشاه دے کهٔ ګدا دے
دلدادي دهر ذرهٔ تهٔ کړې تر تا نهٔ وینم دلداریو

---

له اص: غرزوی

دهر چا په زړمه ته یې ته یې ټول خلق بانیې
دهر چا په غم نیولے ترتا نه وینم غمخوار یو
ته خالق خلق مخلوق دے ته رازق خلق مرزوق دے
ته یې رب خلق مربوب دے ترتا نشته نکودار یو
ته بادشاه عالم حشم دے امید وار ستا په کرم دے
دبنده سائل دي بنه زده که ترتا نشته شهریار یو
ته قادر شقي سعید کړې هم قریب واخلې بعید کړې
دچا توان دسوال نشته ترتا نشته بل هوشیار یو
ته حکیم چار په حکمت کړې هره چار ټپل سنت کړې
بې چار دده چارکینې ترتا نشته بل کامکار یو
ترخپل دستړکو وړاندې ستا قدرت چاره زرکا نه دې
ته له کن[1] هر شیز موجود کړې ترتا نشته کردګار یو

---

دربیان وصف ذکرِ نفس وتمثیل چاه نخشب شهری است ودان

شهر بادشاهِ بود پسر طفل او بر ماهِ مایل شد چون ماه را نمیدید
درگریه می شد قرار نمی گرفت اخر این حقیقت را بادشاه به یک
حکیم گفت حکیم از روے حکمت ماهی ساخت چون روز می شد درچاه

---

[1] اِنَّمَآ اَمرُهٗ اِذَا اَرَادَ شَیئًا اَنْ یَّقُولُ لَهٗ کُنْ فیکُونْ ٥ یسٓ ایت ٨٢
"کله چې هغه دیو شیز د پیدا کولو اراده وکړي نو هغه ته وائي چې وشه بس هغه وشي."

در می اید وچون شب می شد بر می امد چهار شهر را روشن می ساخت اں ماه را ماه نخشب می گفتند وآن چاه مشهد شد بچاه نخشب.

---

دنفس د ذکی چقله او دیو بنار چاه نخشب، او دتمثیل چقله :۔
په دغه بنار کښې یو بادشاه وُ ۔ د هغهٔ یو ماشوم زوے وُ چې سپوږمۍ یې ډېره خوښه وه چې سپوږمۍ به پټې ونهٔ لیده ژړل به یې او قلاریدو به نه ۔ بادشاه اخر دا خبره د حکمت یو خاوند ته وکړه ۔ دغه حکیم د خپل حکمت لهٔ مخه یوه سپوږمۍ جوړه کړه کله چې به ورځ شوه دغه سپوږمۍ به یو کوهي ته پرېوته او کله چې به شپه شوه نو دا به ختله دغه سپوږمۍ ته به یې "ماهِ نخشب" ویَل او هغه کوهے پهٔ "چاه نخشب" مشهور وُ۔

---

چې مشغول وسي پهٔ سهه
زړهٔ به خلاص نهٔ کا لهٔ چهه
نوس د چاه نخشب تاریک دے
زړهٔ روښان انور لهٔ مهه

لهٔ دې چه ئې وکاږه
شه زاده خوښ کړه لهٔ شه
حق بادشاه روح شه زاده دے
شه خشنود لره ابله
دم دے لار وحق ته سمه
تهٔ پر ره دومه بې رهه
تهٔ د ذکر پر لار دومه
زما ونغوږه دا کهه
حق د نور دریاب حاضر دے
تهٔ حاصل کړه دا نوله
د حق یاد کړه کشاے دے
پرې د زړهٔ ذاکر (اکاهه)
کهٔ کړه د زړهٔ پرانزې
ځان مسلم لبوله اشکه
اے مخلصه غفلت ورک کړه
تل مشغول اوسه پهٔ سهه

---

دربیان تفاوت آه ماتم زده وغیره وآنکه از آهِ سوخته باید ترسید -

---

دماتم زده وغېره دآه دفرق پحقله اوداچې د
سوزېدلي آه نه يره پکار ده -

---

چې مې وکوت دهجران اه
تر ده نشته بل سوزان اه
د هجران داور لوګے دے
سوزنده دے دحرمان اه
د هر کس اه اثر نهٔ کا!
ډېر کارګر دے دحېران اه
د ماتم زده اه سخت دے
شکسته کا روغ جنان اه
د روغ دِل اه پرهار نهٔ کا
کهٔ ډېر کاندی پهٔ زبان اه
د مولٰی پهٔ دَر قبول وي
د عاصي خایف پښېمان اه
د مهجور خاطر به وسهٔ
کهٔ يې نهٔ کړهٔ هر زمان اه
د عاشق د درد غمان دے
د زړهٔ درد کاندي عريان اه
کهٔ هر څو يې پوشېده کا
نهٔ پټېږي د ارمان اه

دسوختہ لہٗ لاسہ ترس کړه
غني ایره کا دبریان لا

---

درصفت دانائی ومذمتِ نادانی وانکہ خواب علماء از عبادت جاہلان بہتر است ۔ وآنکہ دانائی معرفت حق تعالیٰ است ومعرفت حاصل نمی شود بغیر پیر کامل ۔

---

د دانایی په صفت او د نادانۍ په غندنه کښې ۔ او داچې د علماء خوب د جاهلانو د عبادت نه غوره دے دانائي د حق تعالیٰ معرفت دے ۔ او معرفت د کامل پیر نه بغیر نه حاصلیږي ۔

---

په جهان تر دانایۍ نشته دولت بهٔ
د دانا په دواړه کونه وي عزت بهٔ
تر دانا درجه نشته د چا لوړه
دا ناکس دے په دنیا هم په قیامت بهٔ
کهٔ بادشاه دے وعالم وته محتاج دے
چې بې علمه دَ چا نشي حکومت بهٔ
د دانا و نادان فرق وګوره دلته
د عالم خوب د جاهل تر عبادت بهٔ

ړوند بينا برابر نهٔ دے پهٔ جهان کښې[1]
لهٔ ړوند والي پهٔ جهان دے بصارت ښه
د صورت د سيرت فرق دے پهٔ عالم کښې
له صورته پهٔ عالم کښې دے سيرت ښه
کهٔ حکمت دانائی غواړې زما واوره
نن حاصل کړه پهٔ دنيا کښې معرفت ښه
د بل څيز پهٔ معرفت کښې حرمت کم دے
د مولیٰ پهٔ معرفت کښې دے حرمت ښه
معرفت به د دانا پهٔ صحبت مومې
د جاهلو لهٔ صحبته وي خلوت ښه
د دانا په نزديکت نادان دانا شي
پهٔ دنيا کښې د دانا کس نزديکت ښه
چې طاعت محبت واړه ورسره وي
بيا هالهٔ دي د دانا سرې قربت ښه
منفعت دے پهٔ طاعت پهٔ محبت کښې
پهٔ څرهٔ صحبت نهٔ مومې منفعت ښه

---

[1] وَمَا يَسْتَوِى الْاَعْمٰى وَالْبَصِيْرُ ه

سورهٔ فاطر ايت ١٩

ترجمه : ړوند او بينا سره برابر نهٔ دي .

څو چې لغوته محبت درځخه نهٔ وي
لهٔ کاسله به حاصل نهٔ کړې وحدت بهٔ
پهٔ همت پورې دې دين دنيا تړلې
لهٔ سهٔ خدايه په سحر غواړه همت بهٔ
اے مخلصه خدايې خوی دروح راحت دے
پهٔ دوه کونه تر دانشته دے راحت بهٔ

---

## وآنکه عجب وخودبینی گناه عظیم است

---

عجب او خودبيني لويه ګناه ده

---

پهٔ دمدارو کښې موذي دهر دمدار کهٔ
درنده شېرکهٔ بادشاه دے ترحمار کهٔ
سه حيوان نفعه رسان شهٔ کم ازاره
ځکه خر بارکش بهتر شهٔ شېر خونخوار کهٔ

---

له اص : درځخه

نېک و بد برابر نهٔ دي په عالم کښې
نېکو کار سړے بهتر ګورم بد کار کښې
کل اديان مساوي نهٔ دي چې ليدهٔ شي
داسلام دين ښهٔ بهتر دے د کفار کښې
مسلمان په ښهٔ عمل تر کافر ښه دے
زهٔ بې نماز مسلمان ګورم تر چماڅ کښې
چې د خپل مرشد په نغوته عمل نهٔ کا
هغه يار وينم په ستر ګو تر اغيار کښې
چې مرشد پورې بدنام شي په عالم کښې
هغه يار دے لهٔ اغياره ډېر بسيار کښې
کهٔ سړے عاقل هوښيار حېوان نادان دے
چې د نوس په نغوته چار کاندي هوښيار کښې
هر اخيار چې په خپل خېر باندې معجب دے
تر اشرار ترسنده ګورمه اخيار کښې
بدکاران په اندازه دي په جهان کښې
تر خودبين په جهان ګورم اشرار کښې
اے مخلصه دغه وخت د کاروبار دے
په بېکار تېولے به ګورم بې کار کښې

---

ـه اص : خمار

## دربیان انکه عاقبت محبت دنیا وانکه ازدنیا کفن بری یا نه وآنکه چون صحبت تاثیر دارد بابدان نه باید نشست وانکه رونده درین راه نشسته باید -

---

ددنیا دمحبت وعاقبت پحقله ، اوداچې ددنیا نه به دې کفن په نصیب وي یا نه — هرکله چې صحبت تأثیر لري نو بدانو سره بیا ناسته نهٔ ده ښکاره او ددې لارې روان په کار دے.

---

کهٔ دې ذرهٔ وي پاءٔ دنیا پورې بسته
درحلت پهٔ وقت به دروې دل خسته
ددنیا پهٔ څیز ومینه مهٔ کړه قطي
عاقبت به ځنې ولاړشي دست شسته
لهٔ دنیا به بې کفنه څهٔ پوههٔ سې
دکفن موندل بیشک دي وابسته
تهٔ تکیه دبقایه پرې باندې مهٔ کړه
دژوندون داونې ولې ده ورسته

ملوکان په کښې پراته دي جوړې بوړې
پر زمین باندې قدم بدده آهسته
چې صحبت تاثیر لري زما (نه) واوره
له غافله سره مهٔ کړه تل ناسته
چې غافل شوې کښته ولاړې پهٔ کوهي کښې
پهٔ کوهي کښې مهٔ پرېوزه دانسته
چې له خدایه دې غافل کا څُنې تښته
هغه څېزکو یه بدرنګه یا ښائسته
که طالب يې د مولی خبره واروه
ته د زړهٔ پهٔ لښه سفر کړه نشته
په جهت که شاها غواړې ندربه موهي
شهنشاه دے بې جهته آراسته
لن عمل به يې قبول په دېن عمل شي
چې اخلاص يې پهٔ ددون کښې وي رسته
مخلص ووې له طلبه ساکن مهٔ شه
ځودې دم مزے دې نهٔ ومےکسسته

---

# في المناجات

زۀ فقير محتاج گدا يم، تۀ غني بې نياز بادشاه
چې څۀ شته زما پۀ ملک کښې کل عطا ستا له درگاه
زۀ معدوم وم تا موجود کړم له نيستيه دې وجود کړم
تۀ لۀ نيست و هست پيدا کړې تۀ خالق يې خاطرخواه
پۀ رضا دې چاره کيږي لۀ وښو پيدا کړې وږي
پۀ ويږي کښې دانۀ کړې دانۀ جوړه کړې لۀ کاه
تۀ صانع زۀ صنع خدايه وصانع وتۀ بې پايه
شوېي څۀ وائې درزي تۀ ما پرتوک کړه يا کلاه
پۀ خپل خواست دې زۀ پيدا کړم پۀ مخلوق کښې دې زيبا کړم
بنۀ احسن صورت دې راکړ دا احسن مۀ کړه تباه
دا صورت يې بدل مۀ کړه پۀ ايمان يې خلل مۀ کړه
مستقيم يې پر جاده کړه چې بې راه نۀ شي گمراه
درو بنانو پر لارې بيايه لۀ شيطان گرگ يې پيايه
دنفس لۀ چاه يې ژغوره بد تاريکه دنفس چاه
د فقير دعوت قبول کړه پۀ امت يې د رسول کړه
د رسول امتي گورم ستا پر در لويي لوے جاه

پهٔ زمره ئې د مسکین کړه په خدايي خوئې ئې متین کړه
هره چار پر تا اسانه مسی سره زر کړې پهٔ نګاه
تهٔ غني کریم بادشاه ئې مهربان پهٔ خوار ګدا ئې
فقیر تا سائل طامع که تهٔ پرورکړې بې پروا ئې
چې ئې هر څهٔ ترحد زیات دي او موصوف پهٔ بنهٔ صفات وي
پهٔ عطا نهٔ زهیرېږي کهٔ څوک سوال کا هر بېګاه
زهٔ چې خواست کوم لهٔ تا نهٔ ډېر هوس کوم سلطانه
ستا د درګدایان ګودم بادشاهان ئې دي سپاه
تهٔ ارحم الراحمین ئې تهٔ اکرم الاکرمین ئې
پر مخلص عاصي رحیم شه تهٔ کریم رحیم بادشاه

---

## دربیان وصف نمودن خداوند تعالی به تشبیه و تنزیه

---

دحق تعالی پهٔ تشبیه او تنزیه کښې وصف کېدل .

---

تهٔ بې حد بېچون عظیم محیط دریا ئې!
درست دانا بینا شنوا توانا ګویا ئې!

څرګه نوردې د عارف پر زړه بربښنا کړي
یو وجود يې په څو اسمه مسمّی ئې
د جلال جمال کسوت اغوستې راغلي
په جهان کښې ځائے اشنا ځائے نااشنا ئې
جلالي صفت دې وښیوه شوې زهر
د جمال ظهور دې وښیوه مینه ئې
ځائے حیوان نفعه رسان شوې په جهان کښې
چرې شیر مار ولړم شوې اژدها ئې
چرې روغ بې پرواه کړځې بې غم ځون کړې
ځائے عاجز ضعیف رنځور په واویلا ئې
چرې ځان په ځوانۍ مست بې پرواه ګرځې
چرې زوړ عاجز عصا واخلې بربا ئې
کله بد صورت ونسې مخ څرګند کړې
چرې ښه صورت قبول کړې دلربا ئې
ځائے معطي شې د سایل مقصود حاصل کړې
چرې دربه دربدر جاروځې خوار ګدا ئې

---

ے دا غالبًا "ژوند" وي - څو په هندي کښې
"جون" وخت، دور، او عمر ته هم وائي -
(ک ه انګ)

چرې دين ته پرورش وکړې عمر شي
چرې سخت ابوجهل ددين اعدا ئې
دادې واړه تماشه ده پهٔ کثرت کښې
تهٔ پخپله ننداره‌چي هم تماشا ئې
په کثرت کښې دې ظهور وينو څولونه
خاک و باد آب و اتش هوا سما ئې
دا يې واړه د جلال جمال مظهر دے
تهٔ پهٔ ذات بېچون بې مثله بې نما ئې
دا جلال جمال دې موج دے ښکارېږي
تهٔ پهٔ ذات محيط دريا مخفي اخفا ئې
بې مکانه بې جهته لوئے درياب شوې
هم پرهر مکان پرهر لورې پيدا ئې
تهٔ بې رنګ رنګونه واړه لهٔ تا موې
هم د کل رنګو شوې خود رنګيا ئې
چې پهٔ کل صفت ئې وليدهٔ مخلص شهٔ
پهٔ تشبيه تنزيه موصوف کامل خدا ئې

## دربیان مذمت دنیا وخورد وخواب وآنکه تاجذبه حق نرسد از خلاص دنیا بر نیاید .

---

د دنیا او دخوراک او خوبونو په غند نه کښې.
او دا چې ترڅو دحق جذبه نهٔ وی دررسېدلے
د دنیا نه نجات نشي موندلے -

---

تهٔ انسان نهٔ یې دواب یې
چې مشغول پهٔ خوردو خواب یې
دادنیا مثال شراب دي
تهٔ مست شوے پهٔ شراب یې
لهٔ دې مَیَه پرهېز وکړه
کهٔ دانا اولوالالباب یې
دادنیا جیفه یادشوے
عاشق شوی پرکلاب یې
ددنیا مېنه ګرداب دے
کښېوتلے پهٔ ګرداب یې

د دنیا خلاب سرښبناک دي
تهٔ بوخت شوې پهٔ خلاب یې
تل و خدائے و ته زاری کړه
کښېوتلے پهٔ غرقاب یې
پهٔ جذبه برحق (به) ووځې
پرېوتلے پهٔ تالاب یې
توجه و پیر ته وکړه
نوس تړلے پهٔ طناب یې
پهٔ مدد به د پیر خلاص شې
کښېوتلے پهٔ عتاب یې
خدائیي حُب پهٔ زړهٔ کښې نهال کړه
کهٔ عاقل دانا شتاب یې
دَ مولیٰ پر نور کوشش کړه
پهٔ مخلوق کښې انتخاب یې
نور عالم پهٔ مثال ستورې
تهٔ انسان پکښې افتاب یې
معرفت لره پیدا شوې
بې خبر له دې خطاب یې

---

ئے اص : بو ښت

په عالم کښې ئې بزرګ کړې
د فرښتيو مشوې محراب ئې
ته هستي د حق محراب کړه
ځونه ئے شوې په دا آب ئې
دړې اب اصل وغواړه
دے درياب ته ئې حباب ئې
د مخلص خبره پند کړه
که د ميا دوښان اصحاب ئې

---

## دربيان ذکرخفي و پاس انفاس و روح و دل و نفس وشيطان .

---

د خفي ذکر، د ساه کانو اخيستلو (پاس انفاس)
د روح، د زړه، د نفس او د شيطان په حقله .

---

چې د زړه د اَس په خوله د ذکر کپ وي
د سوار په حکم تګ (راو) هم پرې د ب وي

چې کېږي په خوله نهٔ وي زما داوره
ښيو کېنې به ئې ځنېله رضا ترېـ وي
په ښې پورې دډل روح دزړهٔ عالم وي
دنوسک شيطان استوګه پر لور چپ وي
چې دکينې څوکيه نغوړې په جهان کښې
زيات مشغول به ددنيا په کار وکړ وي
چې دښې تېښيه نغوړې يقين وکړه
لهٔ نوسکه به ئې تل جهاد په کړپ وي
پهلوان شجاع هغه دے په جهان کښې!
چې ئې نوس شيطان ګايل کړې په خرپ وي
چې دپيرکامل لهٔ نغوتې ئې جاربا سي
هغه کس مې (په) خناس (او) جلاس کېږ وي
دعارف ننوتي هوس په رنها روحٔ دے
شوپرک کور موش راضي تل په تورتپ وي
دَمولی داهل ذوق په ذکر فکر
دنوسک داهل ذوق په چپ چپ وي
ددنيا په کارکښې تېزګړند ے کرڅې
کم همّت سړے ددين پرلار تېټ تپ وي

---

ك اص: (چې له غلامي ......)

بې غمي ارام په دغه باندې حرام وي
چې نيولے د دنيا د حرص تپ وي
اے مخلصه مه کړه خدائے دې چې وژغورينه
چې د نوس ليوني سپي چيچلی غپ وي

---

دربيان اثبات نمودن د ذات وصفات باری تعالیٰ
ودرنمودن ذات از صفات وصفات از فعل درمعنیٰ
من عرف نفسه فقد عرف ربه ۔

---

د ذات او د صفاتو د اثبات په عقله او دا چې ذات د
صفاتو او صفات د فعل نه او په دې معنیٰ کښې
چا چې ځان وپېژندو هغه خپل رب وپېژندو۔

---

چې عارف د حق په ذات هم په صفات دے
د عارف نوم پر هغه باندې اثبات دے

د حق ذات چې بې صفات گڼي نادان شه
دا عالم ئې د صفات څرگند ایات دے
ذات هرگز بې صفات ندوي کډ باور کړي
کل صفات د حق سیايي ذات ئې دوات دے
دا عنصر مثال حروفو تړي ظاهر شو
کلمه گورم جماد حیوان نبات دے
له څره حرفه معنیٰ موندلے نهٔ شي
د معنیٰ مظهر څرگند نبهٔ کلمات دے
من عرفه نفس رسول وي یقین وکړه
ترخپل ذات پورې معلوم د مولیٰ ذات دے
پهٔ انسان کښې چې صفات تمام لیدهٔ شي
د غه واړه د کریم غني خیرات دے
دا سړي واړه فقیر نادار یاد شوي
چې لري کل د غني خدائے امانات دے
په حیات چې صفات وسپاري تښتي ته
موتوا قبل ان تموت دغه ممات دے
واصلان چې موتوا قبل ان تموت شو
دغه مرگے یې لهٔ جمله شره نجات دے
چې ئې خپس کهٔ نفي حق ئې ثبات کهٔ
پهٔ فاني کښې حق گویا بینا حیات دے

چې خپل خواست قوت ئې دواړه ودوست ورکه
په ئې خواست کښې حق تښتن د ارادات دے
چې لاحوله ولا قوت قوت ئې حق شه
په مولا ئې حرکات هم سکنات دے
ما رَمَيْتَ إِذْ رَمَيْتَ[1] پېغام واوره
د رسول فعل د حق له حرکات دے
په آرسي کښې د صورت حرکت ګوره
هغه واړه د سړي د کار ايات دے
حق د کل عالم ارواح خلق ئې جسم
په ارواح ئې حرکت هم ئې اصوات دے
اے مخلصه که څوک کان د علم غواړي
د کل علم کان روښان صاحب دعوات دے

---

عضوان ن است جمله نيک و بد
وصف هر چيز از وجود است عيان
حق تعالیٰ گفت انچه در آفاق
در وجود ادمی دارد نشان

---

[1] وَمَا رَمَيْتَ إِذْ رَمَيْتَ وَلٰكِنَّ اللّٰهَ رَمٰى ج الانفال - ايت ۱۷
ترجمه:- او تا په هغوئ (خاوره) نه ده ويشتي کله چې تا ويشته بلکې دا الله ويشته -

جمله نیک و بد دانسان دتن سره تعلق لري
دهرځېن وصف دهغهٔ د وجود نه ښکاره دے
حق تعالی فرمائیلي دي څهٔ چې په آفاق کښې دي
دانسان په وجود کښې دهغو نښان ښکاره دے

---

په څهٔ نقش په نګار دانسان کړے دے
دانسان صورت آرسي حق ترې جوړ کړے دے
که مولا غواړې لهٔ خپله کوره مهٔ ځه
دمومن زړهٔ دمولی د ناستې کړے دے
لهٔ غافله په حجاب دے نهٔ ئې کوري
روحاني معشوق عاشقه سره لیدے دے
چې د حق لهٔ معیته خبر نهٔ وي!!!
په دانش کښې لهٔ جمله چارپایه کړے دے
دهرځېن دخوی صفت ترې ښکاره یږي
دانسان تن د جمله خویونو منه دے
ساده مخ د محبوبه پرې ښائسته شهٔ
دا کثرت مې د وحدت پهٔ رخسار لیدے دے
که خریدار د معرفت د درجوهر ئې
پهٔ تحقیق تن دروښان او تاق کښې صحنه دے
اے مخلصه شریعت ثابت کلام شه
د روښان دیار کلام ثابت بې وته دے

د شجر د بریو لښت ویئم په پوست کښې
معرفت د اوبو بر شریعت پټ دے

---

چې یې نغوتې ن په غوږ آیت حدیث دے
هغه کس ن په استوار رسن تشبیث دے
چې یې ریاضت اختیار خلوت عزلت که!
هغه کس د نوس نوس کړې تدبیث دے
چې یې حب پړه دېر شهوت خوړن دنیا شه
په باطن کښې هغه کس ویئم خبیث دے
دهمای خوراک اوچ هډه دېر بوسیده وي
په مردارسه دېره مینه د بغیث دے
جمعیت آرام به نه مومي باور کړه
چې یې زړه ن په دنیا پسې تشعیث دے
جمعیت یې (سنه) روزی شي بې تشویشه
چې یې کړې نوس حریص بې نوا ریث دے
کم همت سرے تر نوس پورې عاجز دے
پهلوان شجاع لـه نوس سره ضیث دے
اے مخلصه چې یې نوس شیطان کړه لانډې
دغه کس (هم) په مردانو کښې تحدیث دے

چې د نوس په نغوته چار کا مېره نه دے
د هغه بدېره پر مخ د واښو لیث دے
د نبي ولي ګفتار د خدائے لښکر دے
په بد نفس شیطان يې خبر تل مکیث دے

---

## حدیث نبوی ز الصلوت معراج المومنین در وصف علم توحید

ترجمه: نبوی حدیث - لمونځ د مومنانو معراج دے - د توحید د علم په صفت کښې -

---

په حضور لمونځ د مومن د زړهٔ معراج دے
چې په غولي يې د زړهٔ عرفان سراج دے
چې مولیٰ يې پېژندلے (د ده ذات) نه وي
پر هغه زړهٔ همیشه تیارهٔ تر داج دے
حقیقت به د اشیا پکښې وګوري!
چې يې تن په ذکر پاک د زړهٔ زجاج دے
په قیامت به يې اکرام سري فرښتې که
چې په سر يې د توحید د علم تاج دے

نن د علم طلب فرض په دا سبب شهٔ
چې د حق پهٔ در د علم لوئے دواج دے
نن بې علمه هیڅ عمل له سرې نشي
هر سرے حُکه وعلم ته محتاج دے
هر سرے به لهٔ توحید پوښتي چې ورشي
د توحید د علم زده کړه لاعلاج دے
غافل کس د دم له قدره خبر نهٔ شهٔ
د دئ دم بها د دوو کونو خراج دے
کهٔ سالک ئې تهٔ د نفس پر لارې دروه
ومولا وته څرګند دغه منهاج دے
لهٔ امواجه د کثرت حباب موجود شهٔ
دغه نقش ئې د بحد دریا امواج دے
د اوبو قدرها له ماهي معلوم کهٔ
چې په شست جال له اوبو کړې اخراج دے
نن خوراک د روح نفس زده کړه له کاسله
د روح قوت علم او از د نوس اناج دے
د تن خوی د روح عذاب بندی خانه شوه
پهٔ خدایي صفت موصوف شو د روح راج دے
معرفت لوئے کرامات د عارفانو!!
دا ولي عارف فارغ (د) استدراج دے

---

له اص : دیر

اے مخلصہ شور شیرین دریاب سرہ دے
د وحدت دریاب شیرین کثرت اجاج دے

---

بیت

مرغی کہ خبر ندارد از اب زلال
منقار دراب دارد مہ وسال

در بیان انکہ کلمہ شہادت بیخ ایمان است وبیخ
بنا ئے شاخہای ایمان وگفتارلاست میوۂ ایمان است

بیت

هغه مرغۍ چې د زلال داوبو خبر نه لري. کۀ
د هغې مښوکه پۀ میاشتو پۀ کلونو په اوبو کښې پرته
وی نو څۀ ؟ .

د شهادت د کلمې پۀ حقله، چې د ایمان بېخ دے
او بېخ د ایمان د ښاخونو ځائے دے او رښتیا وېنا د
ایمان مېوه ده .

---

چې پر ښاخ وبرګ تازه دایمان کاچ شي
هغه زړه به پو رپه برګ لکه اچماچ شي
کلمه دشهادت دایمان بېخ دے
بېخ بنا پرې باندې شاخ میوې ساچ شي
دښتیا غوږ مقام یې پاس دے که باور کړې
ددروغو مقام کښته لکه چاچ شي
دحکمت اونه به وزېږي په زړه کښې
چې یې نوس خالي په لوږه له نماچ شي
د هاتف سروش ندا به په غوږ واروي
چې یې غوږ خالي د نوس لډېډ نباچ شي
ددیدار بهره به بیا مومي بې شکه
چې روحاني عالم د زړه (یې په) بلواچ شي
چې خوږې اوبه یې نه وي په نظر کښې
د رندو مرغونو تل ناسته پر ماچ شي
چې فارغ شي ددنیا له کاروباره
ددنیا اهل مشغول په لهو ناچ شي
دمقصود سترګے به ووینې مخلصه
چې یې زړه ددم وغشي ته اماچ شي

## قول شائخ :

# وجودک ذنبٌ لا یقاس به ذنبٌ

---

د مشائخو قول :-

ستا وجود گناه دی - دې سره بله گناه نهٔ برابرېږي

---

هغه کس چې تن له خپل وجوده لوڅ شي
پهٔ جهان کښې به آزاد ددم کروڅ شي
تر دا لوئے عظیم گناه پهٔ جهان نشته
چې دخدائے دورانده ووړنډې بوڅ شي
چې ئې معرفت حاصل نهٔ وي شیرخوار دے
پهٔ صورت که وي تن دار قد ئې لوړ هوڅ شي
څوک د حق پهٔ محبت له ځانه تېر کا
دچا مینه د دنیا پهٔ زړهٔ د خوڅ شي
اے مخلصه محبت به د حق مسو مې
چې د دین دنیا له حبه ئې زړهٔ لوڅ شي

---

انکه معرفت چون چراغ حقیقت است ، حقیقت جمله اشیاء
ازین چراغ معلوم شود وانکه موحد مانند روح عالم وعالم
صورت موحد است وارواح بر صورت مهربان ومشفق
است وانکه از آواز بر چیز تسبیح حق شنود سرور شنیدن
بروی روا است .

---

معرفت د حقیقت چراغ دے - د جمله څیزونو حقیقت
ددې چراغ نه معلومیږي د موحد مثال د عالم روح دے او
عالم د موحد صورت دے او ارواح په صورت باندې مهربان
او متفق دے او هر هغه څوک چې د هر څیز نه د حق د
تسبیح آواز اوري په هغوي د سرود اوریدو روا دي -

---

پر هغه ذره چې د معرفت صباح شي
حقیقت به د هر څیز ورته مصباح شي
په یوه وجود به هر یو موجود گوري
له لیبنته سره ئې صلح په صلاح شي

موحد مثال ارواح عالم صورت دے
پر صورت باندې تل مهر دا رواح شي
د ارواح په ارادت کرځي په بحر
دا صورت مانند کشتۍ دا روح ملاح شي
موحد چې تخلقوا باخلاقي شي
د صورت لۀ بده خويه په فلاح شي
چې فاني شي بقائي دا بد مومي
دا فنا به يې د بقايي مفتاح شي
د دويي ورے به واچوي لۀ سره
هر چې مست نن د توحيد په مے وراح شي
دَ گمان لښکر به تېښته ځني وکه
چې قوي نن دَيقين په لوئے جناح شي
چې د هرچيز له اوازه تسبيح اروي
د سرود سماع پردهٔ باندې مباح شي
غم اندوه به د هجران ورځني لاړ شي
چې د معرفت پر نور شادمان مراح شي
مخلص دوې له روښانه روښي غواړه
چې پر ذرۀ دې توره شپه رڼا صباح شي

---

## دربیان مذمت جاہل و مغرور علم گوید

### د جاهل او د علم د مغرور د غندنې په حقله

د جاهل مغرور زړهٔ سخت تر زمین لاخ دے
کبر ژن لهٔ ځانه خوښی ځکه ګستاخ دے
د نبی ولي کلام پر غوږ نه اروي
د انکار په درد ئې غوږ ډک له صماخ دے
په باطن د حق لهٔ ذاته خبر نهٔ شوی
د صفات په علم تللے شاخ در شاخ دے
څو د لوے صراف د وړاندې سره نهٔ شي
د غافل زړهٔ په معنیٰ کښې وینم ماخ دے
حقیقت به د هر چا شي ورته څرګند شي
چې ختلے پاس د معرفت په کاخ دے
چې د معرفت لهٔ علمه بهره ور شي
په باطن ئې زړهٔ تر عرش کرسی فراخ دے
تل د محبت اتش ځني پېدا شي
د غه زړهٔ مانند بکر ذکر ځماخ دے

د دنیا بنادي له غمه ده مخلصه
د خاکی سړي په کوړي دنیا طاخ دے

---

آنکه حق تعالیٰ جای پیدا شدن هر چیز است و جای باز گشت همه چیز ایت :- اِنَّ رَبَّکَ لبا لمرصاد - یعنی پروردگار تو یا محمد بر آهسته هر رهگذر است یعنی شمایان را بران راه گذر خواهد شد و آنکه کرامات از عبادت خیزد و معرفت از فکر و از نیت که یک ساعت فکر بهتر از هفتاد سال بندگی نفل

---

حق تعالیٰ دهر څیز د پیدائش ځائے دے - او دهر څیز دَ والیسۍ راتلو ځائے هم دے ایت : ان ربک لبا لمرصاد (الفجر ایت : ۱۴) اے محمد صلی الله علیه وسلم په تحقیق ستا پروردګار په لار کښې ولاړ دے یعنی تاسو به هم په دغه لار تېرېږئ او دا چې کراماتونه د عبادت نه پیدا کیږی او معرفت د فکر او نیت نه او دیو ساعت فکر داویا وکالو دَ عبادت نه غوره دے -

داموٰلی دهر اشیاء د اخر مَعَاد دے
د عارف په دادنیا درست اعتقاد دے
دے مادہ دارواحانو شهٔ باور کړه
هم مصدر دکل اسماء هم داجساد دے
د هر شین رجوع وحق و ته اخر شي
د صاحب معاد دریاب هم ئې ایجاد دے
دهرچا اخر کندر پرې باندې وشي
پهٔ قرآن کښې دحق ذات لبالمرصاد دے
نن خدمت معرفت بویه د سړیو
کهٔ ئې کاندہ پهٔ حشر څهٔ اعتقاد دے
داناکس سړے په خدائے نهٔ غره کیږي
پهٔ اُمید ویره استوګه دعباد دے
نن عاقل سړے هغه دےکهٔ باور کړي
چې دخدائے داطاعت ته انقیاد دے
بنهٔ توفیق دعبادت غواړه لهٔ خدایه
کرامت دعبادت څرګند اولاد دے
یو ساعت فکر تر ډېر عبادت بهٔ شهٔ
معرفت پیدا د فکر له اوراد دے
نن طلب د معرفت وکړه عابده
عبادت بې معرفت واړه برباد دے

معرفت به بې کامله حاصل نهٔ کړي
دا توحید معرفت واړه برباد دے
دے دیده ازموده وايي کهٔ باور کړي
دا مخلص دي د نوي پير د حال اشها د دے
دا حسد کبر اتش دے په درون کښې
د دوښا ن مرید له دي اوره ازاد دے

---

د حق ذات بې مثله بحر نا محدود دے
بې مکان بې جهته لوئے وجود دے
نابینا يې لیدے نهٔ شي ځني پټ شهٔ
پهٔ باطن کښې له وجود سره موجود دے
لهٔ غیرته يې کل غیر یو فناکهٔ
مسته شاه پهٔ ذات شاهد شوم مشهود دے
دَدووم وجود موجود پهٔ جهان نشته
شهنشه پهٔ خود ساجد شهٔ هم مسجود دے
یو وجود ظاهر باطن اول اخر شهٔ[۱]
دا ظاهر مې و باطن وته مسجود دے

---

[۱] هُوَالْاَوَّلُ وَالْاٰخِرُ وَالظَّاهِرُ وَالْبَاطِنُ ۚ الحدید ایت : ۳

کل عالم د حق ظاهر حق یې باطن شهٔ
دا باطن چې د ظاهر وجود معبود دے
د باطن د وجود حــد نهایت نشته
د ظاهـر وجود څرګند حد وحـدود دے
ظاهـری وجود مانند نمود لرینـه
د باطن وجود بې مثله بې نمود دے
حق باطن خلق ظاهر دي پهٔ عالم کښې
کل ظاهر مې د باطن بادشاه جنود دے
ظاهري ښیښکر بقا نهٔ لری قطي
د باطن بادشاه باقي دایم خلود دے
پر ښیښکر باندې لازم د شاه خدمت دے
بې خدمته خدمتګار شاداد نمرود دے
چې یې (مردد) تښتن ردکهٔ شقي شهٔ
چې تښتن لهٔ ځانه خوښ لري سعود دے
د هغه بنده یې سخ دے پهٔ دوه کونه
پهٔ جهان کښې چې مولا ځنې خشنود دے
خوشنودي به د مولا بیا مومي قطي
چې خوشنود نن له مولا په زیان وسود دے
کـهٔ یې یو ځله بنده بیاد کهٔ پهٔ عمر
د مخلص بنده له خدایه دا مقصود دے

— —

رضا به او بده در جبین گره بکشا که بر من و تو در اختیار
نکشود است - و محبت الله باید و محبت کونین
از دل بدر کن -

---

ترجمه : خپله رضا دهٔ ته وسپاره - د تندی
غوټې پرانیزه - چې دا ستا او زما په اختیار کښې
نهٔ ده - د الله تعالیٰ محبت پکار دے د کونینو
محبت د زړهٔ نه وباسه.

---

چې پرې یو نن د دنیا کل نیک و بد شي!
د دنیا له سود او زیانه (ربه) صمد شي!
غم ښادي به پرې یکسان وي په زړګیه
په دا حال به د بر راضي له لمر یولد شي!
چې دخدائے په خوښې خوښ شي خوښ یاٗ به شي
چې ئې خپل خوښي ته خوښ به سرمد شي
د سړي د زړهٔ خوښي د ځان بلا ده
له خوښیه نه خوښي پیدا بې حد شي

د دنیا ځیز به اخر لهٔ تا جدا کا
د دنیا ځیز خوښ ناخوښه (به) بې عدشي
غم اندوه د سړي کل پهٔ بېلتانهٔ کښې
د دنیا ځیز به آخر بیل بېل حد شي
بې مولی پهٔ دواړو کونو مینه مهٔ کړه
د دوو کونو محبت به دې لوئے سد شي
کهٔ دنیا عقبیٰ او دواړه کړې طلاقې
تو وصاله به د مولا دوست ترایډ شي
چې پهٔ مینه پهٔ دوه کونه نظر نهٔ کا
هغه کس به نن پسرو د محمّد شي
د کوثر اوبهٔ به وڅښي په بهشت کښې
چې ساقي د آب کوثر نبی احمد شي
د توحید پیاله به نوش کاندې بېشکه
چې مرید نن د روښان مرشد پهٔ ید شي
چې ظاهر باطن (د) یو وجوده ګوري
دا عارف اولوالابصار صاحب خرد شي
موحد نن تقید تعین نهٔ دے
چې قانع یا پهٔ نساء یا په امرد شي
کهٔ جماد نبات حیوان موجود بہ ملک کښې
د مخلص پهٔ نظر کل موجود احد شي

پهٔ کلام پورې به یار اغیار معلوم کړې
د روښانن دیار خبره بند پهٔ بند دے
شریعت ثابت کلام د پیغمبر شهٔ
د روښان یار پهٔ ثابت کلام بلند دے
تل د عرش کوسي پړ ملک به سر کانګی
چې ترې لاندې تل د زړهٔ براق سمند دے
بې دیداره پهٔ دوه کونه نهٔ خوښیږي
د مخلص ( د خپل اشنا ) پهٔ مخ سوګند دے

---

## دربیان انکه مجروح محبت را مرہمش بجز لقای دوست نیست و درمعنے ایت کریمه - یا اَیُّهَا الَّذِیْنَ اٰمَنُوْا اِنَّ مِنْ اَزْوَاجِکُمْ وَ اَوْلَادِکُمْ عَدُوًّا لَّکُمْ ( التغابن ایت : ۱۴ )

---

د محبت د زخمي دپاره دوست ملاقات ملهم دي او ددې ایت شریف پهٔ معنیٰ کښې ( اے دایمان خاوندانو پهٔ تحقیق سره ستاسو د ښځو او ستاسو د اولاد نه بعضې ستاسو دښمنان دي -

---

موحد تمام جهان یو وجود گوري
څوک يې لاس و پښې تنه څني يې خدشي
روح محیطه لهٔ اندامه دے باور کړه
دا مولی د جهان روح جهان جسد شي

---

در بیان انکه دلے که از نور معرفت خورسندی
یافت خورسندی دایم باشد ۰

---

کوم زړهٔ چې د معرفت د نور نه خوشحالی وموندہ نو
هغه یوه دایمی خوشحالي وموندہ -

---

چې يې زړهٔ د معرفت پهٔ نور خورسند دے
د هغه عارف پہ زړهٔ همېش انند دے
دَعارف د خوشی حد نهایت نشته
د دنیا د خوښی حد حدود څرګند دے
د عارف بنادي خوښي ده بې زواله
د دنیا پهٔ بنادی پورې غم پیوند دے

د دنیا په وصال خوښ سړے څو روځي
د هجران غم والله وه یې یو په چند دے
هر چي زړهٔ بد د دنیـــا په خیر ویا یلي
د عارف دانا همیش پوري ریښ خند دے
په سختۍ به یې روح ووځي له صورته
چي یې زړهٔ نن د ونیا په ځیز د بند دے
د ناصح مشفق په پند به عمل نه کا
هغه کس چي د دنیا په مستۍ برسند دے
چي د دین پر لار یې بیا ئے تکنیے شي
د نوسک تهتو نخل هارون چمند دے
بې مولا به یې څوک خلاص نه کا له قیده
چي بند کړے نوس د حرص په کمند دے
په تش لاس به خالي ولاړ شي له دې سرایه
چي عمل یې د حسد په اورسپند دے
چي د ذکر چراغ نه لري په زړهٔ کښې
د غافل په زړهٔ همیش د غفلت بند دے
چي د ذکر له دارو به نه رغیــږي
د غافل زړهٔ د غفلت په درد دردمند دے
عامیان پر زړهٔ رنځور کامل طبیب شهٔ
د عاجي د زړهٔ دارو د ذکر قند دے

چې يې زړۀ د محبت پۀ تيغ برغنده دے
ښه دېدن د يار ملهم د دغه ژغنده دے
بې ديداره به روغ نۀ شي کۀ باور کړې
چې پرې پورې د هجران د سرو تهنده دے
د خلاصې طمعه دې نۀ کا ترابده
هر چې بوخت د محبت د سو ښنس پۀ ونه دے
پۀ لامبو به چوي تېر شي لۀ دريابه
چې پر سر باندې يې اېښې سنګين پنده دے
چې يې بله اونه نۀ وي پۀ جوس کښې
پۀ هغه ګل کښې د (د) لوېې اونې رنده دے
هيڅ فائده به حُني نۀ مومي په قطعي
ناقص پير يې ونيول د اونې کنده دے
چې عارف د حق پۀ ذات شه يقين وکړه
دين دنيا مې د عارف د بخرې ونده دے
پس روي د کامل هۀ پرېږده مخلصه
د کامل ناسته تل پاس په نوګنده دے

---

ـــه هغه ګل کښے لوی و نــه رنــده دے

## دربیان سامع درمعنی کسے است که آواز بحر بلی مثل بشنود وتسبیح آن دریابد درمعنے ایت کریمه ز کُلَّ یَوْمٍ هُوَ فِیْ شَانٍ (الرحمن ، ایت ۲۹) پراواز او درکاراست .

---

د سامع پېژندنه ، سامع هغه دے چې د بلي مثله بحرآواز اوري او د هغه په تسبیح پوهیږي . ددې ایت شریف په معنیٰ کښې چې هغه هره ورځ په کار کښې لګیا دے .

---

چې په غوږ يې د بلي مثله دریا غږ دے
په معنیٰ کښې دا سامع تښتن د غوږ دے
قربیان د حق اواز اوري د هر څه
کو بعید نن نا اشنا د شاه په غږ دے
د اواز په راز تسبیح به وپوهیږي
هر چې نن د حقاني شاه په د رونږ دے
د بې حد په هستۍ هست اواز جنبش کا
په جهان کښې جن وانس یا فرښته مړ دے

د بې مثل بحر موج څهٔ عبث نهٔ کا
تل پهٔ زیرمه لګه پروسږ هسې په سر دې
هر اشیا ددهٔ پهٔ خواست موجود پیدا شي
دے خالق د اشیاو کهٔ د میږ دے
اے مخلصه بل شپږم اووم ئې حق دے
دا نګویان کهٔ سره ناست یا پنځه شپږ دے

---

**دربیان مدح ریاضت وانکه پهلوان وشجاع کسے است که نفس خودرا درشکنجه نموده است وانکه روح پدراست و نفس مادر است و فرزند الیشان دل است**

---

د ریاضت پهٔ مدح کښې — اودا چې پهلوان او بهادر هغه دے چې خپل نفس ئې پهٔ شکنجه کښې ساتلے وي. بل دا چې روح پلار دے او نفس مور ده او زړهٔ د دویٔ زوے دے۔

---

چې ترلے ئې د نوس حریص خر منځ دے
د روح پهٔ ریاضت ئې نوسک ترنځ دے

ذرهٔ او روح به ئې قوي شي په صورت کښې
چې ئې نوس د نګو د رياضت په رنځ دے
روح پدر نوئي ئې مادر دے په جهان کښې
ذرهٔ فرزند پیدا د روح نوسک ترمينځ دے
پهلوان شجاع هغه دے د ببلو!
هر چې نوس ئې په درون کړي شکنځ دے
اے مخلصه ذرهٔ د موں پر لوري زغلي
د دنيا په شير ئې تل دکه غولنځ دے

---

**دربیان انکه حق سبحانه ، ملاذ و معاذ غریب و بیچاره است و انکه صاحب توکل از غم روزی بی غم است و انکه یاری در هرکار از غیر حق - اِیاكَ نَسْتَعِينُ گوید دروغ گوی است -**

---

حق سبحانهٔ د غريبو او بې چارو د پناه ځائے دے -
د توکل څښتن د روزئ د غمه بې غمه دے . څوک
چې په هر کار کښې د غير حق يارى کوي او
اياک نستعين وائي نو هغه دروغژن دے -

---

بنده مولا دهر غريب عاجز معاذ دے
دے چاره د بې چاره هم ئې ملاذ دے
لهٔ جملهٔ و شر به وژغرے شي بې شکه
چي وروړے ئې مولئ وته عياذ دے
نن عارف سړے هغه دے د بـــدلو
چي لهٔ هر خـهٔ و مولئ ته نجذاذ دے
هغه کس د رزق لهٔ غمه شي بې غمه
چي ؤکَل لمّن ئې اتخاذ دے
چي بې خدايه د مدد اسره لهٔ بل کا
چي اياک نستعين بهٔ نهٔ وائي منداذ دے
په هر کار يارى لهٔ حق غواړه مخلصه
دَمولئ حکم پر هر کار کښې نفاذ دے
چي چرکوړي ضعيف ځان څني نهٔ مومي
د ظالم مثال کړ به شو يا حذاذ دے

---

ے وَمَن يَّتَوَكَّل عَلَى اللّٰه فَهُوَ حَسْبهٗ ط

( طلاق ايت ۳

ترجمه: چا چي به الله تعالئ توکل وکړو نو هم هغه ئې کافي دے

## بیان درمعنیٰ لا إلٰه إلّا الله وانکه گمان ویقین در یک دل نیاید ودرمعنیٰ این مصراع

## زنیکو هرچه صادر گشت نیکواست

د لا إلٰهَ إلّا الله پهٔ معنیٰ کښې : او داچې گمان او یقین پهٔ یو زړهٔ کښې نهٔ ځائیږي - او ددې مصرعې پهٔ معنیٰ کښې
د نېکانو نه چې څهٔ صادر شي هغه نیکي وي .

---

چې پهٔ لَا إلٰه ئې زړهٔ خلاص لهٔ اغیار شي
إلا الله به ئې پر زړهٔ باندې قرار شي
چې د غیر گمان ئې ووځي لهٔ خاطره
د یقین نور ئې پر زړهٔ باندې اظهار شي
پهٔ دا نور (به) حقیقت د اشیاء گوري
پهٔ معنیٰ کښې به عارف اولوا الابصار شي
پهٔ یوهٔ هستۍ به هست گل وخار وینې
پهٔ دا باغ کښې گل وخار دواړهٔ پکار شي
ضد تر ضد پورې معلوم شي پهٔ جهان کښې
تر اشرار پورې ښکاره ظاهر اخیار شي

که ګنځے دسړي دېر حصله پکار دے
دسړي کله حنظل زقوم پکار شي
هيڅ کار ئې کته مه زده کړ عارف ئې
دننګ کسی دانا له بده کاره عار شي
کل يو استاد دغ کړي دي باور کړه
په جهان کښې که جهود مسلم کفار شي
په جهان کښې څه شته واړه بايده وو
په عالم کښې دېر پکار کولي چمار شي
حق دانا دانشتر کار که که پوهېږې
دغه هسې جاري جبرې بې اختيار شي
حق فاعل صاحب اختيار دے باور وکړه
په اختيار ئې کل نقشونه په نګار شي
نقاش پټ نقش ښکاره شه په عالم کښې
په نقشون پورې څرګند نقاش معمار شي
چې نقشونه بې نقاشه ممکن نه دي
له نقشونه دنقاش وجود اعتبار شي
هر چې صنعه بې صانعه ګڼي وار وکه
ددانا په نظر دېر احمق حمار شي
په څه ذات به بې صفاته ګڼي روند دے
داجهان د ذات صفات مظهر انوار شي

اے مخلصه حق په ذات صفات یوګوره
هرچې دایقین لري هغه دین دار شي

---

وانکه از هستی جان وجهان واقف نیست به نزد عارفان
جماد است بدانکه حقیقت هر چیز یکے است و هر چیز مظهر آن
حقیقت است ۔

در هر عبادت که معرفت نیست
آن رسم عادت است عبادت نیست

هغه څوک چې دجان او جهان د هستۍ نه واقف نهٔ
وي د عارفانو په نزد خر دے د هرڅیز حقیقت یو
دے او هرڅیز د هغه حقیقت مظهر دے ۔

په هر عبادت کښې چې معرفت نهٔ وي
هغه رسم عادت وي عبادت نهٔ وي

---

هغه ذرهٔ چې نن د معرفت د فتر شي!
حقیقت به د هر څیز ورته اظهر شي

کل اشیاء به مظهر گوري په عالم کښې
په مظهر کښې به مولی ورته نشر شي
چې ظاهر باطن يې دواړه په نظر کښې
د عارف اولوالالباب صاحب بصر شي
چې د ذرې په ديد دحق هستي نه گوري
په قيامت به له ړندو سره حشر شي
چې په کوم حال کښې سفر وکا له تنه
پس له مرگه به يې حال احوال بهتر شي
په عقبیٰ کرله نه شي ځانته دا دے
په دنيا کښې دعقبیٰ د درمند کر شي
د عرفان تخم کامل ځځه وغواړه
هم له تخم نه زرغون شجر ثمر شي
عبادت بې معرفت رسم عادت دے
د عادت په عبادت غره اکثر شي
چې غره په عبادت شي له ما واوره
عبادت د ده دخدائے ترمیان لویے غر شي
عبادت بې معرفت لکه سراب دے
په سراب د تږي چرې حلقوم تر شي
عبادت بې معرفته نا قبول دے
په حشر به يې کل خير وار په شر شي

کهٔ د معرفت مایه پرې کړه نهٔ کا
د طاعت شو دهٔ به تخه سراسر شي
نن مایه د معرفت غواړه لهٔ پیره
پهٔ قیامت به دې شودهٔ وران چُغر شي
پهٔ دنیا کښې د عقبئ پهٔ چار ههٔ دے
هر چې نن یې د قیامت په کار باور شي
رسیدهٔ کامل ههٔ بوله مخلصه
چې د لې مې د عقبئ پهٔ حال خبر شي!

**انسان صغیر و انسان کبیر یک چیز است وانکه تمام عالم مانند صورت است وانسان دل اوست وحق تعالی روح عالم است اگرچه روح محیط تمام اعضا است اما تخت او دل است**

---

وړوکے انسان او لوئے انسان یو څیز دے ټول عالم د صورت پهٔ مثال دے او انسان یې زړهٔ دے - او حق تعالیٰ د عالم روح دے اګرچې روح پهٔ ټولو اعضاو محیط دے خو تخت یې زړهٔ دے۔

---

ل اص : چغر

چې ئې ذره د معرفت په نور منیر دے
په هستۍ د هر اشیاء علیم خبیر دے
په یوې هستۍ هست کل اشیاء گوری
په جهان کښې چې موجود صغیر کبیر دے
کل جهان لکه صورت انسان ئې ذره شي
حق په هر افراد محیط ذره ئې سریر دے
روح خارج نه داخل یاد وي په صورت کښې
د حق هسې رنګ کلیات سره نظیر دے
روح دریاب صورت ماهي دے په دریاب کښې
هم پکښې هم ترې جدا په بحر نیر دے
دا محیط دریا ارواح عالم صورت شه
دا عظیم ارواح د جسم په تدبیر دے
دا صورت لکه قلم د روح په لاس کښې
حرکت فعل ئې واړه له تدبیر دے
پخپل خواست ئې کښېنوي هم ئې ولاړ کا
دا غریب صورت د روح په لاس سیر دے
دا بې حد تر لویه لوري چې لیده شي
د صورت عالم ذره غوندې صغیر دے
په هر لوري ئې جاربا سي بې اختیاره
د صورت عالم بنده باد ئې امیر دے

پرهسر لوري چې رضا سوري ئې بيايي
كل عالم مثال گووار مولئ ئې هيں دے
هر زنده ئې دنفس پۀ مهار ونيو
بنۀ مولئ مانند سروان زنده بعيردے
دسروان پۀ لاس مهار پرسمه لارځي
پۀ سروان پسې دوان داوښ بهيردے
چې پۀ هره لاريې بيايې پسې دروي
دعاجز شترسروان پسې معيردے
څوک بهشت ځني دوزخ ته ځي مخلصه
دجمال جلال صفت ئې دستگير دے

---

در بيان انكه هركه از ديدار حق مسرور گردد بی پروا از بهشت وحور وقصور گردد — وانكه در بهشت بعد از لذت ديدار، هيچ لذت مثل لذت خوش آواز نخواهد بود ودگير در صفت فقر اختياری واضطراری گويد -

---

په بیان د هغه کس چې د حق په دیدار خوشحاله شي هغه د جنت، حورا و قصور نه بې پرواه شي او په جنت کښې د دیدار د لذت نه پس به هیڅ لذت د خوند اوان د لذت برابر نهٔ وي — بل د اختیاري او اضطراري فقر په صفت کښې بیان کولے شي.

---

هغه زړهٔ چې د دیدار په دید مسرور وي
بې پرواه به د بهشت د حور قصور وي
هغه ځینې چې شي حجاب د دوست له مخه
د عاشق ئې له هغهٔ ځینې نفور وي
چې مشغول وي کهٔ بې دوسته ځنې نشته
په جهان کهٔ زشت رویا و زیبا حور وي
د عاشق راحت دیدار په دواړه کونه
بې دیداره بل راحت باندې تنور وي
په بهشت له لذت د ېر لونه موجود دي
په دیدار لپسې د بنهٔ اوان سرور وي
د عارف دیدار راحت یا بنسهٔ اواز دے
د زاهد راحت شهوت میوه انګور وي
مستغني شي د دوو کونو لـه لـذته
چې منظور ئې د مولی بې مثله نور وي

چې دحق په نور ناظر نهٔ وي باور کړه
د دوو کونو لذتونه به ئې منظور وي
کهٔ څوک ملک و مالک دواړه د رته عرض کا
نهٔ مالکي به کا اختيار کهٔ ئې شعور وي
چې په فقر کښې ناظر د حق په نور شي
د براهيم په څېر فقير به خوښ شکور وي
چې ئې فقر اختياري نهٔ وي لهٔ حقه
که له فقر به شکوه کاندي معذور وي
چې ګيله شکوه له فقره کا پهٔ زړهٔ کښې
له هغو زړونو د فقر نور مستور وي
چې ئې فقر اختياري وي خوښ به وسي
د مضطر په فقير کښې د ... ضرور وي
عاقلان کسان هغه دي پهٔ جهان کښې
چې يې فقر اختياري د زړهٔ سرور وي
چې د نفس هواې ترکه کړه فقير دے
پهٔ جهان کښې کهٔ نسا (وي) يا ذکور وي
چې پر نفس ئې فتح بيا موند ه يقين کړه
هغه کس به پهٔ دوه کونه کښې منصور وي
نا اميد ئې له رحمت مهٔ حمه مخلصه
نا اميد يې دخدائے له رحمه لوئے فجور دے

## در مذمت جهل و جاهل و در صفت علم و عالم میفرماید ـ

د جهل او جاهل غندنه او د عالم او علم ستائنه کښې فرمائي ـ

---

د دانا کلام مېده د نادان لواړ وي
په خبره کښې نادان جاهل ښکاره وي
دانا کس له بدي چارې وجار وځي
دا نادان په بده چار کښې تېک ولاړ وي
و نادان وته بدي نه څرګنديږي
داناکس سره بينا ښځېل بيګاه وي
چې ښځېله ناپوهېږي نه پوهيږي
ناپوهي د ناپوهانو پر مخ ... وي
که د جهل دېوال لرې کا له مخه
نېک وبد به ورښکاره لکه توتاړ وي
چې رضا هغه مېوه په ځنې مومي
د غه علم د طوبى داونې جهاړ وي

چې د علم حاصل وکاندي عالم شي
دغه علم به دده د صورت بار وي
چې د علم کوټه ئې وجاروست لـه ځانه
پرې منعه د شیطان د نوسک دهار وي
چې د نوس شیطان ګوار پکښې جاروځي
دغه کس به د زړه پټې اوچار وي
څو حارس ئې پاس انفاس نشي مخلقه
دغافل د زړه پټې به تل دستار وي
د حکمت حرفونه نه پرې ښکاره کیږي
چې په فکر ددنیا ئې زړه چتار وي
چې د علم چراغ نه لري پر زړه کښې
د جاهل کس به په کومې وېنا ویار وي
په هغه بهار څوک خه لره هوس کا
چې په مخه ئې غارمه د سخت اهار وي

---

در بیان مذمت از وکبر وکینه و نماز باطن که اشارت و در صفتِ ذکر دوام است ولیقین در مدح بحر اعظم واز تسبیح اواز وان بحر چون باد وعالم چون جهاز است .

د خواهش، کبر او کینې په غندنه کښې، او د باطني نمونځ چې اشارت او د دوامي ذکر او یقین په صفت کښې او د بحر اعظم په مدح کښې او څه د آواز د تسبیح په باره کښې او دا چې هغه بحر لکه باد دې او عالم لکه جهاز دے۔

---

چې يې ذره خاپي له کبره هم له از شي
د رحمت ور پرهغه باندې فراز شي
تل د آز تښتن نیازمند وي په جهان کښې
د بې آز صاحب له دوو کونو بې نیاز شي
چې کینه کبر خواهش يې له ذره ووپوست
په دنیا کښې د بهشت ور باندې باز شي
د یقین وزر که بیا مومي له خدایه
په باطن به وا علا وته پرواز شي
چې مطلوب يې شي بزرګ ته ځه زما وارو
پر طالب باندې اسان شیب و فراز شي
که دعوی د عاشقۍ کړې ترخان تېر شه
عاشقان د یار پر مخ باندې جان باز شي
که تښتن يې پر تخت کښېښنوي له مینې
چې خپل حد حدود په ځانے لري ایاز شي

چې ظاهر باطن ئې دواړه پاکېږه شو
په تحقیق ددې ظاهر نماز جواز شي
دغه نماز ادا شي بې نقصانه
چې ئې زړهٔ له غېره فکره واوړي باز شي
له صلوٰة له بنے واروه کـه مومن ئې
چې د زړهٔ په حضور نمونځ نهٔ کا بې نماز شي
له یوهٔ بحره غو تېپه څرګنـدېږي
له یوهٔ بحره آواز په څو انګاز شي
دَ زړهٔ غوږ کهٔ دې شنوا شي وبه واروې
په هر نے کېنې دیوهٔ نائې اواز شي
چې اواز لهٔ غېره نه اروې په غوږو
هغه کس ګودم مئېن پر سوز و ساز شي
چې ئې فهم په تسبیح د هر اواز وي
و عارف ته هر اواز بانګ نماز شي
په هر لورئې چې رضا هوري ئې بیا یي
دا بې مثله بحر باد عالم جهاز شي
اے مخلصه لهٔ مخلوقه اسره پرې کړه
د بېکس غریب غمخوار غریب نـواز شي

در ملامت کبر و متکبر گوید و انکه هر کمال را زوال در پے است ۔

دکبر او متکبر دغندنې پهقله اودا چې هرکمال لره زوال دے ۔

---

چې دکبر لوړ غونډ ه د وته وخيږي
بيا اخر به له دغه لوړو وغوړيږي
په کمال پسې زوال دے يقين وکړه
کبرجن به دخپل کبر جزا تيږي
که ئې نن دکبر باد له زړه وندوبست
عاقبت به ئې دکبر باد وبيږي
که دکبر باد پڅ نه ديې ) په ذوندو دے
دا پڅ نے به د مرګ په روح ومينږي
د دنيا په مال غره مه شه مخلصه
د دنيا مال او چو شکو غونډې دينږي

---

## در بیان وصف ذکر خفی و مذمت کبر و بخل وحسد گوید ۔

د خفي ذکر د وصف او د کبر، بخل، او حسد
د غندنې پحقله ۔

هغه کس چې تن پر زړهٔ بانديې عسس شي
او مشغول به خفي ذکر د نفس شي
چې يې ذکر شي کوتوال د زړهٔ په ملک کښې
د زړهٔ ملک به يې پهٔ امن له وسوس شي
شيطاني نفساني فکر دَ زړهٔ غلونه
دغه غلونه به يې لرې له جوس شي
چې حسد بخل کينه کا لهٔ زړهٔ لرې
دَ عارف پهٔ زړهٔ به نوې تل هوس شي
هر چې تن کبر کينه لري پر زړهٔ کښې
هغه کس به د دوزخ د اتش خس شي
د توتي د زړکي مثل پر ميوه وي
پر مرداري بانديې مينه د کرګس شي

چې د فقر دولت بیامومي له حقه
پر شړیه به راضي تر(د) بنه اطلس شي
په باطن به ئې ذره پاک وسي له شرکه
چې همېش ئې په محمد د ذره اودس شي
الا الله به موجود کوري په هر حال کښې
چې په لا اله نفي د تن قفس شي
په شوره زمکه به گل نه شي مخلصه
نه ناکس به په تعلیم د دانا کس شي

---

دربیان انکه هرکه بذکر خدائے تعالیٰ باشد وعدهٔ خدا است)
که دل او را از وسوسهٔ خناس نگاه دارد اوبه حقیقت چون
عبدالله ابن عباس است یکی از ربا دو عالم اصحاب بود
عم زادهٔ پیغمبر بود علیه السلام ۔ پیغمبر علیه السلام دوست میداشت
المرء مع من احب درباب او فرموده ، ودیگر انکه هرکه عبادت
حق تعالیٰ بی طمع و اجر (می کند) بمرتبه خضر والیاس برسد۔

څوک چې دالله تعالیٰ په ذکر مشغول وي نو د
خدائے داوعده ده چې هغه به دشيطان د
وسوسو نه بچ ساتي . هغه دعبدالله ابن عباس
په حقيقت دے څوک چې يو زاهد اوعالم اصحابي
وُ . دپيغمبر عليه السّلام دتره ذوے وُ . دپيغمبر عليه السلام
سره يې مينه وه "سرے دهغه چا سره ملګرے وي
چې دچا سره يې مينه وي" دهغه په باب يې فرمائيلي
دي او بله داچې څوک بغير دڅه طمعې اجر د حق تعالیٰ
عبادت کوي هغه به دخمس او الياس مرتبې ته رسي.

چې يې زړه په ذکر زغرېږي له خناس دے
په معنیٰ کښې عبدالله بن عباس دے
چې د رزق غم يې پو زړه کښې پا تو نشه
په يقين کښې هغه مړ ترهرچا پاس دے
د ظاهر باطن نعمت به پرې تمام کا
چې وشلے يې د خدائے حمد وسپاس دے
جمعيت به د زړه بيا مومي له خدايه
چې مشغول په ذکر فکر پاس انفاس دے
صفايي يې زړه موندلې ده له زنګه
چې توسلے يې د ذکر په الماس دے

که څوک کسب ته هوس لري پر ذره کښې
په تحقیق د دوارو کسب علم راس دے
په دولت چې ښادېږ ګوري په دنیا کښې
په باطن کښې داځو بښت نهٔ دے اماس دے
چې د پیر کامل له نغوتي يې جا دباسي
بې ګمانه هغه کس خناس جلاس دے
د شیطان د ګروه کینه کبر دستور شهٔ
چې کینه کبر يې لري که اناس دے
د سړي ذره حق خپل فکر لره جوړ کهٔ
هر چې ذره يې په وسوس مشغول نشاس دے
بد خناس جلاس ګراس د ذره په ملک کښې
د غافل په ذره تل دوره د ګراس دے
عمارت دې باندې پورته که بې ويرې
چې محکم يې پر زمین الښبے اساس دے
چې بنیاد د شریعت يې محکم نهٔ وي
د عرفان دې د عمارت باندې هراس دے
چې د نوس په اس سوري نهٔ کاچمند دے
د رایض د نص توسن ګودم تېزاس دے
چې يې معرفت حاصل نهٔ که حق پوش دے
مسلمان په حقیقت کښې حق شناس دے

اے مخلصه له حرامو پرهيزګار شه
چې مودار حلال پرې يو ګروه دګناس دے
هغه څين ګنهه حرام چې پرې غافل شي
په جهان کښې که حنظل يا انناس دے

---

## دربیان آنکه مذمت و ویلا بر سخت دل وسیاه دل وانکه ذکر خدائے چراغ است و دل ذاکر فانوس است .

---

د سخت او تور زړهٔ د غندنې او هلاکت په قله —
او دا چې د خدائے ذکر چراغ دے او د ذاکر زړهٔ فانوس دے

---

چې د طبيعت پر کړهٔ باندې محبوس دے
او نيولے يې د دهٔ ننګ و ناموس دے
د بزرګانو له طريقه جار وتلے
شريعت يې پرې ووستې لکه بوس دے

چې ئې طبيعت پر شريعت ثابت کـهٔ
چې نکاح ئې د اسلام ددې عروس دے
چې خپل ځنې (ئې) پټ وي نرئې ګودي
هغه کس ورپردي عيب وته جاسوس دے
دا وبـلا پرهغه کس شهٔ په قرآن کښې
چې ئې زړهٔ ترکاڼي سخت تور ترابنوس دے
همېشه پکښې چراغ د ذکر بـل وي¹
د ذاکر د زړهٔ کونبن مثال فانوس دے
دروغژن له دروغژن سره خوښي وي
له ريښتينه دروغژن همېش په روس دے
چې د سپي ترلکۍ لاندې ژوندون غواړي
هغه کس نن په مذهب د جالينوس دے
چې دا هسې وينا وائې باور وکـړه
هغه کس د اخرت له بنو مايوس دے
اخـرت خـېراً بـقا وارو له حقه
که ايمان دې په قادرمولیٰ قدوس دے
د دنيا له اهـله تښته خودې توان شي
د دنيا داهـلو خوی مکرو سالوس دے
زر به کښته په ساعت کښې شي له موجه
د دنيا دولت له بنهٔ لوړ د بلهوس دے

---

¹ اص:- همېشه د ذکر چراغ پکښې بلېږي

لهٔ کفنه به زیات نهٔ وړي لهٔ جهانه
پهٔ حشم دولت کهٔ زیات تر کیکاوس دے
نهٔ[1] دَسر پهٔ. ورکول به محبوب موړي
چي پر سر به حرفه وکاندي نحوس دے
وحضور ته پهٔ ادب دنیا باندہ دے
چي حضور به په نعره بولي خروس دے
دَ مخلّص وړنا به نهٔ اروي پهٔ غوږو
چي دَ طبیعت پهٔ کړهٔ باندې محبوس دے
طبیعت د نوس هوا دے کهٔ باور کړې
چي د نوس په نغوته چارکاندي محبوس دے

---

## وله

---

سخت نیوونے د دنیا د ختو ښنې دے
د غه ښنې کوم سر ښناک تر لاسته سر ښنې دے
بې د خدائے لهٔ عنایته به ونهٔ ووځې
پهٔ صورت کهٔ زوړ ورتر کا وښنې دے

---

[1] اص : که

فراغت به څنې وغواړي په مهر
هرچې نن د سحر کړي د دنيا خوښ[1] دے
تر ابده به بې درد په قرار نشي
چې وهلے د حرص لړم په ښېښ دے
اے مخلصه چې د دين په چار هوښيار دے
هغه کس مې د دنيا په کار کښې ښېښ دے

---

در بيان انکه هرکه بذکر شاغل هميش است انکس حاضر بحق غايب از خويش است ـ حقيقت درويش انست که ذات وصفات خود را بحق داده باشد و موتوا قبل ان تموتوا شده از هستي وخود پرستي دسته باشد وبه حقيقت خود را تسليم کرده او مسلمان بوده باشد الا نه که مسلمان گردد ـ

---

[1] اص : خوښ

هغه څوک چې همېشه په ذکر سره مشغول وي هغه په حق سره حاضر او د خپله ځانه غايب وي . په حقيقت کښې درويش هغه دے چې خپل ذات او صفات ئې په حق کښې فنا کړي وي او د مرګ نه مخکښې مړشوے وي . د هستئ او خود پرستئ نه خلاص شوے وي او ځان ئې په حقيقت منلے او مسلمان شوے وي مګر نه چې صرف مسلمان وي .

---

چې ئې ذړه مشغول په ذکر کښې همېش وي
هغه کس حاضر د حق غايب له خوېش وي
چې خودي د ذات صفات لري تونګر شه
چې خپل ذات صفات د حق ورکا درويش وي
چې تسليم ئې که خپل ذات صفات د حق ته
د عذاب راحت له ملکه تللے پېش وي
د اسلام معنئ تسليم دے که پوهېږې
د تسليم صاحب د شاه نبي پرکېش وي
د تسليم تښتي خلاص شوے که باور کړې
په جهان کښې د شېطان نوسک له رېش وي
د انيستي حق پرستي مسلماني شوه
د اهستي خود پرستي ترکفر بېش وي

د مولٰی پهٔ عنایت به ځنې خلاص شي
د هستۍ د کفر بند نېوونے ښش وي
د شیطان د نوس ښکر پرې دایم وولـه
دا صورت ئې د نفس د غښیو کښش وي
د شیطان د نوس ښکر ځنې حــذر کا
د نفس غښے ئې تېغ د ذکر ښش وي
د شیطان د نوس ښکر پرې پورې خاندي
د غافل غښے بې تېغ بې پرو سرښش وي
د دروېشان په درباب راشه کهٔ طالب ئې
پهٔ درباب ئې د پولاد د تېغو وښش وي
اے مخلقه نېک اندېش و بخر پـیوږه
لهٔ دې وېشه بې بخره چې بد اندېش وي
بې لیده وچې بدګمان کا په بزرګانـو
بد اندېش بې عقله کم ترګاو مېش وي

---

**دربیان آنکه هر یکے مطلوبے دارد و هر یکے پے مطلوب خود تالاشے دارد ۰**

---

ـه اص: یوو

پهٔ بیان د دې چې هر سړے یو مطلوب لري
او هر یو بخیل مطلوب پسې لټون کوي ۔

---

د طالب پهٔ خپل مطلوب پسې تالاش دے
دا وېنا پر خاص و عامو باندې فاش دے
ځنې عقل د معاد غواړي لهٔ خدایه
د چا حب محبوب مطلوب عقل معاش دے
یو تالاش کا د بهشت پهٔ حاصلولو
د چا مینه لهٔ دنیا پسې او باش دے
د دنیا اهل د دین پهٔ چار ناپوهٔ شه
د بهشت اهل پکار د دنیا واش دے
یو بخیل دنیا اندون دے پهٔ جهان کښې
یو دنیا باز پهٔ خاص و عام باندې قلاش دے
یو پهٔ کور د ښه خوب کاندي بې غمه
یو پهٔ در باندې پهره لري دورباش دے
یو ملهم د خوږو زړونو دے باور کړه
یو د زړونو کسانې شه دلخراش دے
ښه او بد نقشونه ډېر دي پهٔ عالم کښې
د کل نقشونو پهٔ جهان کښې یو نقاش دے

د ذړهٔ ملک به ئې په امن او امـــان وي
چې همېش ئې نفس شېطان سره پرخاش دے
چې د ذکر ویاړ نهٔ لري دوړانـدې
د غافـل د ذړهٔ پـښې همېشه لاش دے
چې صورت ئې بنا ښسته سیرت ئې نهٔ وي
په ګلونو کښې بد بوی ګل د خشخاش دے
کامل نمر د معرفت دے په جهان کښې
چې د نمر نور ئې بند نه یشي خفاش دے
اے مخلصه چې په لا نفي هست نهٔ شهٔ
په معنیٰ کښې بت پرست هم بت تراش دے

---

در بیان وصف لقای وسخن محبوب وآنکه عقل رسیده بر دیگ جوشند وعشق سرپوش است .

---

د محبوب سره د ملاقات او خبرو د وصف بعقله او دا چې رسید لے عقل په دېګ یشیږي او عشق پرې سرپوښ دے .

---

پرهر لوري د بحر دريا خروش دے
د عارف سامع خوښي په دا سروش دے
د محبوب ديدن طعام اوازئې نکولے
د معشوق په اواز مست عاشق مدهوش دے
ځان جهان دوست او دښمن له ذره نه ووځي
د اوازپه لذت مست اهو بې هوش دے
ښه وينا ديار شرينه ترعسل شوه
هم لذيزه ترخرما انګور اب جوش دے
کوم رود کے ګرځندے دروي په غورځې کښې
لوئے درياب په قرار دروي خاموش دے
که د عشق په اور د ذره ديګ ئې يشيږي
رسيده عقل د ذره پر ديګ سرپوش دے
چې دمعرفت پياله ئې وزغمله
د دانا په نظر عين دريا نوش دے
که طالب ئې د وحدت دميو وارو ه
پير روښان د دغه ميو مے فروش دے
چې د نوس مزرے دې واچاوه په چاه کښې
د عاقل عقل کم چرې ترخرګوش دے
هر اواز د هو تسبيح وائې مخلصه
چې د ذره فهم پرې نه لري اتروش دے

له اص: غورځي

بې لیدو چې څڼې ولاړ شي کم بخت دي
هر چې مست ځه محبوبه ئې تر اغوش دے

## دربیان وصف پیر کامل وانکه تا فنا فی الله و بقا بالله نه گردد موحد نشود -

د کامل پیر د وصف په قله او دا چې تر څو فنا فی الله او بقا بالله نشي موحد کېدے نشي -

چې مرید نن د کامل پیر په اخلاص شي
په یقین به د گمان له تیارې خلاص شي
روحاني جامه به بیا مومي لطیفه
پر خاص زر به ئې بدل د تن رصاص شي[1]
چې ئې غیر په خاطر کښې موجود نه وي
په باطن کښې به عارف د حق خواص شي
چې فنا فی الله بقا بالله شي قطعي
موحد به په قطار د خاص الخاص شي

[1] ر ص : پر خاص پر زر به بدل د تن رصاص شے

چې په هر لوري ئې خېل مخ ګوري په سترګو
موحد به له هوسه په رقاص شي
موحد چې دکثرت له وهمه تښتي
د وحدت مقام ئې کهف د مناص شي
اے مخلصه له ریا به خلاص سې موسي
چې خپل ځان درته ښکاره کل عام وخاص شي[1]

---

## دربیان وصف یقین واعراض نمودن از گمان ونتیجه یافتن ازان -

---

د یقین د وصف او ګمان نه د ډډې او ددې نه د نتیجې د موندلو په حقله -

---

هغه ذره چې له ګمانه په اعراض دے
د یقین فیض ئې موندلے له فیاض دے

---

[1] اص: کل د عام خاص شي

چې نظر يې د محبوب په جمال پرېوت[1]
بېناري شو د بهشت له بڼه رياض دے
د عاشق په زړه د غيرې فکر نشته
غير الله يې له زړه سکينتي په مقراض دے
چې دلا په مقراض غيرې کل وسکښي
هغه خلاص ن د کمان شک له امراض دے
چې يقين يې د مرشد په تلقين وشه
پاک له غيره د مخلص د زړه بياض دے

---

## دربيان انکه از اواز پير کامل بيدار گشت بسوی حق شناخت

په بيان ددې چې څوک د کامل پير په اواز بېدار شه او د حق لورې ورېژند -

---

[1] اص : پرووت

هر چې نن د پیر کامل په غږ ایقاظ شي
هغه کس به د مولیٰ پر لور اتکاظ شي
د عرفان چراغ به ورکاندي د ورانده
د مولیٰ له بنه دیداره به احاظ شي!
د اصورت مثال الفاظ روح ئې معنیٰ ده
د معنیٰ مقصود حاصل نن له الفاظ شي
روښنائي به د زړه بیا موږ باور کړه
چې ئې ذکر نن پر زړه باندې لظاظ شي
اې مخلصه له غفلته د حق ځغوره
په غفلت جهل د زړه او به اغلاظ شي

---

## در بیان وصف ملک دنیا وانکه هیچ حکیم علاج مرگ نمیداند

---

د دنیا د ملک د وصف په قله او داچې هیڅ حکیم د مرګ په علاج نه پوهیږي ۔

---

د دنیا عجب رباط دے
یا د پهٔ پل یا پهٔ صراط دے
دوست د نښه سره پښېږي
تنګ کوتاه ئې انبساط دے
بقائي ځني مهٔ غواړه
عمارت ئې لهٔ ضغاط دے
د مرګ علاج پرې نهٔ شي
کهٔ لقمان حکیم بقراط دے
ترمرګ پورې ناچاره
کهٔ قبطي ګروه کهٔ اسباط دے
د مرګ شربه ئې پرې نهٔ ږدي
کهٔ بې دل وي یا عطاط دے
چې اخر لهٔ خلقه بیل شهٔ
بې هوده واړهٔ اختلاط دے
د دنیا پهٔ کار چست ګرځي
چې ئې حب ترحد افراط دے
نیمه خوا به ځني درومي
خم قامت کهٔ پا شطاط دے
لهٔ مرګه نهٔ خلاصېږي
کهٔ کم ګوے دے یا سلاط دے
اے مخلصه تګ پرې ګران شهٔ
د مرګي باریک زراط دے

دربیان انکه هرکه در راه شریعت ثابت شود از طریقه کفر برآمد وآنکه بدست کامل توبه کرد وتایب شد. شریعت را طی کرد بمقام طریقت رسید چنانچه گفته اند استاد در شریعت است و پیر در طریقت وصاحب را سالک گویند وانکه بذکر خفی که ذکر دوام است مشاغل شد واز زمره ذاکران درآمد صاحب حقیقت گردید وانکه بذکر خود یقین کند هستی هر اشیا بروی عیان گردد ومکشوف شود در معرفت برادی او کشاده گردد وصاحب معرفت شود وانکه هر آواز از بحر بی مثل شنود عارف سامع گردد وانکه تن خود را لاحول ولاقوت دید ان موتوا قبل ان تموتوا گردید صاحب مقام وصلت شود عارف واصل گشت وانکه بذکر مذکور شاغل شد عارف موحد گردد.

---

د هر هغه چا په قله چې د شریعت په لار کښې ثابت شو نو د کفر د لارې نه را ووت او هغه څوک چې د کامل په لاس یې توبه وویسته د شریعت نه را تېر شو نو د طریقت مقام

ته را ورسېږ څکه وئیلے شوي دي چې استاد په شریعت کښې وي ، پیر په طریقت کښې وي او صاحب ته سالک وائي او هغه څوک چې په خفي ذکر چې دوامي ذکر دے کښې مشغول شو او د ذاکرانو په زمره کښې راغلو نو د "حقیقت صاحب" وګرځېږ او هغه څوک چې پخپل ذکر یقین کوي نو د هر څیز هستي په هغهٔ ښکاره او مکشوف شي۔ او د معرفت ور هغهٔ ته پرانستے شي او د معرفت صاحب شي او هر هغه څوک چې بې مثله دریاب نه اوړي اوري هغه سامع عارف شي او هغه څوک چې خپل تن لاحول ولا قوت ووېني هغه "موتوا قبل ان تموت" شي او د وصلت د مقام صاحب شي او عارف واصل وګرځي او هغه څوک چې د ذاکر په ذکر مشغول شي موحد عارف وګرځي ۔

---

چې روان ئې تن د شــرع په شارع شي
او زبان ئې له دروغ فحش مانع شي
د کافرلهٔ ګروهه بیل شهٔ واسلام ته
چې په شرع ئې عمل پر زړهٔ خاشع شي
چې توبه یې د کامل پیر په لاس وکړه
په سالکو به داخل تایب فارغ شي

د ذاکرو مرتبه به سالک مومي
چې په دم له خفي ذکر منافع شي
له غفلته به توبه وکا بې شکه
چې ذاکر په دایم ذکر کښې قانع شي
چې د ذکر چراغ تل لري دورانده
حقیقت به د هر شین ورته جالع شي
حقیقت د هر اشیاء هستي د حق دے
په هر شین کښې به هستي ورته طالع شي
بسته در د معرفت به کشاد مومي
په هستیه به عارف د لوے صانع شي
چې د معرفت افتاب پرې بالدې وخوت
په هر څه کښې به یو مخ ورته لامع شي
هر اواز چې له بې مثله بخزه اوري
هغه کس به مقرب عارف سامع شي
چې لاحول ولاقوت ئې صورت وکوت
په هستۍ به د مولئ قائم راکع شي
چې له مرګه بخوا ومري وصال مومي
د عارف واصل هر کار ئې په واسع شي
یګانګي به نن حاصله کا مخلصه
چې ئې ذکر د مذکور ذکر جامع شي

## دربیان وصف فراخي دل مومن هرکه صاحب دل این دل نباشد درمعنیٰ طفل شیر باشد۔

---

دمومن دفراخ زړهٔ دوصف بحقله ز دزړهٔ هرصاحب چي دا زړهٔ نهٔ لري۔هغه پهٔ معنیٰ کښې دتي ماشوم دے۔

---

دمومن زړهٔ ئې ترعرش کرسي وسیع دے
دمومن پهٔ زړهٔ کښې ځائے بصیرسمیع دے
دحق ذات پهٔ اسمان زمکه کښې ځائے نهٔ شهٔ
دمومن پهٔ زړهٔ کښې ځائے شهٔ دابدیع دے
دے بې حد دریاپه خاشکي کښې ځائے وکړهٔ
دغه خاشکے پهٔ باطن کښې ډېروسیع دے
کهٔ تبه د افتاب کمه ځرګندیږي
دافتاب شعاع محیطه لهٔ جمیع دے
چي ددې زړهٔ تښتن نهٔ وي پهٔ جهان کښې
پهٔ معنیٰ کښې لکه کم طفل رضیع دے

دغه ذرهٔ به قطي بیا سوې باورکړه
هر چې نن د پیر کامل مرشد مطیع دے
کهٔ طالب د دغه ذرهٔ يې لهٔ سا واروه
د پیر کامل ) لره ورځه رحیم شفیع دے
معرفت به د نوے ذرهٔ دلې حاصل کړې
پیر کامل د خپر وکار وته سریع دے
د بنهٔ بد اتکل مخلص وته څرګند شهٔ
د ناقص فصل خریف کامل ربیع دے

---

## درصفت بیان گلهای ملک دنیا وبے وفائی وبی استقلال عمر وجوانی دردنیا

---

د دنیا د ملک د ګلونو، او په دنیا کښې د عمر او ځوانئ د بې وفایئ او بې استقلالئ بیان .

---

د دنیا د ملک بنا نُسته د دګلو) باغ دے
د هر ګل په ذره کې ایښے د مرګ داغ دے
هیڅ زندہ په جهان نشته که باور کړي
چې په دا ژوندون کې زړه له مرګ فراغ دے
هغه خوب بې غم پسوکا په دنیا کښې
چې دایم پسې په څو د مرګ کزاغ دے
که د مرګ د پیالے دور ورشي وځښي
په خپل دور هر یو ځښلے (دا) ایاغ دے
هر یو له لره به مرګ ناګاهان ورشي
هر زندہ ته د مرګي پیغام بلاغ دے
عاقبت به د ژوندون چراغ ووژني
چې د مرګ د باد په لار کښې یې چراغ دے
د مرګي په لاس به کښېښوچې خلاص به نشي
هر چې تښتي ن ددم په سخت تراغ دے
هر چې عمر په دنیا کښې د بوا وډ دغواړي
په معنیٰ کښې هغه کس په مثال زاغ دے
چې خزان د پیری شته دے په جهان کښې
بې سوده دي د ځواني په باغ دماغ دے

---

له اص : بسام ؟ یا بې نیام ؟

پهٔ لږ دوځ کښې ئې رنګ تغیر تبدیل شي
د څوانۍ مانند سبزي د کښت وراغ دے
پس له مرګه به پښېمان ډېر شي مخلصه
چې مشغول نن د دنیا پهٔ لعب ولاغ دے

---

## دربیان معیت حق تعالیٰ با خلق و آنکه عالم علامت حق تعالیٰ است .

---

د خلق سره دحق د معیت پحقله او داچې عالم دحق تعالیٰ علامت دے ۔

---

د مولیٰ مثال سیاهي عالم حروف دے
د روښان پر یا دئې روغ معنیٰ مکشوف دے
دې سیاهۍ د حرفونو صورت وینو
د سیاهۍ لهٔ غم ولاړ بحر معروف دے
کل حرفونه لهٔ سیاهۍ موجود شوي
دا عارف ځکه پهٔ ټول[1] حروف رؤف دے

---

[1] اص : هر

کۀ عارف ئې ناحق ظلم په چامه کړه
د ظالم د زړۀ افتاب ګرفته خسوف دے
د سیاه دِل سرې هیڅ مهر پر زړۀ نۀ وي
هر عارف په خلق الله باندې عطوف دے
د عالم معنی نینان دے په لغت کښې
دے نینان دے بې نینان که تر و حوف دے
هر اشیاء نینان د حق دے په جهان کښې
په نینان ئې لویه مینه چې فیلسوف دے
هر اشیا ئې د جلال جمال مظهر شه
کۀ دانا ئې ظرف اشیاء صفات مظروف دے
کۀ په څنو کښې جلال خبر شو کنه کۀ
بیا په څنو کښې جمال ګوره معطوف دے
یو ذات دوه ئې صفات دې باور وکړه
په صفات کښې ئې بې مثله ذات مغلوب دے
هیڅ بیوره د ذات صفات تر میانه مکړه
کۀ په علم د توحید شوے وقوف دے
چې توحید علم ئې نۀ وي څنې تښته
کۀ اغوستے یې خرقه جبه د صوف دے
د حیات اوبۀ پرې وکاږه مخلصه
دا نفس مثال رسن ذکر مجوف دے

در بیان آنکه هرکه بار تعلق کونین از دوش انداخت درمیان سالکان سبک تر رود و سابق تر گردد درمعنی این بیت شیخ مصلح الدین شیرازی

تعلق حجاب است بے حاصلے
چو پیوند ها بگسلے واصلے

وآنکه محبت حق تعالیٰ به توکل وابسته است وآنکه باریک بین کسیست که درحقیقتِ اشیاء واقف بوده باشد۔

---

د هغه چا بحقله چې دَ دَوارو کونو بار ئې د اوږو نه کوز کړو
هغه د سالکانو په مینځ کښې دَ ټولو نه ګړندے او وړومبے شو۔
په دې معنیٰ د شیخ مصلح الدین شیرازئ بیت دے

بیت :

د حجاب تعلق يوه بې حاصلي ده ۔هرچې پیوند ونه وُسولئ نو
واصل به شي ـ او داچې دحق تعالیٰ محبت د توکل سره تړلے دے او
باریک بین هغه دے چې دڅیزونو دحقیقت نه واقف شوے وي۔

چې یې زړهٔ خلاص د دنیا له علایق شي
پهٔ سالکو کښې به دا سالک سابق شي
د دوو کونو علایق به لهٔ زړهٔ پرې کا
چې د هسې شهنشاه پر مخ عاشق شي
چې دَ دوو کونو بار کوز کاندي لهٔ سره
خوره رنګ سرے پر لاره سوابق شي
هر چې حب یې د کونین لهٔ زړهٔ نه وو بوست
د مولیٰ پهٔ محبت کښې به صادق شي
تعلق حجاب یاد کړے دے بزرګانو
بې حجابه به عاشق تارک لاحق شي
محبوبا به یې ناز یوسي پهٔ دوه کونه
هغه کس چې نن بې نیاز له خلایق شي
چې د رزق زېرمه یې پرېښوه پر خاے کښېناست
د هغهٔ د رزق پهٔ زېرمه به رازق شي
چې یې توکل په خدائے وکه باور کړه
کهٔ دعویٰ د محبت کاندي لایق شي
لهٔ هغه ګروهه به پاڅي په قیامت کښې
چې پهٔ خوي لهٔ هغه قومه موافق شي
د صحبت تاثیر وګوره پهٔ عالم کښې
هر زنده د مورو پلار په لفظ باطن شي

دسپدهٔ عارف هغه دي د بلـــو
چي خبر نن دهرځین په حقائق شي
باریک بین سرے هغه دے په جهان کښې
چي دانا ئې د معنئ په دقـايق شي
دغفلت له بده رنځه به ئې خلاص کا
چي طبيب ئې ميا روښان کامل حاذق شي
په رښتيا مقصودربه) بيا موسې مخلصه
چي مرشد ئې خپل عذرا طالب وامق شي

---

در بيان وصف قدرت باری تعالیٰ وعظمت
ذات نامنتها ای -

---

د باري تعالیٰ د قـدرت او دهغه د ذات لاانتها
عظمت د وصف يځقله .

---

چې ئې ذرهٔ د معرفت په نور رونق دے
په هرڅه کښې ننداره[1] چې د ذات مطلق دے
په قدرت کښې د قادر جلوه ښکاره ده
په صفت پورې صانع معلوم الحق دے
له قدرته به قادر وګورې قطعي
چې نظر په قدرت نه لري احمق دے
حق بینا کړې و قدرت وته ئې ګوره
پر هوا باندې ولاړ ګنبد ازرق دے
په اسمان کښې ئې افتاب مهتاب روان کړ
پر زمین ئې له ګردش رڼا غسق دے
لوئے اسمان ګوره سرپوښ پرې باندې ایښے
درته زمکه پر اوبه باندې طبق دے
کوه کاف ګوره یو لوټے راجا د پښتلے
شور دریاب له اوبو پُر ژور خندق دے
دا دریاب تر لویه پورې چې لیده کړ شي
دا زمین پر لوئے دریاب کښې کم زورق دے
چې عظمت د بې حد ګورم پر ذرهٔ کښې
کل عالم راته ذره ریزه ترېق دے

---

[1] اص : ننداره چې

د عقبیٰ تر ژوندون پورې که باور کړې
د دنیا عمر ژوندون کم تر رمق دے
که د تن جامه شي څیرې باک يې نشته
روح اغوستے نوراني لطیف یلمق دے
روح له امر مرګ يې نشته تر ابده
له مرشده ما تحقیق کړې سبق دے
ډوډۍ ځکه دانایانو نامه کښېښوه
چې په اصل کښې له رنځ شوے مشتق دے
د لطیف مایه الطف دے باور وکړه
د کثیف مایه تراب مني علق دے
په یوې هستیه هست هم حرکت کا
پر بساط باندې که شه فرزین بیرق دے
چې د خپل ژوندون له جوبه خبر نه وي
په دنیا کښې هغه پیر ګرفته ساحق دے
د حق لار به درښکاره کا ندي طالبه
میا روښان داعي هادي کامل برحق دے
په کلام يې حق باطل ظاهر معلوم شي
د مرشد کامل داهسې رنګ منطق دے
و دانا و ته څرګند پټ له جاهله
د مخلص عارف کلام نغښتے معلق دے

# دربیان وصف خاتم نبوت و ولایت علیه

چې په سر باندې يې ايښې تاج لولاک دے
په سبب يې اوه زمکې هفت افلاک دے
دوا ړه کونه حق د ده د پاره وکړه
خليفه نايب د حق په کل املاک دے
د ده لاس حق په قران کښې خپل لاس ياد کړ
د انګشت په اشارت يې قمر چاک دے
د ده فعل حق خپل فعل دې ياد کړے
مارميت اذ رميت يې ادراک دے[1]
چې يې توغ د من راني وينو دوراندې
کل جماد نبات حيوان د دې پراک دے

---

[1] وَمَا رَمَيْتَ اِذْ رَمَيْتَ وَلٰكِنَّ اللّٰه رَمٰى

الانفال ايت ۱۷

او تا په هغوي خاوره) نه ده ويشلي کله چې تا ويشته بلکې د الله تعالى ويشته.

د نبیو چې د مخ نور هم ئې نخــر
محمد صلی الله علیه وآله وسلم د انبیاؤ د مخ ناک د ے

اولین اخـرین علم باندې کشفـــ
د وحدت مقام ئې خپل خلاص له اشراک دے

چې معراج لره روان شه پاس ترعرشه
جـبرئیـل ئې پهٔ جلب شاطر چالاک دے

دے اوبـه کلیات کیاه شرپهٔ معنیٰ کښې
دحضرت پهٔ نور دکل موجودات څواک دے

داحـمد د نور مظهـر نـبي ولي شـو
د سـرور پهٔ نور برپا داتوده خاک دے

د نـبي د نور بروز دے پهٔ ولي کښې
پهٔ دعا ئې مستقیم ارض وسماک دے

ولایت نبوت عینې دانـره شـوه
خاتمت گوره پهٔ میان کښې خط سواک دے

پس یو نوري نـبي بر بل ولي دے
دے پهٔ میان کښې لوړ برزخ لوے سهناک دے

ابتـدا د نبـوت ده لـهٔ آدمــه
خاتمت ئې پهٔ حضرت نـبي حکاک دے

---

له ډکورئ اصطلاح نامه (ب)

دجهان دور تمام شه په دهٔ باندې
پس له دهٔ جهان ویران خلق هلاک دے
ابتدا د ولایت شوه له صدیقه
خاتمت ئې په مهدي معصوم وپاک دے
د حضرت په نور روښان جهان لیدهٔ شي
نورجهان توره تیارهٔ ژور مغاک دے
اول ئې ځان نبي اوس ولي بولي
حق سبحان کورم ودهٔ ورکړے واک ډے
د نجات امید لرم له کردګار د ه
دے مخلص ئې لاس نیولے په فتراک دے

---

له ددې نه مراد (خاصه محمدیه ولایت) دے چې د حضرت محمد صلی الله عَلَیْهِ وَآلِهٖ وَسَلَّم د رحلت شریف نه پس د خاصو اولیاؤ چې خاتم الاولیاء هم ورته وائي په صورت کښې جاري دے۔ او درحقیقت خاتم الاولیاء خود حضرت خاتم الانبیاء حضرت محمد مصطفی صلی الله عَلَیْهِ وَآلِهٖ وَسَلَّم ہیں جس کا ظہور خاتم الاولیاء کی صورت پر ہوتا ہے۔

ڈاکٹر محمد عطاء الله۔ تحقیق الاتم فی شرح فصوص الحکم ص ۸۳

هرکه ذاتِ حق بچشم دِل به بیند نام وی عارف شود وآنکه ذاتِ حق تعالیٰ را بچشم دِل نه بیند نام کوردیدهٔ نبزد عارفان بروی جائز است

---

هرهغه چې دحق ذات د ذرې په سترګو سره ووینې دهغهٔ نوم عارف شي اوهغه څوک چې د حق ذات دذرې په سترګو سره نهٔ وینې دعارفانو په نزد په هغهٔ د روند نوم جائز دے ۔

---

چې بینا د زړهٔ په سترګو پهٔ بې رنګ شي
دعارف نوم به پرې کېښودې بې درنګ شي
چې پرهر لورې بې مثله بحر ګورې
بینادل به په دوه کونه دامدنګ شي
چې پهٔ هر څیز کښې هستي دحق نهٔ وینې
دکور دید نامه سې به دې دل سنګ شي
چې دمعرفت خوښې بیاموې ګوره
پهٔ نظر ئې لکه کټ هسې اورنګ شي

د عارف خوښي راحت په معرفت کښي
د دنیا په مال مشغول خوشحال د ځنګ شي

عارفان په فاني څیز د بستګي نه کا
چي اخر یې له هجرانه خاطر تنګ شي

د اجل ساعت به ورانډي دوستو نه کا
په دنیا کښي که سلیمان سکندر هوشنګ شي

د قضا سواره به یې زړله اسد کوز کا
هر شجاع چي برابر ددهٔ په جنګ شي

د دنیا په دوري ډېر کړند دي دروهي
د نفسک تهمتو د دین له تیغ څو رنګ شي

د نادان خبره مه نغوږه دینداره
د نفسک په قوت ډېر تېره رخنګ شي

نفس حریص به قانع نه شي تر ابده
که په حکم یې شام روم هند و فرنګ شي

د دنیا ننګیالي لاندي نام و ننګ کړه
عاشقان د مولی تېر تر نام و ننګ شي

د خدای یاد د زړه صیقل دی که باور کړې
په غفلت اندېښنو زړه د سړي زنګ شي

عاقبت به یې غافل کاندي له خدایه
چي اغیار یې همنشین مدام ترخنګ شي

څېړول به څنې زده کاکهٔ باور کړې
چې صحبت ئې له جاهل کړکه پلنګ شي
د کامل پهٔ صحبت ذکر د مولا د ے
د جاهل پهٔ مجلس زیات مذکور د چنګ شي
نهٔ یکرنګه همنشین شه کړ یک رنګ ئې
د دوو رنګو پهٔ صحبت سړے دورنګ شي
لهٔ همجه (دڅراغ رڼا ده) پتمه
د څراغ په نور عاشق شېدا پتنګ شي
د مخلص قبله کعبه ده دپه زړهٔ پورې
او دچا مقصود کعبه د کافر کنګ شي

---

## درمعنیٰ حدیث : کما تعیشون تموتون کما تموتون تبعثون کما تبعثون تحشرون -

---

لکه څنګه چې تاسو ژوندی یئې داسې به مړهٔ کیږئ او لکه څنګه چې مړهٔ کیږئ داسې به پورته کیږئ او لکه څنګه چې پورته کیږئ داسې به الله تعالیٰ ته جمع کیږئ .

---

چې مشغول ده په ددنیا په قیل و قال دے
جمعیت یې دے پریشان خاطر محال دے
جمعیت د زړهٔ نادان لهٔ ماله غواړي
تل د زړهٔ د پریشانۍ یې سبب مال دے
د نیمګړي چار نیمګړي پوره نهٔ شي
ستروبه څهٔ رنګ جمعیت غواړي جمال دے
جمعیت دے د دنیا په ترک کښې قطعي
چې لهٔ ماله جمعیت غواړي نقال دے
پریشانۍ یې شوه په بخره ترابده
و دانا و ته څرګند د هر چا حال دے
په هر حال کښې چې ژوندے وي په دنیا کښې
په هغه حال کښې به ومري دا یې فال دے
په هغه حال کښې به پاڅي پس لهٔ مرګه
دا حدیث مې لهٔ سرور نبي ربړي) دال دے
(دا) هرڅوک به د عمل جزا بیا مومي
په دنیا کهٔ نیک افعال یا بد افعال دے
د بهشت بها دنیا دے پرې باور کړه
چې یې کړي دا سودا هغه خوشحال دے
پس لهٔ مرګه به ارمان کړي سود به نهٔ وي
د بهشت د پېرودلو وقت الحال دے

دین دنیا به په مولا وشیندي قطې
چې يې عقل رسیدلے تر کمال دے
دغه علم دي عمل دپاره شوے
چې په علم عمل نهٔ کاندي حمال دے
عارفانو نفس هواکړه تر پښو لاندې
چې د نفس هوا ئي په خطا تے مني دجال دے
دم په دم په هر ساعت رباني تیریږي
د ساعت د تیریدلو گوا گړیال دے
هر زمان لوے غنیمت کنړه پکار شهٔ
یو زمان د بل زمان په ځان زوال دے
عاقلان په خواب وخیال نه غره کیږي
د دنیا دولت تش خوب یا خړه خیال دے
کهٔ صاحب د لوے لښکر یا پهلوان دے
د مرګي د درد د ورانديږي مجال دے
عاجزي نیستي د حق په در قبوله
د بې نیاز په در ثواب هسي وبال دے
د دوستان د یار کلام ثابت په شرعه
د اغیار سري خبره غبر سال دے
موحد به يې له لاسه نه پرېباسي
شریعت د موحد د مخ دویمال دے

د نساء بنایُست پهٔ زرو پهٔ جوهـــر وي
ښهٔ کلام د نرینـــه د مخ جمال دے
د دنیـــا طالب نساء د عقبیٰ هنرشهٔ
د مـــولیٰ طالب پهٔ دوو کونو رِجال دے
که خبردار د معرفت يُې پهٔ دنیا کښې
میا روښان لـــره ورځهٔ د دین دلال دے
د مخلص کلام به ونغوږدي يقين کـــره
پهٔ جهان کښې چې طالب د ذوالجلال دے

---

## دربیان وصف قناعت وتوکل و مزمت نفس و دنیا .

---

د قناعت ، توکل د ستائینې او د نفس او دنیـــا دَ غندنې پخقله

---

چې فارغ د دنیـــا کیږیه لهٔ کل کل شي
او قـــانع پهٔ خپل قسمت لهٔ لمیزل شي

د بهشت دربانئ پرانت شهٔ باورکړه
چې راضي لهٔ کودګاره په کمبل شي
د بهشت نښان څرګند د زړهٔ ارام دے
چې د زړهٔ ارام ئې بیا مینډهٔ افضل شي
لهٔ دوستانو به داخل شي پهٔ دوه کونه
چې له خدایه پرې عطا ئې توکل شي
چې عرفان هم فراغت موهې آزاد دے
پهٔ جهان کښې دا کامل (رحم) مکمل شي
نوس شیطان غلهٔ به ئې ووځي له درونه
چې پر زړهٔ کښې ئې د ذکر چراغ بل شي
تاریکي د غیر الله (به) پرې کا محوه
چې ئې معرفت د زړهٔ پهٔ ملک مشعل شي
دواړه یو موحد ګوري پهٔ دوه کونه
پهٔ نظر ئې یو ځین دوه تل داحوال شي
د دنیا طالبان ډېر د عقبیٰ لږ دي
د مولیٰ طالب یګان یګان اقل شي
هر عالم چې د توانګرو پهٔ دروګرځي
پهٔ باطن کښې د مولیٰ د وړاندې غل شي
پهلوان مېړهٔ هغه دے پهٔ جهان کښې
هر چې خلاص د دنیا ګېډه له دلدل شي

دنیا پیاز خړه پوستون دے (څه) بې مغزه
چې مدام یې پیاز خوراک کنده بغل شي
د نفس حب ګودم مدام له زرو ماله
چې د نفس په نغوته ولاړ ځائے اسفل شي
اوږد امید حرص دي پوې کا له خاطره
روح پر روح نزدې سرې وته اجل شي
سخت ساعت به پر عاصي هغه ساعت وي
چې نېکان بدان به دواړه سره بیل شي
روح الله یې له علاجه درمانده وي
چې پرې پېښ د جاهلیه بد عمل شي
چې د میا کلام د زړه په غوږو واروي
مشکلات به یې پر زړه کښې جمله حل شي
حق کلام په مشرکانو تریخ ښکاري!!
د توحید په اهلو خوږ ډېر تر عسل شي
حاسدان یې د زړګي په غوږ نه اوري
د حاسد و له حسد دید مبدل شي
هغه کس چې په بزرګانو غیبت وائي
بزه کار به په پښتو (تر) خدایه په هر طل شي

اے مخلصه دلبوه صورت به مومي
د حاسد به په قیامت صورت بدل شي

در بیان توحید عام و خاص الخاص یعنی توحید اهل تقلید و اهل استدلال و اهل کشف - توحید تقلید مر عوام راست و توحید استدلال مر خاص راست و توحید کشف مر خاص الخاص است و آنکه تا منزل شریعت و طریقت و حقیقت و معرفت و قربت و وصلت را طے نکند بتوحید خاص الخاص نرسد و توحید اخص چون بام است و این منزل چون پایهای نردبان و پایهای نردبان برای برامدن بام است

د عام او خاص الخاص توحید چقله یعنی د تقلید د خاوندانو توحید، د استدلال د خاوندانو توحید او د کشف د خاوندانو توحید. تقلیدي توحید د عوامو د پاره دے استدلالي توحید د خاصانو د پاره دے او کشفي توحید د خاص الخاص د پاره دے او هغه چې د شریعت، طریقت، حقیقت معرفت، قربت او تر وصلت تر منزلونه تر سره نهٔ کړي نو خاص الخاص توحید ته به ونهٔ رسي - اخص توحید یو بام دے او دا منزلونه د اندرپایۍ دستکي دي او دستکي د دې د پاره دي چې سړے پرې تر بامه وخیژي -

هغه کس چې یې قدم اېښے په اسلام دے
جاروتلے له جمله نهي حرام دے
بنده ورځ به داخیار اسرار بیاموي
که په داحال یې ثابت اېښے اقدام دے
لن طاعت به یې قبول په دېر طاعت شي
چې له خدایه راضي خوښ په لږ انعام دے
لږ عمل له علمه حق په دېر قبول کا
دېر عمل بې علمه لږ یاد په کلام دے
هیڅ عمل بې علمه نه شي له سریه
ځکه علم ئې فرض شوے پر عوام دے
وړه علم د توحید دے پاسه شوے
دا نور علم پېتکي توحید پاس بام دے
شپږ منزله پېتکي دي تر بام پورې
چې یې طې کړې پاس مقام ځائے یې ارام دے
شریعت، طریقت بل حقیقت گوره
معرفت قربت وصلت شپږم مقام دے
چې دا شپږ مقام یې طې نه کړه باور کړه
تر توحیده به ورنشي دا اعلام دے
پس له مرگه به پوښتنه د توحید کا
چې توحید یې که حاصل نېک سرانجام دے

او توحيد ئې دے درې جنسه[1] په عالم کښې
يو د عام دووم د خاص گوره احکام دے
شه دريم توحيد د خاص الخاص باور کړه
چې ئې دا توحيد حاصل نه شه غلام دے
عام يقين کا چې خدائے يو رسول ئې ستاوځے
د بزرگانو په تقليد ئې اليښے کلام دے
هيڅ خبر نه دي له خدائے له يگانگيه
مثل د نورو په گفتار ئې يقين تام دے
دوي راندۀ دي عصاکښه کاملان شوۀ
هر سړے بې علمه فکره کالانعام دے
نن خاصان له يگانگيه خبر شوي
خاص الخاص له حقه يو شوے مدام دے
عوام خلق تقليدي خاص دليلي شه
د دليل ثبتن غايب له ذو الانام دے
د دليل د اهل پښې چوبين يا د شوے
په چوبين د پښو رفتن په هر ناکام دے
عام عالم دي د خاصانو توحيد زده کا
بې دليله يقين سپک هر گوره خام دے

---

[1] اص: د نس (جنسه)

نن خاصان دي داخص توحيد وغواړي
خاص الخاص لهٔ شکله خلاص پېشوا امام دے
پیر کامل طبیب حاذق عوام بیمار دے
د عوام د درد دارو ذکرِ دوام دے
زړهٔ توسن به يې لغامه ارام نشي
دوئي دي اس نفس جلب ذکر لغام دے
د توحید لار به درونبايي کـه درومي
ميا مسکين داعي هادي صاحب الهام دے
د اخصو پهٔ قطار به دي داخـــل کا
د روښان پهٔ دربار څه اوس ئي هنګام دے

زيات عالم پهٔ خواب اودهٔ کورم مخلصه
د روښان ييار بېدار شوے لهٔ منام دے

---

**دربیان وصف ذکر اسم اعظم وآنکه افراد .... چون اعضائ خدائے تعالیٰ ..... وانسان مثال دہن اوست و درمعنیٰ آن حدیث نبوی: قلب المومن حرم اللّٰہ وحرام علے حرم اللّٰہ ان یولج فیه غیر اللّٰہ**

---

د لوئے اسم (اسم اعظم) د ذکر پهٔ صفت کښې او دا چې افراد ........ د خدائے تعالیٰ اعضا ..... او د انسان مثال د خولې دے او د دې نبوي حدیث پهٔ معنیٰ کښې چې د مومن زړهٔ د الله حرم دے او پهٔ غیرالله د الله حرم کښې داخلېدل حرام دي -

---

چې يې اسم اعظم ذکر پهٔ هر دم شي
او یقین یې پخپل ذکر مستحکم شي
درست جهان به واړه ځان ګوري بېشکه
پرهر څا به مهربان رحیم اکرم شي
پهٔ ناحق به څوک ازار نهٔ کاندي قطعي
پهٔ وحدت کښې چې عارف ثابت قدم شي
ځان به بحر بې پایان ګوري بې حده
چې يې څاڅکے له دریابه سره ضم شي
دا جهان د حق صورت دے کهٔ باور کړې
هر افراد يې د اعضا انسان يې فم شي
پهٔ عالم کښې له دې نه لونه حیوانات دي
د سړي پهٔ دود ګویا بل حیوان کم شي
حقاني بادشاه هاله ورشي پهٔ زړهٔ کښې
چې يې پاک له غیرالله د زړهٔ حرم شي

چې د حق په حرم غیري تنبا سي
هغه کس به په څلور مذهبه کرم شي
زړهٔ حرم د مولی یاد دے پهٔ حدیث کښې
هر عارف چې په حرم د حق محرم شي
د خلیل کعبه به وګذاري بېشکه
دغه زړهٔ به یې بې حد بحر اعظم شي
درست جهان به په کښې وګوري باور کړه
دا لوے زړهٔ به یې په قطي جام جم شي
لهٔ بې مثله لویې زړهٔ به یې خبر کا
کهٔ روښان يې پهٔ باطن کښې معلم شي
د لوے زړهٔ تښتن به نشي پهٔ عالم کښې
مګر میا غونډې کامل د دهٔ همدم شي
د کامل صحبت به بیا موي مخلصه
پر هغه چې د کریم بادشاه کرم شي
بد بختان د نیک بختانو لرې تښتي
کل نیک بخت مې د نیک بخت په ناست خرم شي
د نورې مې په جهان کښې کهٔ باور کړې
له ناري سره ناستے پر جهنم شي
د هر چا له خپله جنسه سره ذوق دے
پهٔ جهان کښې لهوهٔ کاو سره عنتم شي

دربیان وصف بحرنامحدود ودرمعنیٰ این ایتہ کریمہ ۔

وَماخلقت الجِنّ والانس اِلّا لِیَعْبدون ○ ای لیعرفون ودرمعنیٰ

این حدیث نبوی ۔ طلب الدنیا عند الوارعین ۔طلب الاخرت

عندالزاهدین ، طلب المولیٰ عندالعارفین ، طالب الدنیا

جاهلٌ وطالب العقبیٰ عاقلٌ وطالب المولیٰ کامِلٌ .

---

دنامحدود بحر د وصف پهٔ حقله او ددې ایت کریمه

پهٔ معنیٰ کښې چې " مانهٔ دي پېدا کړي پېریان او

بنیادم مګر عبادت دپاره او ددې دپاره چې وپېژني ۔

او ددې نبوی حدیث پهٔ معنیٰ کښې چې ضعیف العقل

ددنیا طلب کوی زاهدان د اخرت طلب ګاروي او عارفان

د مولیٰ طلب ګار وي ۔ ددنیا طالب جاهل دے د عقبیٰ

طالب عاقل دے او د مولیٰ طالب کامل دے۔

---

د حق ذات بې مثله بحر بې پایان دے

پهٔ شپږ لوري بې حد نشته بېکران دے

لۀ هر چا سره محیط دے پۀ شپږ لوري
هم پکښې هم ترې چوپېر بحرِ حوان دے
د هر چا ژوندون پۀ دۀ وي چې موجود وي
دا محیط دریا د هر څیز جانِ جان دے
چې پۀ دا ژوندون له ژوندہ خبر نۀ شي
بې هوده به یې څوک لولي چې انسان دے
حق څېل شناخت لره پېدا کړې که باور کړې
پۀ جهان کښې چې راغلے انس وجان دے
کۀ طالب د معرفت یې لـــۀ مـــا واروه
میا دو ښان لره ورځه د دین سلطان دے
کۀ دنیـا غواړې وارع لـــره وردرومه
کۀ عقبیٰ غواړې زاهد کوره ستان دے
کۀ مولیٰ غواړې عارف څخه یې غواړه
د عارف صورت د معرفت دوکان دے
د عقبیٰ طالب عاقل مېړۀ یاد شوے
د دنیـا طالب احمق ترکند نادان دے
د مـولیٰ طالب کامل دے پۀ جهان کښې
دا طالب د کاملیـه لوئے نښان دے
ذرهٔ دې عرش د مولا تخت دے شک پرې مۀ کړه
چې پر تخت د مولا شک کوي انجان دے

لۀ اص : (امان پری)

یا ئې وران کۀ باغ بستان ئې کۀ لۀ تخته
د بادشاه قهر واجب دۀ په ځان دے
چې د بل محبت وروِلې پر زړۀ کښې
چې د حق قهر پرې پیدا شي بې امان دے
په یوۀ زړۀ کښې دوه مهر نۀ ځائیږي
دغه زړۀ چې د یوۀ مهر مکان دے
کۀ د خدائے د دوست نښان غواړې لۀ مانه
هر چې ذکر د خدائے ډیر کا له دوستان دے
چې ئې حُب لۀ هغه څیزه یاد ئې ډیر کا
دا حدیث مې د سرور د خوله برهان دے
حق جلیس لۀ ذاکرانو دے باور کړه
دا حدیث قدسي راغلے لۀ سبحان دے
زړۀ کعبه ئې جلیلې دے په صورت کښې
نفس کوه د عرفان ځلے د عرفان دے
ذکر ډول نفس رسیه دے په تن کښې
زړۀ کوټې شه د زمزم اب ئې رحمان دے
چې دغه اوبه ئې وڅښې روښان دِل شه
روښان دلو ته څرګند حق بې ګمان دے
کۀ لۀ حقه د یقین سترګې بیا مومې
د یقین لۀ سترګو پټ نۀ دے عیان دے

دم نالہ له لوبیه بحره ده راغلي
د نالې د بحر اب ګوره یکسان دے
د نالې په غاړه څه بحر به موي
دا لوئے بحر د جمله هستیوکان دے
تیره دل د بې رنګ رنګ نه بیا موي
د بې رنګ په رنګ به رنګ شي چي روښان دے
اے مخلصه د بې رنګ لوبيې وګوره
کم حباب یکښې موجود زمین آسمان دے

---

## دربیان آنکه محبت خدائے تعالیٰ وصف بیرنگی وآنکه دل مقام یک محبت است وآنکه محبت غیرالله از دل بیرون نکند محبت باری تعالیٰ در دل درنیابد وآنکه عالم در راه دین سلاح پوش است

---

د خدائے تعالیٰ د محبت او د بې رنګئ د وصف بحقله - زړه د یوې مینې مقام دے - هغه څوک چي د غیرالله مینه د زړه نه ونه باسي د خدائے مینه به په زړه کښې ونه موي او داچي عالم د دین په لار کښې وسله بند وي -

چې يې محبت د خدای پر زړه زرغون شي
په نظر به د احمق سړي مجنون شي
کامل عاقل په جهان هغه سړی دی
چې له رنګه په بې رنګ باندې مفتون شي
رنګ و بوی اوس مزه بر قرار نه وي
په څو روځو کښې يې زړه حال دګرګون شي
چې په هسې فاني څيز دل بستګي کا
مبتلا به په اندوه غم د بېلتون شي
د بې رنګ رنګ به په يو حال کښې قرار وي
هيڅ تغير تبديل يې نشته چې زبون شي
په بې رنګ محبت روح په ورځ زياتېږي
د رنګ مينه عاقبت له زړه بېرون شي
چې د غير و محبت يې له زړه وځي
خدايي مينه يې هاله پر زړه درون شي
په يوه غلاف دوه توري نه ځايېږي
په يوه زړه کښې دوه حب چېرې محزون شي
ګل غله هاله دوړېږي په بڼي کښې
هر چې خس و خاشاک ګل ځني للون شي
د رنګ ريز رنګ به هاله پرې باندې کښېني
چې خبر نه جامه سپينه په صابون شي

لا الـه ذکر صابون د زړهٔ د نمري
پهٔ صابون د زړهٔ جامه پاکه لهٔ جون شي
د چگون عالم بهٔ ځائے پکښې نهٔ مومي
هر چي زړهٔ یې یوناستون[1] د بیچگون شي
بېرنګي یې د رنګونو اصل ځم دے[2]
د بېرنګ په رنګ رنګین زیړ او زرغون شي
کل نمود ځني نمود دے پهٔ جهان کښې
بې نمونه بهٔ وګوري چي نمون شي
د میدانه به ونهٔ ځي پهٔ وهلو
پهٔ میدان کښې عراقي اس چي هارون شي
د بزرګانو فرزندان عراقي اس دے
مګر خدائے د عراقیانو رهنمون شي
او دهٔ وینې بېدار له خوبه شي باور کړه
وینې او دهٔ به بېدار چري پرهارون شي[3]
هر عالم چي د نیا دوست هوا پرست وي
پند پرې به پهٔ لقمان ندېر ذوالنون شي

---

[1] اص : (ناست غلی)

[2] اص ( بېرنګی دواړه د رنګو اصل خم دے)

[3] اص : بهارون

خوانده جن (هېڅ) له عالمه نهٔ وېرېږي
ناخوانده جن لرې غلے پهٔ افسون شي
عالمان د دين پهٔ لار کښې پټ سپاهي دي
پټ سپاهي چې مېدان پرېږدي نو ملعون شي
اے مخلصه عنايت غواړه له خدايه
چې دا علم دې عمل وته مقرون شي

---

## دربيان آنکه هر که عارف است کبر و کينه در دل او نباشد و هر که کبر و کينه در دل دارد اگر دعوىٰ معرفت کند دروغ است .

---

هغه څوک چې عارف وي د هغهٔ پهٔ زړهٔ کښې به کبر او کينه نهٔ وي - او هغه څوک چې کبر او کينه پهٔ زړهٔ کښې لري او د معرفت دعوىٰ کوي نو دروغژن دے .

---

چې ئې زړۀ فارغ لۀ کبره هم لۀ کین شي
پۀ تلقین ئې د مرشد یقین متین شي
غیر الله به یې لۀ زړۀ ووځي یک لخته
پۀ باطن کښې به بینا صاحب یقین شي
چې حسد کبر غیرت ئې وي پۀ زړۀ کښې
کۀ دعوی د معرفت کا کاذبین شي
د عارف پۀ نظر غیر یې موجود نشته
تر وله چا سره کینه کا چې حق بین شي
د حق بین پر زړۀ کښې کبر کینه نۀ وي
حسد کبر پۀ هغه کا چې خود بین شي
هیڅ خود بین خدا بین نشي پۀ عالم کښې
نۀ طالب د جاه دولت صاحب د دین شي
د عقبی دولت هغه لره خدائے (ور) کړي
چې لویې پۀ دنیا نۀ غواړي مسکین شي
د بهشت مخ به ونۀ ګوري پۀ قطعي
چې پر زړۀ کښې یې حسد کبر مکین شي
عجب کبر په طاعت د دین افت دے
معجب پۀ طاعت ګروه د شیاطین شي
مرائي منافق یاد دے پر کتاب کښې
د نفاق د اهل ځائے کوز تهترین دے

پټ څوکند عمل یکسان لره طالبه
د اخلاق د تبنتن ځائے پر علیین شي
نن اخلاص کوم خلاص د مخلصانو!!
مخلصان به په اخلاص خلاص له سجین شي
چې یې غیر موجود نه وي په نظر کښې
د الیاس وئے په قطار د مخلصین شي
د بزرګانو په تقلید قدم اخله
د تقلید به دې تحقیق وته قرین شي
حقیقت به څني وزیږي پښکله
د مجاز به ې د حقیقت زمین شي
د ریا د اخلاص پل رسول وئیلے
عاقبت به ې اخلاص د سر بالین شي
چې سنت د مرسلانو ې تازه کړه
.. . .. ... .. ... مرسلین شي
نن صفت د مسکین ونسه مخلصه
چې ې خوي د مسکین وینو مسکین شي

# دربیان وصف ذکر خفی و کاملان و آنکہ گذر دریائے حقیقت شریعت است

د خفي ذکر او د کاملانو د وصف په قلله - او دا چې د حقیقت د دریاب لار په شریعت ده -

چې په ذکر يې صفا د زړه آئينه شي!
ورځ کند به په درون کښې خپل سجن شي
د حق ذات به په هر لور کوري بې مثله
چې په ستر گوييې د معرفت انجن شي
د زړه غوږ به يې پاک مولى نشين وي
چې يې غوږ د لا په تبر د زړه بن شي
نفساني شيطاني فکر د زړه بن د ے
په بد فکر د زړه کوري ځنګل گن شي
کاملان نکه کړي د شاه د مينې
نور عالم نکه او کړه کامل يې بن شي
دا کثرت د وحدت منځ د ے په غاړه
د کثرت د منځ زيب بنا کست کربن شي

شپو کیږي ځني قدم مه بدده مخلصه
شریعت د حقیقت د سیند پیتڼ شي

---

دربیان انکه دِل رئیس و راکب صورت است وصورت محکوم
و مرکب اوست .

حدیث : الدنیا مزرعت الاخرتِ ایضاً المرء مع من
احب دآنکه دانا ان است از خدائ ترسان است و بی ترین نادان
است .

---

ددې بیان په دې ځای کې چې زړه رئیس او صورت راکب دے او
صورت محکوم او مرکب دے .

حدیث : دنیا د اخرت پټے دے ایضاً یو سړے د
هغه سره وي چا سره چې محبت لري او دا چې څوک د خدائ
نه یرېږي دانا دے او څوک چې نه یرېږي نادان
دے .

پر هماٖن اغزي ګلونو ئې باور کړه
پیر کامل مې د رحمت د باران نو دے
خــفي ذکر دوام دولت لري طالبه
د پټ خیز ثواب رئې ) ګودم یو پړ سودے
قناعت توکل درلـره پـه ذره کښې
پهٔ کوشش به قسمت لس ندکړي چې نو دے
داناکس ئې ترسنده دحق لهٔ قهره
نن عاقل جاهل سرے ګودم پري بهودے
کهٔ بینا ئې د زړهٔ پسبن خني وژغـوره
د دنیا حب د سړي د زړګي ګهودے

---

## دربیان انکه هر کرانشت گاه ومقام سکونت شد وتخلقوا با اخلاق الله گشت وامرونهی هشت مقام دانست ویاد گرفت وبران عمل نمود خلافت براو (روا) شد۔

---

د هغه چاپهٔ بیان کښې چې سکونت ئې ځائے او مقام شو او پهٔ تخلقوا با خلاق الله مشرف شو۔ او داتو مقامونو امر او نهی یې وپېژندل او یاد ئې کړل او عمل ئې پرې وکړو نو خلافت پر هغه روا شو۔

چې ئې ذره دکوم اشیاء په جمال ګرو دے
شب ورون ئې پر هغه څېز لیسي دو دے
دصورت مرکب د ذره په رضا درومي
د سوارهٔ په لاس داس دخوبد جلو دے

... ... ... ... ...

دعاشق د معشوقي د ذرهٔ بېخ رو دے
اُداسي ګوښه به ګرځي له عالمه
چې لید لے ئې د شهد د مخ پرتو دے
دکوم څېز تخم چې وکري پر زمکه
دا نن کښت ئې په فردا روځي د درو دے
په حشر به هغه بیا مومي په قطي
چې ئې نن روځ په هغه لیسي هوسو دے
دګندم راشهٔ به تول هٔ ځنۍ نهٔ کا
چې ئې تخم پر زمین پاشیده جو دے
دعرفان تخم به وکري په ذرهٔ کښې
هر چې نن د میا روښان کامل پیرو دے
د روښان متابعت به اختیار کاندي
هر طالب چې د مخلص سخن شنو دے
مرد و زن سا و عبید پري بهره مند شو
دنعمت په خوان ئې ناست که دا خسرو دے

د عارف چې سکونت يې تخت ګاه شي
په معنی کښې به عارف مسکين باداشا شي
خلافت پرې باندې بنائي که يې کاندي
چې ده مقام له علمه دے اګاه شي
امر و نهي دي د هر مقام کا پيا ده
چې په هر مقام خبر (له) هره ګاه شي
پخپل پند دې عمل وکاندي پخپله
بيا نو بالله که يې په پند ګمراه په راه شي
تو منزله به ور ورسي باور کړه
چې عمل علم يې دواړه سره همراه شي
رسيده کامل هغه دے د بللو يې
چې عمل علم يې دواړه د حال ګواه شي
د بشر خوئي يې عذاب وګڼه قطعي
چې يې خوي تخلقوا باخلاق الله شي
غم غيرت کبر کينه د هيچا نه کا
کاملان د نيک و بد و خير خواه شي
د کامل په پسر و پسه به لار مومي
د ناقص په پسر وي سړے ګمراه شي
د مقصود محبوب به بيا مومي باور کړه
چې روان نن په طريق د کيږے ګلاه شي

د رسول متابعت عیني د حق دے
د رسول متابعان صاحب د جاه شي
د مرسلو په طریق قدم اخله
بدعتیان به په حشر کښې روی سیاه شي
د رسول سنت په ځاے لره مخلصه
په عقبیٰ د بدعتي عمل تباه شي

# فی المناجات

زه ضعیف مخلوق سایل یم ته کریم غني خدایې
خوار عاجز خواستګر راغلے مهربان په خوار ګدایې
د عاجز سایل ذره ژغورې هر چي د رشي تر تا پورې
د مقصود چار یې پوره کړې ته د زړونو دل ربایې
پر هر چا مهربان شې د رحمت پرې سایبان شې
ستا سایه سرے بادشاه کا شاهي بخشي دولت همایې
د فقیر مقصود حاصل شي چي د ستا په در سایل شي
د سایل سوال اجابت کړې ته معطي په دوسرایې

چې له تا نه غواړي خوار دے پهٔ محنت نوار یهٔ ګرفتار دے
دعاجز پهٔ ځان شوي شبههٔ ته عاجز کړو نے دخود رایي
چې وتا و ته رجوع کا پرېشان زړهٔ (به) ځېل مجموع کا
دهر ګمراه تا پهٔ لار کړي د مضلو رهنما یې
چې تا لار ورکړه پهٔ لار شو پهٔ رښتني لار استوار شو
لهٔ بې نیاز و ځېلوي ندکړي له نیازمن سره اشنا یې
دا کتاب تا تمام کړے تهٔ دانا ګویا نو مړے
زهٔ مظهر د ستاد علم تهٔ صاحب د علم وو رایي
دا دیوان الهي دے مالو و لے دا ګواهي دے
زهٔ قلم یم ستا پهٔ لاس کښې تهٔ کاتب شې شعر آرایي
تهٔ مشفق حکیم دانا یې د مخلص د درد دوا یې
درد صحت دې رابنکاره که تهٔ قادر قدرت نمایي

... ... ... ... ...

روغ رنځور، روغ کړې زور آور قوت ازمایي
تهٔ شقي واخلې سعید کړې قریبان ګودم بعید کړې
چارې ستا پهٔ حکم کیږي تهٔ کارکن هم کار فرما یې

---

تمت تمام شد غزلیات اسم المسمیٰ دیوان الهي

---

ئے اص : شبهت

# اغاز رباعیات در قدرت الٰهی

دمولٰی ثنا به وایم
زهٔ به کوے پهٔ مخه بیایم
عنایت توفیق به غوارم
زهٔ به خپل سامین وستایم

پهٔ بِسْمِ اللّٰه به اغاز کړم
دا ثنا به دور دراز کړم
کهٔ توفیق مې حق شهپر کا
پهٔ شهپرو به پرواز کړم

زړهٔ مې ګرځي لور پر لوري
قدرتونه دحق ګوري
چې پهٔ هر قدرت دا ننا شي
پر کاغذې کښې پر توري

د مولیٰ ذات بېچګون دے
دے بې شبه بې نمون دے
څوک يې څهٔ رنګه صفت کا
لهٔ ادراکه دے بیرون دے

دے بې شکه بې نشان دے
لوے نښان دَدهٔ جهان دے
کهٔ صانع ځېس مخفي کا
پهٔ صنعت پورې عیان دے

روح غایب صورت حاضر دے
پهٔ حاضر پورې باهر دے
حرکت نښان د روح شهٔ
پهٔ نښان پورې ظاهر دے

پهٔ صنعت صانع معلوم شي
پهٔ لوګي اتش مفهوم شي
کل عالم د حق نښان دے
و وهمي ته خیال موهوم شي

و صنعت وته شي ګوره
په غوږ واروه ديني وروره
صنعه نه وي بې صانعه
دا وينا مه ګڼه سپوره

په قدرت قادر ليده شي
په قدرت يې وينې وده شي
وده وينې کا په ساعت کښې
دا قدرت واره په ده شي

په خپل خواست اشيا پيدا کا
په خواست يې بيو فنا کا
هيڅ اختيار د بنده نشته
چې په کبر تمنا کا

دا چې ويني کوږ او کلې
په خپل خواست نه دي راغلي
د مولى په رضا ګوره
څښتن ليږ دي څښتن ملي

بې اختيار ورو کے لوے شي
بې اختيارې سپين موے شي
هيڅ قدرت دسړي نشته
کله بد خوے کله نېک خوے شي

دسړي احوال بدل شي
کله زهر کله عسل شي
کله فرښته ئې رهبري کا
کله شېطان ئې دلارمل شي

دا مولی په يوه حال دے
بې نقصانه يې کمال دے
دمخلوق احوال وګوره
په کمال پسې زوال دے

په اختيار سړے پرده شي
په قدرت پورې مرده شي
تر قدرت پورے عاجز دے
ځکه خوښ کله ازرده شي

حق قادر یاد په قدرت دے
دا قدرت ئې علامت دے
سترګې پورته کړه وګوره
اسمان روغ په څه زينت دے

په قدرت ګوره برپا ئے شي
بې ستون ولاړ پر ځائے شي
ذات ئې پټ د سر له سترګو
په قدرت څرګند خدائے شي

پر اسمان کښې ستورې ګوره
هم افتاب مهتاب اے وروره
په طلوع ئې رڼا روڼ شي
په غروب ئې شپه شي توره

له اوبو نه اور پیدا کا
ټول پرېشان ئې پر هوا کا
د وورو په میان کښې ګوره
چې پیدا ثنا برېښنا کا

د اوبو وځم سحاب شي
له اوبو موجود حباب شي
په هوا تول کاندي وځم
بیایې اووروي اب شي

په اوبو کښې اورېدا کا
په بوښنا یې ملک رښا کا
او بهٔ کړي کا تر چونه
تندر نوم يې مسمّیٰ کا

له اوبو بدلې شي واوره
له اوبو شوه توره خاوره
په اوبو کانې موجود کا
د اقدرت د مولیٰ اوره

له اوبو کیاه حیوان کا
په اوبو ملک ابادان کا
که اوبه کا باندې زیاتې
ودان ملک به ذر ویران کا

---

له اص : ودم

پراوبهٔ ئې زمکه هنبې
پر خيال ئې تمينگه بلبنې
پر زمين موجودات گوره
رنگ مزه ئې گوبنې گوبنې

دهر څيز تاثير جدا دے
چې موجود کړے خدا دے
صورت بوی دې گوبنې گوبنې
چې پر زمکه ئې ماوا دے

دقدرت ننداني گوره
کهٔ ديده دې نهٔ دې کوره
دادم صورت لهٔ خاورو
دے بې پلاره اوبې موره

عيسٰی نهٔ وُ لهٔ پلاره
دا وبنا پهٔ کل اشکاره
پهٔ اوبو کښې ژوندي گوره
سمندر روغ کا لهٔ ناره

د دیو غرونو له بُطونه
راپیدا یې کړه رودونه
شب و روز گوره بهیږي
ځني جوړ شي دریابونه

په اسمان کښې شته سره گوړ
بل اندې چې راشي توره
د قوت ایت یې وینه
وې پرېباسي له زوره

په قوت یې اسمان گرځي
په قوت یې مرغه ورځي
په قوت یې ځین قائم دے
بې قوته به وپرځي

کل لاَ حَول و لاَ قوت دي
چې څه دي ستا په قدرت دي
که قوت ځني راپیري
نور له تلو راتلو غلت دي

کل د ستا پهٔ هستئ هست دي
کل د ستا پهٔ مستئ مست دي
کهٔ هستي ورځخه[1] واخلې
نور پهٔ زمکه خوار و خشت دي

د اوبو د پړوالے کوره
را چو پېر دي لور د لوره
سور درياب يو لوښے خندق کا
کوه قاف ئې کوټ کهٔ وروره

د سړي حيوان حصار شو[2]
د قدرت پهٔ لاس گرفتار شو
تر خندق تېرېدې نهٔ شي
پر زمين باندې قرار شو

---

[1] اص : وردخه
[2] اص : دسړي لري

کهٔ مرغونه کهٔ پېریان دي
واړه لاندې تر اسمان دي
تر اسمان بېرته نهٔ شي
تر اسمانه ورتلهٔ ګران دي

دا جهان د قدرت کان شهٔ
کوز زمین کهٔ پاس اسمان شهٔ
تر دا میان چې مخلوق ګورې
پهٔ قدرت دحق عیان شهٔ

پر هوا ورځي مرغونه
چې ثابت ئې وزرونه
پر زمکه څزنده دي
ماهي ځي پهٔ دریابونه

پهٔ دریاب کښې جهاز ګوره
ګرځندے دروې هر ګوره
هیڅ تا ځار ئې د تلونشته
واړه دي له خدائے له زوره

زلزله پر زمکه وینه
زمکه غرونه لرزوینه
چي رضا هغه ځائ بسوري
نور قراره پر ځائ وینه

هسې چارې په قدرت شي
دا قدرت د حق آلت شي
هسې چارې قدرت کوري
بیا منکر له قیامت شي

په اسمان کښې کوري ستوري
بیا باران (کوري چې) ووري
منکر نهٔ شي لـهٔ قیامته
چي قدرت وته یې کوري

لهٔ زنده پیدا مرده کا
لهٔ مرده زنده بر پا کا
د (دې) وینو لهٔ صورته
د شودو چینه پیدا کا

و داخپل صورت ته گوره
لري مه درومه لهٔ کوره
ستا صورت د قدرت کان دے
ښهٔ يې وګوره اے وروره

چې خوارهٔ صورت وخورینه
او اوبهٔ پسې وڅښینه
دواړه ګډ شي په کلموکښې
پهٔ قدرت يې بیلوینه

چې طعام سړے پهٔ چار کا
حق قادر قدرت اشکار کا
خوارهٔ هضم کا پهٔ نفس کښې
لهٔ خوږوینه اظهار کا

... ... ... ...

هم لهٔ وینې پهٔ ماغزه شي
لهٔ مغزو مـنې پیدا کا
لهٔ مـنې حیوان مرغه شي

په ووړي مې اظهار شي
په کړنه (څه) بې شمار شي
په ژمي غېب شي ګوره
مړهٔ پراته نه سل هزار شي

ګل له غېبه راڅرګند شي
بيا يې غېبو وته سند شي
مړهٔ پراته نه ليدهٔ کېږي
نه يې بل ملک وته پند شي

په برسات خزنده ګوره
راڅرګند شي لور د لوره
په ژمي غېب (شي) ورک شي
که يې ډېر لټوې ورورة

نه په ځمکه کښې ليدهٔ شي
نه غايب پټ په اوبه شي
چې راغلي وي له غېبه
بيا يې غېبو وته تله شي

کُل عالم راځي لهٔ غیبه
دا وینا کښه لا ریبه
بیا ر ته درومي وخپل ځائے ته
د مخلص وینا بې عیبه

څوک ناري نار لره درومي
د عمل جزا به مومي
چې نوري وي نور پهٔ ور کا
کهٔ تاجک وي (او) که رومي

د مولیٰ ثنا بې حده
دا بې شماره لا احده
انبیاؤ پوره نهٔ کړه
شه خاموش علي محمده

لااحصي[1] محمّد ووې
ته لیه ورپسې دوې
د حق ستوربه[2] پوره نهٔ کړې
څو حیات په دنیا ژوې

---

[1] لا احصی ثناءً علیکَ انتَ کما اثنیتَ علی نفسِکَ
(حدیث)
ترجمه :- زهٔ ستا تعریف نهٔ شم کولے لکه څنګه چې تا دخپل ځان تعریف کړے دے -
[2] سترتوب ، لویوالے (ز پ)

# لغت نامه

## آ

آبدان :- تالاو ، داوبو لوښے

آبنوس :- یوه اونه چې لرګے یې تور وي -

آرسي :- ائینه

آروړ / اروړه :- ختهان په زمکه واړهٔ واړهٔ ختهان کهٔ دخاورې وي ) وکهٔ دګاڼو یادشګې - ډېره ګمه ، غر ، دتلی پرسوب ، سورلي -

آړ :- ګذر ، تېرېدهٔ (ډانګ)

آز :- حرص ، لالچ

آمات :- اصل ، ریښه -

آوا :- دآواز مخفف

آهسته :- پهٔ مزه رو ، رو

## ابا

ابا :- انکار ، عجیب حیران کن

ابرج :- ښکلےوالے ، خوب صورتي اوچت والے

اتخاذ : اخذ ، نیؤل

اثاث :- (۱) ډېر ، کثیر ، وافر دلته ترې مراد ثورب والے دے . (۲) مال ، دکورسامان

اثیم : ګناه ګار

اجاج :- ترخې اوبهٔ ، اب شور

اجماچ / اجماج :- جنّت

اجوج : تېز ، جوشي رڼا او برېښنا کونکے

اچ : اعلی، اوچت

اچماچ : (ه) د یوې اوښې نوم دے

احبا :- د حبیب جمع

دوستان (ل ک)

احداث :- واقعه، نوې خبره

مطلب، شروع کول .

احریض :- د یو ګل نوم دے

(حاشیه)

احطه :- اُوا رجهت

اخیار :- دخیرجمع، نیکان، خلق

(ف ف)

اخیذ :- والګی، رسی

اربس :- علوي - عالم

ارتکاص / ارتکاس :- واپس راتلل -

(س - س)

ارنل :- دانګړاونه (ار، ف)

اسباط :- د "السبط" جمع

اسباط

نوسي - ذیلي، قبیلې

(الاعظم)

استغاث :- مدد غوښتل .

استکفا :- کافي

استمحاح :- سمح، بخشش،

بخښنه -

اسود :- اسوده

اشبا : (اشیاه)

صورتونه، شکلونه

اضتریج : په سور رنګ سره رنګول .

(الاعظم)

اضغاط :- بې تکلیفه، بې مصیبته

په ارام، په سهولت (الاعظم)

اعتیاض :- (۱) عوض کرون (حاشیه)

(۲) غوض اخیستل - دیوځین

بدل اخیستل - (الاعظم)

اعراج :- پورته ختل

پورته ختل

اعیاص :- ګڼې اونې، دګڼواونو

ځنګل - (الاعظم)

اغبار :- اغبر، ګرد

دوړه، خیرے

الدجه :- سخته تیاره

امثاج :- یو ځائے کېدهٔ .

آمال :- امید - ارزو

اناث :- ښځې

اَناچ :- کاتهٔ ، دید ارول

انام :- دخدائے مخلوق -
جن وانس

انبازي :- شراکت ، شرک

انبساط :- وسعت ، خوشحالي
فرحت - (ع ا ر)

انبیل :- اَنب ; دانګورو یو
قسم (ھ انګ)

انجاڼ :- ناخبره ، احمق
ساده -

انجڼ / انجن (ھ) دانجهٔ

انزوا :- ګوشه نشین

انطفا :- داور یا د چراغ
مړۀکول -

انفراج :- ښودل

انفضاض :- ټوکړي ټوکړي کول
ډېره ډېره کول (الاعظم)

انقضاض :- ددېوال غورزېدل
(الاعظم)

انقیاد :- طابع ، حکم منونکے

انګاز / انګازه :- اش ، علامه
قسم

انند :- خوشحالي

انهاج :- لار

اوتاق :- (۱) اوطاق
کمره ، حجره

اوجاړ :- وران ، دشت
صحرا ، ویجاړ ، لتاړ

اوس :- پرخه

اوطان :- دوطن جمع

ایتره :- شونټی، چراغ چوب
(ب پ)

ایقان :- یقین کول ، یقین کېدل
یقین ، ایمان

اینګولے :- پخ کړے ، پخه
ترکاري (سالن)

اہیټ :- څوکېدار

## ب

باچ / باچھ :- انتخاب
باچا : وعده ، بېعت

بادسنج :- بیهوده

باعث :- لېږلو والا
سبب

باورس :- دوېم مېړهٔ
ستمنګاس ددې معنی
"دیو سړی دوېمه ښځه
کړې ده -

بُیُول :- کیکر ، یو خاردارهٔ
اونه -

بتېل :- لا وارثه مال
(ع ار)

بتېې :- داوربشو وړهٔ ، د
اوربشو ډوډۍ
" اوربشې اول خوشتې کړې شي
بیا یې په برغمه کښې وټکوي
پس دغې نه ترې په مېچن
وړهٔ وهستلے شي -

بت :- نوروُل

بډهنا :- وژل ، هلاکول -
ماتول (هار) شاید دلته ترې مراد
بې کامله ریاضت او محنت دي -

بدپوټ :- نغټ نقصان

بربط :- دیو باجې نوم چې عود هم
ورته وئیلے شي -
(ل -ک)

بورث :- نرمه او اواره زمکه

برخیچ :- بې ثباته ، بې بقا
بې استقلاله

برغنډ :- نغټ زخم ،
لوئے پرهر (دب)

بُرغُوث :- ماییے ، کیب

بوم / بُهُم :- شک ، شبه
ګمان ، وهم ، قیاس
(هار)

برمنډه :- بربنډه

بونډ :- ۱۱ یو قسم له مست
لېونے ، اېغ تېغ

برونز :- داضحکه ،
څرګندهٔ (س س)

بریده :- بریدن مصدر نه ز
پرېکول ، جداکول -

بُوږه :- مېوه

بِسرام :- ارام ، راحت
قیام ، توقف
بسیط :- غیرمرکب عالم
بشه/ باشا :- هستي ، وجود
ښین (س س)
بَصَل :- پیاز
بطالت :- باطل توب ، دروغ
بُعثِ :- بېدار ، نګران
بېدارونکے
بعیر :- اوښ، ترنهوکالو د اوښ
بچے ، چارپایه -
بغیث/(ابغاث) :- تپوس (الاعظم)
بق :- ماشے
بقل :- سبزي
بَلَج :- سحر ، خنده زنه
څېره ، رڼا کونکے
بلس :- دوګه ورکول
دغره ورکول .
بلبل :- تاوول ، نغښتل
بلندره :- بلنه ، (د ب)
بلیث :- تکلیف ، پرېشاني ، غم

بلېبل :- نغښتل/تاوول
بنج :- تجارت ، بیوپار
سوداګري -
بند :- هغه چې په اسمان کښې
دے او همېشه ژوندے دے -
(ه انګ)
(د امو بېل او اکاس بېل په حواله)
بوج :- خیال ، فهم
بوچ :- هوښیار ، عاقل
بوړه :- فضول خبره
پوچه خبره
بوم :- ځائے ، مقام
بونا :- اوتار (ه ار)
بوه :- بَو ، بهو
بهاتکے :- بیان - دَس
ورکے بچے -
بهج :- سرور ، خوشحالي
بهنورا :- (۱) په ګلونو تورګرځېدونکے
ګونګټ چې خوله ئې عام طور
سره زیړه وي -
(۲) دشاتو مچے

بھروز :- فیروزه، اسماني رنګ

لرونکے یو قیمتي کاڼے - (د ب)

بهیج :- خوشحاله، ښادمانه

ښکلے

بهیمي :- حیوانیت

بهسوال :- هغه چې چا ته حاجت

نهٔ لري .

بیض :- (۱) د سپوږمۍ دیارلسمه

څوارلسمه، پنځلسمه شپه (الاعظم)

بیګاړ :- نقصان، ضرر

بي لباث :- بغیر د قیام، بغیر د څهٔ ولاړي

بیوړا :- فرق

بیوره :- خبره، بیان، ذکر

(د ب)

## پ

پاپ :- ګناه، قصور، عذاب

بدي . (ها ر)

پاچ / پاچھے :- وروستو، ورپسې

پایه :- ګناه (ار ه)

پائے کوب :- ګډېدونکے

پتله :- یو قسم بوټے

پټ :- پوست، پوستکے

څرمن

پټکے :- پټکه، کمربند

دړکه، دباؤ

پچینې / پچانړ :- دغه باز، د دنیا

پهٔ کارونو کښې د دهوکې او فریب

نه کار اخستو کښې ماهر .

پچه :- (۱) او ښانو او چیلو ګلو سوتې

ته وائي (۲) پچه نو وزد (هانګ)

پچه / پڅه :- پیڅکه، پڅه، د څادر

لوپټې یا قمیص اخري کناره یا لمن وغیره

پل پیل :- ښکاره، څرګند

پراته :- د نمرخاتهٔ وخت، سحروختي

سحر (ها نګ)

پراته :- عبث، فضول

(د ب)

پرانها :- پخوانے

پروړ :- پلاله، بوس

(د ب)

پساچ :- شیطان او بدکار

سړے

پکاه :- سحر، سحروختې
پلانړ :- پالان، کته، کجاوه
پلچ / پلچنا :- نبښتل (هانک)
پلوسه :- یو ازغی لرونکی ونه (دب)
پوچه :- خالي
پور :- ښتي، ښار (ق ار)
پوټي :- یو قسم اوراخستونکي
ماده (رپ)
پوهل :- د خوراک په وخت د
څاروي سونهارکول -
پوي پاڼ :- تعریف، صفت
پويا :- روان
پیاڅه :- دکبین خالي ورځ (دب)
پیایل :- څرول
پیتکے :- تار، رسۍ، کمند
پیچه :- (۱) هغه پولې چې جینکمه
یې د سرو ښتو د ښنګار په وخت
سرکښې جوړوي. (دب)
(۲) پلو، پیڅکے.

## ت

تات :- پلار، ورور، دوست

بزرګ، استاد، خوب، حرارت
تبعیض :- په زورسره پرېکول
(الاعظم)
تبغیض :- غافل
تبلیط :- (۱) ماندهٔ از رفتن (حاشیه)
(۲) په ځمکه راپرېوتل، په منډه
کښې ټیندک وهل. (الاعظم)
تبنج :- هغه سړی چې دمکر یا بناوټي
عجز نه یې ځان راغونډ کړے وي -
تخاض/ تخاز :- (۱) پراګنده (حاشیه)
(۲) اصل: "تخاز" دے، پرېکول
تراشل. (الاعظم)
تحدیث :- ظهورکښې راتلل،
پیداکېدل -
تحمیض :- دیو ځائے نه بل ځائے
ته کول. (الاعظم)
تحوط :- محفوظ، احاطه کښې
بند، (الاعظم)
تخلیص :- خالي کول،
صفاکول، (ف ف)
تخه :- وران شوے پے، وران

واړهٔ (دب)

تدنیث :- الوده کول ،
گنده کول

تدثیث :- زخمي۔

توا (توه) رنګ ، شکل ، څېر
شان ، مثل ، ډول (پ پ)

توپ :- توپونه
توپکې (دی)

توحیص :- استوار

توئځ :- ډنګر ۔کمزورے
خوے / نزید

تروټ :- بې حیایه

تروټ :- نقصان ، تاوان

ترویح :- خوشبو (لک)

ترېح :- مضبوطو پټو والا (ف ع)

تولج :- پهٔ تلوارتلل، زرزرتلل، خوځېدل

تسلیط :- (۱) برگماشته (حاشیه)
(۲) غالب ، مسلط (الاعظم)

تشبیثه / تشبث :- انښتل ، نیول
(ترل)

تشعیث :- پراګنده ، منتشر

تشیث :- ترلے

تصدیع :- تکلیف

تضریج :- سُور (رنګ) (الاعظم)

تعریض :- مېنځ ته راتلل۔
حاصل کېدل ۔ (الاعظم)

تعلیق :- اوېزان ، معطل
پرېشان

تعوج :- کوږ ۔کوږ کړے شوے۔

تعویض :- عوض اخستل
بدل اخستل

تعیت / (تعیس) :- ہلاکت
بد نصیبي ، پرېوتل ۔

تغابن :- دقیامت ورځ
نقصان ، افسوس

تغریده :- چغېدل

تغطمط :- (۱) اوازِ شادماني (حاشیه)
(۲) دسمندر جوش وهل ۔
دچپو وچتېدل ۔ (الاعظم)

تغویض :- منع کول ،
سترګې ترې پټول۔
(الاعظم)

تغاوض :- شرک (ف ف)

تفضض :- (۱) پراګندۀ (حاشیه)
(۲) ریزه ریزه ، ټوکړې ټوکړې
تس نس (الاعظم)

تلبیس :- (۱) پټول . پوشیدۀ لرل .
(۲) مکر ، فریب ، دهوکه
(س س)

تلخیص :- (۱) خلاصه کول (ف ف)
(۲) څرګند (حاشیه)

تنفیذ :- نفوذ لرونکے

توتاړ :-

توره :- (۱) اختیار ، مجال ، زور
(۲) متې ، ځوانان

توغ :- نشان ، جهنډه

تهپه :- لار ، قدم

تهلیل :- لا اله الا الله
وئیل . (ع ار)

تیک :- نبغ ، اوچت ، څرګند
جوت ، ښکاره .

تېن :- وردستو ، تباه .

## ټ

ټاپ :- افسوس ، ارمان
اسویلی (د ب)

ټوټه :- رامات ، مائیل

ټنګه :- د دوو پیسو سکه

ټوټې پوټې :- ماتې ګوډې .

ټونړ / ټنړ :- شاخه کلفت که شاخ ها ی کوچک بخود تید اشته باشد
(ار ، ف)

## ث

ثعبان : اژدها

## ج

جاث :- په پره ، یعنې په مزه مزه .

جاړه :- یخني

جاڼ / جانتا :- پوهېدل پېژندل .

جاهدان :- محرکین ، د شرک او مشرک خلاف جنګ کوونکي
(س س)

جُبَه ث :- قبر، قبرستان

جبه :- کټ، کټ کېدل (ف ع)

جریده :- یوازې - (ع ا ر)

جریده :- هغه ځانگه چې د پاڼو نه پاکه وي .(ف ف)

جِچ/جِجهه :- مصروفیت شغل (هانگ)

جلّاس :- یو ځای ناست کسان، دوستان .

جُلبج :- د سرکو پړه

جِلَو :- (۱) باگ، قبضه (۲) سره والے، یوکېدنه، معیّت

جناح :- (۱) د لښکر د ټولو نه ورومبې دله - (۲) هغه دلې چې د لښکر دواړو اړخونو ته د امداد د پاره تیاکلې شوې وي -

جنث :- شجرهٔ نسب -

جنډ :- جاړې (س س)

جُنود :- د جنډ جمع فوځونه

جواد :- سخي - فیاض

جوټ :- جهوټ، دروغ

جوج :- د چرگ چارغولک

جوس :- درشل، غولے - انگړ (د ب)

جهاړ :- جاړې

جهنډے :- کوشش کونکے

جیب :- زړهٔ -

جیبه :- (۱) بفتح اول، بکتر (۲) بکسر اول، زِره

جید :- مزید، لوړ زیات (س س)

جیونه / جون :- مکاره دغه بازه

## ځ

ځلیل :- ځلن ز ځناور ځیوان، ډنگر (د ب)

ځیل :- زنځیر، رسۍ (د ب)

## چ

چاپ :- مهر، محبت

چاچ/چهاچ :- شوملې

چپ :- دهوکه ، فریب
ناموافقت .

چتاړ :- (۱) وران ، ویجاړ ، لتاړ
(۲) چهتاړنا
ټوکړې ټوکړې کول
ډېر زیات شلول

چلقد :- چلته ، زره (ل ک)

چیچي :- بورا

چمند :- سست ناراسته
اَس

چوټ :- ازاد

چوزه :- د چرګې وړوکے بچے

## خ

ځنماخ :- یو کانړے چې اُور
ترې وځي .

ځره :- (۱) سراسر ، ټول
(۲) یوازې ، تنها

ځوړ :- بشکته ، لاندې ، ځوړند

ځوکه :- ځارنه ، د نظر لاندې
ساتنه (د ب)

## ح

حادث :- پېدا کړے شوے ځین
د قدیم ضد .

حارس :- نګهبان ، حافظ

حبوط :- ضائع کېدل ،
بې فائده کېدل ، برباد ېدل
خرابېدل (الاعظم)

حث :- خواهش ، پېدا ول
رغبت واکول ، پارول .

حدث :- پېدا ، واقعتاً موجود

حراض :- شوق ، ترغیب
همت ، (الاعظم)

حرث :- وړوکے .

حشم :- نوکر ، خادم

حُصاص :- تېزه منډه (الاعظم)

حصحص :- (۱) ظاهر شد (حاشیه)
(۲) (د حق) د اخفا نه پس ظاهر ېدل (الاعظم)

حضض :- (۱) د غرهٔ لمن ، غر
(۲) د ستورې د ملار هغه نقطه چې
زمکې ته ډېر نزدې وي (الاعظم)

حُطام :- دیو مات شوي ځیز توکړې ، بې کاره اوفضول ځـیز.

حطط :- (۱) فرود آمدن بمنزل (حاشیه)
(۲) (د څه ځیز) ښکته کېدل (دبوج) لاندې کښېښودل. (الاعظم)

حطوط :- حَطّ - حطًّا - دبره نه ښکته راتلل ، را پرېوتل، کم مرتبه کېدل ، ذلیل کېدل. (الاعظم)

حمید :- دصفت ورې طریقې هغه چې صفت شوی وي. (س س)

حوص :- باطل شدن حجت (حاشیه) باطلېدل.

حیض :- (د مرې) مرکېدل. (الاعظم)

حیط :- دیوار (حاشیه)
حوط :- دڅلورو اړخونو نه محاصره کول ، دېوال راچاپېره کول. (الاعظم)

# خ

خافض :- (۱) متحمل مزاج، با وقاره
(۲) دالله تعالیٰ داسماء الحسنیٰ نه یو نوم
(۳) د خَفَض - خفضًا نه په یو ځائے اقامت نیول - په ځائے ولاړه (الاعظم)

خچه :- راغونډ ، مجسم

خــذاذ :- ددړه

خــذ ذ :- هغه ځلق چې د تېز رفتار اس وغېره په زمکه د نوکونو نه پېدا کېږي.

خِـذلان :- یارې او مدد نه کول ذلالت.

خراذ / خراد :- ظالم، عیّار، لالچي (س س)

خرىب :-

خرَج :- برگ ، دوبېن

خرص :- د تېزې سر، باریکه تېزه. (الاعظم)

خرمنخ :-

خولیط :- تهیلا، کیسه
(الاعظم)

خُص :- (۱) چرم (حاشیه)
(۲) شراب (الاعظم)

خصیص/خسیس :- کنجوس
رذیل -

خضیب :- رنګین، رنګ شوی

خفج :- کوښوه، ازغی، د
سورلی په وخت د پاڼې د شړلو
د پاره د پښې مخ -

خلاب :- بوخته، ختمه

خلا ملا :- پټ او ښکاره

خُلُود :- همېشه، (ف ف)

خلیس :- د دوو ځینو نو ګډوډه
(س س)

خمچه :- د شرابو وړه پیالۍ.

خموض :- تندی غوتهه کول

خمیص :- باریک

خنوذ/خنود :- دیو ښاروي د
جوتي کولو د پاره وړوکی بوج
(س س)

خواجه :- مالک، اقا
سردار

خوچ/خوځ :- ډېر ډک، ترڅنډو
ترشونډو، خوشه، غنچه

خوځه :- غار، سوری
سمڅه، (د ب)

خوخه :- تېغه، غوږګه
سترګه (د ب)

خوذ :- دښمني، عداوت
(س س)

د

داج :- تیاره، سخته تیاره۔

داور :- عادل، بادشاه
حاکم یا ځج کنایة
خدای پاک

دبور :- د قبلې هوا چې عموماً د
شپې له مخه رالوځي۔ د سیلۍ
له مخه دیو ځینې الوتل اوورل
(س س)

دپ :- منلو، داس منله

دثث :- نری باران

دجح :- دبرګه نه اوړزان
خوره -

دحض :- نوېدل، دخوېدلو ځائ
دلارې خنډ، تیندک (الاعظم)

درب :- جوړول -
تیارول -

دربل :- بنکېل، بند
ترلے (ژب)

دڅار :- ګرفتار، ککړ، ګېر، مبتلا

درشه :- مورچه، دکوټې په چت
کښې د رڼا د راتللو او د لوګي د
وتلو لار -

دروڼ :- دننه یا منبنتې څاروے
نخښه لرونکے دننه څاروے -

دستک :- ستن -

دمج :- داخلېدل، پېوست کېدل
استوارېدل -

دنا :- دَنَا، کمینه

دنه / دنند :- دښمني، نفرت

دنس :- ګندګي، الائش
(س س)

دوادو :- په منډه منډه
په مخه، مسلسل -

دوار :- ګردش کونکے
دوره کونکے

دوانند :- دوانن، دوانیدن
مصدر نه ز
زغلول (ف ف)

دوج :- دویم

دوړه :- دروغ، لاپه، ټوکه
ملنډه (دب)

دېنج :-

دهار :- انبوه - هله

دیاث :- دلیل -

دیّان :- بدل اخستونکے
حساب کونکے

دین :- قرض -

ډ

ډنډ :- (۱) سزا (هار)
(۲) تاوان، جرمانه

ډولي :- وړوکے خوږ (دب)

ډونډ :- تلاس، جستجو -

ډونډ :- (۱) ډنډوره ، نغاره
اعلان .
(۲) ستمه (دب)
ډیټ (ډیٹھ) منظر ، نظاره

## ذ

ذکور :- سړي .

## ر

راج :- شراب
راچ / راچنا :- متأثر ، متعلق
راح :- شراب
رالیض :- (۱) فرمانبردار ، مطیع
(ف ف)
(۲) راضي ، خوشحاله ، عاشق ، محب (الاعظم)
رباط :- رسی ، بند
سرائي ، روح (الاعظم)
ربط :- برجستن (حاشیه)
رُبَط ز کلک تړله (الاعظم)
ربوض :- مکان چې انسان یا حیوان
پکښې پناه اخلي یا وسیږي -
(الاعظم)
ربټ :- څرګند ، ښکاره ،
په سینه ، قطي .
رُجاج :- شیشه
رچه / ریچه :- د سپږې اګۍ
رخه :- کینه ، حسد
رِز :- شیندل (س س)
رستاخېز :- قیامت
رسته :- محفوظ
رسن تاب :- رسی جوړونکی
رسیل :- (۱) عیاش ، مست او ښکلي
ځوان ، شوقین (ع ا ر)
رص :- (۱) برهم جنبانه
(۲) مضبوط ، کلک (الاعظم)
رصاص :- (۱) سرپ ، سیکه
(۲) رسیبې دلوښو جوړونکی (ع ا ر)
رطط :- (۱) بانګ وفریاد (حاشیه)
(۲) شور او چغې (الاعظم)
رغث :- پۍ ورکوونکې ماده
یعنې ښځینه حیوان
روټه :- ازاد ، مغرور ، بې پروا
روج :- وړوکې ځنځې چې مرغۍ
یې خوري .

**رؤف** :- ډېر مهربان (ع ا ر)

**رنجک** :- جامه • (ظظر)

**ریتې** :- یو ډول اوښه ده چې غونډې
غونډې دانې کوي او دانې یې د
جامو او د سرو وېښتلو د سپارګه
د صابون په ځاې پکاروله شي.

**ریښ** :- (۱) زخمي، د معمولي درجې
سرې (۲) سستنه، نرمه

**ریج / ریجه** :- خوښه، مینه
مرضي، تسلیمي، اطمینان

**رئیس** :- المنبتې، مفتو (الاعظم)

**رېن** (ه) شپه

## ز

**زخه** :- (۱) د ښاخ وچېدهٔ (س س)
ښاخ
(۲) زخم، (س س)

**زرپ** :- شدت.

**زغرول / ژغرل** :- په حفاظت
کښې ساتل، پټ کول، زغرل.

**زنج** :- (۱) وفریاد
چغې سورې.

**زنهار** :- هرګز، زر، په تلوار

**زوب** :- زیم

**زُون** :- (۱) مکر، فریب، دروغ (ع ا ر)
(۲) امېزش (ه انګ)
(۳) باطل، هر باطل څیز.

**زوبډه** :- حامه، نابوده (زپ)
(۲) تریخ، زهر (دپ)

**زیر / ځیر** پوستکے، پټ
ځرمن (دب)

**زیبل کن** :-

## ژ

**ژغرول** :- ساتل، پټ کول.

**ژغنډه** :- په لرګي وغیره کښې
د تبر دګوزار چود یا نخښه.
غنټ زخم.

**ژُوند / بډوند** :- ډډه دکول
احتراز، انکار.

## س

**سابات** :- دالان، ځپیر

**ساپ** :- صفا، سوتره (دب)

**ساپ** :- لعنت.

ساج :- شریک

ساچ / ساج :- (۱) ساماں، سرانجام
(۲) (سچا - سچ) دښتیا

سادو / سادهو :- فقیر، درویش
نیک سړے . (ع ا ر)

ساریب/سارب :- پهٔ لارٔ بېغ تلونکے لاروے

سافل :- لاندینے، لاندې

سبر :- اصل، ربنه، رنګ
(س س)

ستر/آستر تپچر

ستېز :- قهر، جنګ

سَج : صورت، حضوري، موجودګي
- پهٔ متن کښې داتکے داسې ښکاري
لکه چې "ستجاه" وي خو دا ماته
قلمي غلطي ښکاري .

سجنې/ سجن :- دسجن مونث
معشوقې، هغه ښځې چې کوټېدن
وي .

سخه :- خوشحالي، نصیب

سراچ :- خیمه

سرپ :- داوسپنې یو نرم قسم

سرکپ :- پهٔ سر کښې رېبنه

سرګین :- دسړي یا دَ ځناور دکې موتیازې

سرهنګ :- سردار، نقیب
د فوځ سرهنګ

سعُود :- نیک، مبارک
خوش بخته .

سقیم :- بیمار، حرارت (ع ا ر)

سلې :- (۱) بخشیش، عطا،
(۲) لوار، لوار خوړل .

سلط :- غالب کېدل .
مسلط کېدل (الاعظم)

سلیط :- سخته، مضبوطه
(الاعظم)

سُماسېج :- بې خونده
او بې مزه پے

سُمَېج :- غار (س س)

سمڅ :- دسوړ سره یو ځائے
راځي او دتاکید پهٔ معنو کښې
استعمالیږي .

سَموچه :- توله ، تمامه

سمیځ :- بَد

سنیط :- (۱) جوانمرد (حاشیه)

(۲) السناط ، والسُناط ، سنوط

کوسه ز چې د ږیرې وښتهٔ ئې

یا وي نا یا رنګړوي (الاعظم)

سوابیط :- اساباط ز جمع

سوابیط ز جهت (الاعظم)

سَوَج :- پرسوب

سوچ :- صفا ، پاکه ، واضحه

سُوخه :- پهٔ ختو کښې دوبه

لرلے (س س)

سولیط :- ا میخنتن پهٔ غېږ (حاشیه)

(۲) سَوّط : امېزش ، ګډ (الاعظم)

سَوَیدا :- تور داغ چې پهٔ زړهٔ

باندې وي - داد "سودا" تصغیر

دے چې د"اسود" مونث دے .

(ل ک)

سهاګن :- هغه ښځې چې خاوندان

ئې ژوندي وي .

سهوج :- تېزه هوا ، سیلۍ -

سیان :- هوښیار -

تجربه کار ، جهان دیده -

سیب :- اوبهٔ

سیج / سیچنا :- اوبهٔ کول

لونه‌ول -

سیاجه :- بستر

سیز رح :-

سیس :- حَبس -

سیّس :- انتهائی مقام

اخري سر

(قار)

سیما :- نخښه یا علامت ز

چې د نیکۍ او بدۍ پته

ترې لګي -

مجازاً

تن ہے

سینسار :- عالم

## ش

شارع :- لویه لار ، ښغه لار

شروع کونکے ، دشرعي صاحب چې

خلقوته ددین تعلیم ورکوي -

مشا کله :- مشابهت

شایع :- ظاهر ، ښکاره
مشهور

شبث :- ورسره ، هر هغه شي
چې ټګ سره انښلي -

شنج ، شنجه :-
سخته ، کا نهینږه ځمکه -
نا اواره ، نا اوار یدلي ځمکه -

شتر :- قطع کول -
پرېکول -

شخط :- اصل : شخت ،
کمزوري ، نرۍ ، نرم

شدور :-
شدو : ( Shadow )
دباؤ باسل ، زورل
( Pressing )

شعار :- نښان ، علاوه
چلن ، طریقه -

شعیث :-
پراګنده
پریشان

شطاط :- دحق نه لرې
فاصله لرې والے -

شف :- شپه

شفوف :- کمزورے -
نرے (۴ ص)

شقا :- قطع تعلق

شقیذ :- شق کېدل
لرې کېدل

شماز :- ډکه ، پوره

شمخ :- اوچته مرتبه

شموخه :- هغه ګیاه ده چې په
شولو او جوارو کښې په عامه توګه
سره کیږي -

شموذ :- دروګے ځادر یا لوپټه
چې ځرف د سینې ستر پرې پټولے
شي -

شوخه :- سخت ، سنګین .

## ښ

ښاخه :- لویي ، غرور

ښوخه :- سورے
سوره

## ص :-

صبار :- صابر

صبوح :-

(۱) هغه شراب چې دسحر په وخت څښلے شي . (ل ک)

(۲) هغه څيز چې سحر خوړلے يا څښلے شي ، دسحر لوشلے پيُ . (الاعظم)

صرع :- مثل ، مشابه

صلاح :- نيکي ، ضد فساد . (ل ک)

(۲) صلح

صَلت :- صاف ، خالص کشاده (س س)

صلت :- تېزه او برېښناکه توره لوئے چاقو (س س)

صماخ :- (الصمغ) گوند . دغوږ خيرے (الاعظم)

صولت :- رعب ، دبد به .

## ض :-

ضريح په سوُر رنگ رنگ شوے . (الاعظم)

ضرير :- روند ، بيمار ، نرے پيرے .

ضريں :- ضرر رسان

ضعفا :- دضعيف جمع

ضعث :- دوچو او شنو وښو موټے جمع کول .

ضلنج :- گمراه

ضيث :- ازمرے ، ځنگلی ازمرے .

## ط

طاخ / طاح :- له ډېره جوشه ظاصرول .

طالح :- بدکار سړے (س س)

طبوط :- نعره ، چغه

طوح :- گمراهي ، اواره گردي (الاعظم)

طيب :- خوشبو ، خوشبودار

ښين - (الاعظم)

طيط :- بانگ کردن ، اواز کول .

## ظ

ظلام :- تيارهٔ . تاريکي

# ع

عاسو :-

عاص :- قمر

عاقل :- (۱) عقل - اوبښ تړل

(الاعظم) عاقل : اوبښ تړلو والا

(۲) عقل والا ، هوښیار

عبا :- د کلو چپلو او اوښانو

د ویښتو نه جوړه کپړه .

عبد :- بنده ، غلام .

عتیب :- ، عتاب

عتید :- تیار ، حاضر ، اماده

بیدار ، ترلاسه - (الاعظم)

حاضر ، موجود ، حاصل (اف)

عِدا :- دښمن

عَدَس :- دمسورو دال .

عَرَص :- خوشحالی ، خوشحالید ل

(س س)

عره :- حاجت مند

نیازمند

عریض :- دور ، کشاده ، پلن

وسیع - (الاعظم)

عضیض : دوست ، همسر

(الاعظم)

عَلَث :- دخه ځینسره

یوځائے .

عمیم :- عام - (الاعظم)

عنص :- مال اندک (حاشیه)

(لږ مال)

عنکث :- دزمکې سر

عِماد :- ستنه (ع ا)

عَنا :- تکلیف ، دُکه

عوارض :- رکاوټ ، خنډ

مال واسباب (الاعظم)

عوض :- عوز :-

(۱) شیه (حاشیه)

(۲) حاجت ، احتیاج ،

تنګ لاسي (الاعظم)

عیاذ :- پناه ، پناه اختل -

عیث :- هلاکت

نقصان ، ضرررسان

تباه کن .

# غ

غافر :- گناه بخښونکے
پټوونکے

غامض :- ژوره (مخفي) (ع ا)

غبث :- د پنیر د غوړو
سره ملاوول .

غبیط :- ښکته زمکه چې د دوا
غاړې یې اوچتې وي . (الاعظم)

غثبج :- سرېان

غرایض :- د غرض جمع
حاجت ، ضرورت ، مقصد .

غرض :- (۱) کم شدن (حاشیه)
(۲) پرېشانه ، خفه (الاعظم)

غسق :- تیاره .

غشوه :- په څه پرده یا
نقاب اچول .

غلیط :- هغه چې د څه الهام له
وجې غلط شوے وي . (الاعظم)

غوا :- گمراه ، کج رو (ق ف)

غوا :- غوټي)
هلاک کېدل .

غوایض :- (۱) بخشیش (حاشیه)
(۲) ذلت ، کمینگي (الاعظم)

غوث : فریاد رس

غوځکے :- غټ غوږ
سخوندر (پ پ)
فوار غوځے .

غورېز :- یو ازغن بوټے (د ب)
له کاره وتلے (پ پ)

غوزه :- د پنبې گل (پ پ)

غول :- جمع غولان
یو قسم د یوان او پېریان چې په
ځنگلونو کښې وسي او ځان په
رنگ رنگ شکلونو کښې ښکاره کوي .

غوېږ :- سخت ، کلک ، غښتلے
ونبښتاکه (پ پ)

غیلي :- څادوي (پ پ)

# ف

فایض :- (۱) پکار درشونده
(۲) ځان جدا کولو والا
تفریق پیدا کولو والا
د (الفض) مصدر نه

(۳) قرض کنندهٔ (حاشیه)

(الاعظم) فیاض : (ع ار)

فث :- تس نس کجوري .

دباجرې دوږ یه

فَتُور :- (۱) بې حسرته، بې ارزو .

س س، (۲) بې فساده .

بې خرابیه

فجور :- گناه گار . بنکاره بدي

کوونکے، گمراه، نافرمان .

فذ :- تنها، یوازې

(د احدیت مرتبه)

فَرَج :- مجازاً دیدن، تماشا

فرط :- (۱) درگذشته تېر

(۲) اول رسېدلے، مخکښې تللے

فرنج :-

فُص :- غمے

فصلت :- جدایي، فراق (ع ار)

فُطر :- پېدا

فنبج :-

فوض :- (بل ته) سپارل

حواله کول . (دلته ترې

مراد شرک بنکاري .

فیروز :- نېک بخت، سعادت مند

خوش نصیبه (دب)

## ق

قابض :- (۱) گیرندهٔ (حاشیه)

(۲) گرد الوده - شگفته .

(دوړو وړو کاڼو ډکه : (الاعظم)

قجیر :- (۱) یو ډول لوښے مارغهٔ دے

دلوړو غرو قجیرې مې کړو

بلبلې ژاړي چې خالي شول گړنکونه

(۲) بنهٔ او کامل سړے .

قسام :- تقسیم کوونکے

قسر :- پوستکے، خرمن

لباس

قُرطُق :- کرته، قمیص

قطار :- وضع، چم

قضا :- شا، غیبت .

قلنج/قولنج :- دگېډې درد

یوه بیماري .

قلبج :- کچه کوسه

قلیه :- سوه کړې غوښه

هغه نمو بنې ته هم وئيلے شي چې
بنو روا ورسره وي .

قنات :- پرده .

قوت :- خوراک (د ب)

قوز :- کږه ملا ، کوږ ، تا ؤشوې
کږه - (س س)

قـير :- تارکول (هـ انگ)

# ک

کاج :- ملکيت ، اثاثه ، کاروبار
کار ، شغل

کاچ / کاج :- د صنوبر اونه

کاچ :- کاچا ، کچا ز کچه

کاخ :- اوچت مکان ،
محـل

کاکلوچ :- مرئ ، حلق

کالوخـه :- ديو بوټي نوم
دے . (س س)

کاوان :- کاوانيدن .
هغه چې ځان ترکندې کني .
د دننه نه خالي . (س س)

کبته :- کبت ، کبين دشاتو

ځچنځ د قاطع - ام ک)

کبيج / کپيچ :- ديو ځناور
نوم دے (س س)

کپ :- نوږيد ، مږيد

کپ :- داس په خوله کښې هغه
منځ ، سينځ چې دوا رو سرونو
ته يې قبږ يې ترلې وي .

کبټ :-(هـ) سپږه .

کوټـمل :- دکوتل مصدر نه ز
کوتره کول ، په لاس پوست اپستل
زخمي کول .

کچـه / کچا :- ساده ، احمق
بې وقوف

کچـه / کچه :- هغه زمکه چې د
خوړ په غاړه وي (هار)
(دلته ترې لهه او خټه مراد ده)

کـدام :- کوم ، کوم سرے
کوم څـيز

کـد خدا :- دکور مالک .

کـدر :- خيرن ، تور
گنده .

کُربت :- کرب
تکلیف (ع ار)

کواث :- گندنا .
دیو قسم ساگ

کواړه :- دسیند دغاړې او چته
زمکه (کمر) سخته او شکلته
زمکه . (دب)

کروړ :- ډېر سخت ، کلک ،
مضبوط ، پهلوان (دب)

کوبز :- دمرغیو څوانیه وزرې
غورزول ، پنجره (هانگ)

کُسُم :- هغه گل چې جامې پرې
پڼسور رنگ سره رنگولے شي .

کِسوت :- لباس - جامه -

کشط :- (۱) برهنه (حاشیه)
(۲) پېڅ ځېن بربنډول ښکاره کول -
دخه ځېن نه سرپا نقاب پورته
کول . (الاعظم)

کشنیز :- دهنیا (س س)

ککوس :- چرک

کلپوچ / کلپوچه :- قلمي اصل
کبنې دا "کلوچ" دے خو داتکے
اصل کبنې کلپوچ دے چې د
شعرې ضرورت له مخه کلوچ
لیکلے شوے دے معنې ئې دي .
مولا ، صوفي ، پادري ، پنډت

کلچه :- غوړه روټه

کمیز :- موتیازې (س س)

کنډ :- چینه -
تالاؤ (آر، ف)

کنډ والے :-

کنګال :- (۱) مفلس ، محتاج ، نادار
(۲) تش ، صفا

کنهې / کنهیا :- بې حده
بې اندازې ډېر

کوټ :- انبار ، ډېر
ډېر زیات

کوټه / کوټل :- وهل ،
ټکول ، نرول

کوځه :- جدوجهد ،
کوشش

کَوْل :- (هـ) (۱) بنهٔ خاندان والا

(۲) د ځنګلي انسانانو يو ذات .

کولنګ :- هغه لرګي چې ځناورو
ته يې په دې غرض غاړه کېنې
اچولې شي چې منډه نه وهي .
(د ب)

کونډه :- لوټه ، چم ، کلکه
خاوره ، غاړ (ا ر ، ف)

کهه : کم تر

کهه / کهنا :- وينا ، خبره .

کهه :- بد ، خراب

کهال :- سين ، نهر (ه انګ)

کهنې :- پخوانۍ ، زوړ

کېچه :- بوخته

کېش :- دين ، مذهب
ملت (ه ا ر)

کېوان :- اسمان (ا م ک)

## ګ

ګاچ / ګاج :- د صنوبر اونه .

ګاړ :- بېخ

ګايل :- زخمي

ګټ / ګت :- (ه) ظهور ، نمود

ګټ / ګصټ :- (ه) پټ ،
پوشيده ، مخفي ، مستور

ګراس :- نوړی ، مړی

ګرزي :- ګرزيدن ،
علاج ، دوا (س س)

ګرېز :- خطا ، انحراف
تجاوز . (س س)

ګنډ :- حلقه (ا ر ، ف)

ګوپال :- د او سپنې ګرز
ديو پهلوان نوم (ل ک)

ګوټخه :- ګوتمه .
د سرو ګوته ، د ګوتو کالي (د ب)

ګوټې :- نقش ونګار

ګوړ :- خزله ، دړوان
ګندګي .

ګوړ / ګوړه :- پوشيده
پټ ، راز ، غيب (ه انګ)

ګولړ :- ځنګلي انځر

ګوټه :- ځنګل (ق ا ر)

ګهټ :- زره ، ضمير

ګهوټ :- جلاوركول .

**کېنهتي** :- کانه .

# ل

**لاخ** :- غر، کاڼي (س س)

**لامع** :- پړقېدونکې
روښان، ځلند (ع ا ر)

**لبالمرصاد**:- إِنَّ رَبَّكَ لَبِالْمِرْصَادِ الفجر آیة ۱۴
بېشکه ستاسو رب په څو (انتظار) کښې دی

**لباړ** :- نادان، ناخبره،
ناپوهه، لباړي، لوټ مارکوونکې
تباهي راوستونکې .

**لبیب** :- عقل مند

**لټ** :- (ه) بسته، ترلې
منجمد، بند شوی ترنده .

**لټ** :- (ه) اوربل، په تندي
یا خوا و شا ځلکوټی وهبسته .

**لټ پټ** :- ارخ په ارخ (د ب)

**لج** :- په کوشش سره، په کلکې
ارادې سره، ثابت قدمۍ سره .

**لجار** :- هغه سرې چې ډېر ترې
وي، جل وهلې .

**لجام** :- د لګام معرب

**لجه/ لج** :- (۱) لېچنې سترګې
د سترګو بیماري .
(۲) مفلس، غریب (هانگ)

**لشنجه** :- اص: لشن، باقاعده
په مخه پرېولو .

**لښل** :- تلل، سفر کول
بادول .

**لښلې** :- بادکړې شوې، کوچولې
په سفر روان کړې شوې .

**لص** :- درخشان (حاشیه)
پړقېدونکې .

**لګروخ** :- ناسم، ناصحیح
غلط .

**لوا** :- جهنډا، علم
د فوځ نخښه .

**لوټي** :- (لوتهنا)
دغرېدل .

**لوج** :- اصل معنی یې معلومه نه
شوه. کېدی شي د شعري ضرورت له مخه
"لوچ" یې "لوج" لیکلې وي - دا
عمل مخلص د ضرورت پروخت اکثر
کوي لوچ ز د تلاش، تکلیف، رنج

لچر ، کمینه .

**لوج** :- ضرورت ، حاجت

**لوچ** :- لچر ، کمینه .

**لوڅ** :- بربنډ ، لغړ
پهٔ هره ډډه .

**لوخه** :- یو قسم بوټے دےچې
عام طور پهٔ اراجو نو او ولاړو ؤبو
کښې کیږي .

**لودلے** :- لل لودل ، دکول پهٔ
معنیٰ (دب)

**لوړل** :- جوړول ، وچتول
جګول (دب)

**لولو** :- ملغلرې ، ګوهر

**لون** :- قسم

**لوو** :- (لوے)
د اورشغله ، دزړهٔ میلان ،
دزړهٔ لګیدهٔ ، ذوق اوشوق .
(ا ، ف)

**لهیث** :- (۱) بوس ، وچ واښهٔ .
(۲) لیث . د قیام ځائے .

**لیث** :- د قیام ځائے .

## م

**ماچ / ماچهي** :- مچ

**ماخه** :- سرو زرو کښې د سپینو
زرو ملاوټ ، امېزش ، کوټه
ناقص . (س س)

**مادح** :- مدح کونکے

**ماروج** :- اصل کښې "المارج" دے
شغله ، زر اور اختونکے ، بغیر
دلوګې انګار یا اور

**ماوا** :- مکان ، مقام ، مسکن
کور ، (ه انګ)

**ماکن / ماګن / ماکهن** :- (ه)
کُچ ، تیل ، غوړي .
پخ کړې پیے .

**مبعوث** :- لیږلے شوے
قائم شوے

**متین** :- کلک ، مضبوط
محکم .

**مټ** :- سست ، رو ، پهٔ مزه
طاقت ، زور

**مټ** :- خم

مجیټ (مجیټه)

دیوې دوایښه نوم دے چې جاپې
پرې په سور رنګ سره رنګولے
شي.

محوض :- (۱) درخت بزرګ (حاشیه)
(۲) رښتنیے او خالص محبت
خالص خیرخواهي. (الاعظم)

محیص :- لرې، په ډډه
(س س)

محیط :- احاطه کوُنکے

مخیط :- هغه ځائے چې چرته
جامې ګنډلې شي. مُخیّط، د
ګنډلو ستن. (س س)

مِدات :- اهمیت، ضرورت

مدرج :- لار، سړک، اعلیٰ څیز
ته د رسېدو ذریعه.

مذاذ :- ذلیل، رټلے شوے.

مِراح :- خوشحالي. (ل ک)

مرچ / مرچڼا :- دسکتې عالم
بې هوشي

مَرَن :- مړک، مړینه.

مرور :- زور، تمکنت (ع ا ر)

مرین :- اراده کوونکے

مروښه :- دشتهٔ خاوند ښځه
(د ب)

مږ :- ګلو، ځنګلي ګلو.

مستقي :- تږے

مششر :- مشر، ګډ شوے
یو شوے. (ع ا ر)

مشعبذ :- سیاره، هغه اسماني جسم
دے چې د نمر یا ستورې نه چاپېر
ګرځي او پخپله رڼا کوي. (س س)

مصباح :- چراغ

مصیر :- ورتګ، ورماتې،
یو لور ته مخه. (س س)

مضاعف :- یو په دوه.
دوه دونیمه.

مضلت :- دګمراهۍ ځائے

مَعَاد :- د واپس تللو ځائے
اخرت، قیامت (ع ا ر)

معاذ :- د پناه ځائے (ع ا ر)

معطوط :- بې وسه، شکست خورده

مفتوح ۔ (س س)

مطر :- باران

مفتاح :- کنجي ، چابي

مقرون :- قریب ، نزدې

نزدې کړے شوے ۔

مقنع :- هغه باریکه کپړا چي

د ناوې د سهرې لاندې ترلے

شي ۔ (ع ار)

مکتوم :- پټ ، پټ کړے ۔

مکیث :- سست ، بې څه

ایسادتیا ، بې څه انتظار

توقف کوونکے ۔

مکړي / مکړې :-

بُولا (ه انګ)

ملاذ :- د پناه ځائے (ع ار)

ملجا :- د پناه ځائے

ملوج / ملچ :- دتې ماشوم

ملوح :- (۱) نمکینې اوبه (الاعظم)

(۲) موغمبه (ال ک)

ملیح / ملوج :- د پیو ماشوم

نابالغ

ممر :- تېرېدنه ، ګذر (س س)

ممنج :-

مناص :- د پناه ځائے (ف ف)

منج :- یو قسم وابنه چي پېړې

او بوټي وغیره ترې اودلي شي ۔

منظار :- ائینه (س س)

منفذ :- ره ګذر ، لار ۔

منوب :- هغه څوک چي نیابت

ورته حاصل وي ۔

منهاج :- لار ۔

مواس :- شیطان ، چغلي خور (طف)

موالید :- د مولود جمعه ده ۔

معنی یې دي : بچے ، زوے

موته / موتي :-

یو قسم بوټے

موجه / مُوَجه :- قابل قبول

موخه :- موخمه ، اکثر د ټیکرې

نه جوړه شوې وي چې دسیکې

د ټیکه یا د وپه برابر وي ۔

— موج : بې هوده ۔

(د ب)

مور :- یو قسم خوشحالي (ه انګ)

موض :- چارپایان (حاشیه)

مونړ / مُنړ :- دڅټ برینه برخه
یعني سر (ه ار)

مونړه / مُنړا :- صفا او خړپړے
شوے. خړپړے شوے سر (ا، ف)

موېز :- مېوه (د ب)

منیب :- توبه کوونکے
قائم مقام ، نائب ، کارمختار

میتها ، میٹها)
خوږ ، شیرین

مېږ / مېګهه (ه)
(۱) ورېځ ، باران
(۲) دیو راګ نوم چې په پشکال او
بادرو کښې غږولے شي .

میلے :- دکوچیانو د استوګن
ځائے .

مېنا :- اسمان .

## ن

نایځ :- ناجوړتي ، هغه څاروے
چې د بار وړولو یا د کار کولو
سره بلد نهٔ وي .

ناجي :- نجات موندونکے (لک)
ازاد ، خلاص .

ناس :- (۱) فنا
(۲) خلق

ناسنده :- چاق ،
څورب .

ناسهنده :- بې خبره
دبرداشت نه بهر وتونکے

نبات :- دهر قسمه وابنهٔ
سبزه او اوني چې د زمکې نه
پیدا شي .

نجذاذ :- اص : نجن ذ
فنا کېدل .
(دیوی خبرې) حاصلېدل

نچل :- خوار ، پمن

نحفیض :- پراګنده (حاشیه)
تس نس

نراس :- نااميده ،
مایوسه (ه انګ)

نزار :- لړ ، سپک

نسیج :- بنهډلی کپړه
ډېر نرے او باریک بنهډے
څېن (ف ع)

نشیث :- ترے

نضایض :- (۱) اب اندک (حاشیه)
(۲) لږ باران، لږی اوبهٔ (الاعظم)

نفاذ / نفاد :- بې فائدې

نفیر :- نفرت، کرکه.

نُقبا :- دنقیب جمع
بزرګ، سردار

نقیب :- (۱) هغه چې سورے کوي.
صفر چې کنډ رکوي.
(۲) دقوم مشر، سردار (الاعظم)

نکودار :- دخېر ښیګړې والا

نګوړ :- کم بخت، بدنصیب (م انګ)

نماستل :- څملاستل، نماستل
ملاستل.

نِواړ :- دیو قسم کشتۍ
بېړۍ (هار)

نوار :- نوار (ع ار)

نوکنډ / نَوکھنډ (ه) نهه

اقلیمونه.

نولهه / نوله :- قول
کلام.

نهض :- وچتېدل
دچا دخپل ځائے وچتېدل
(الاعظم)

نهیسب :- محفوظ
سلامت

نهیج :- پهٔ یائے مجهول سره دَ
نهنج نه اماله ده. دنهغه
راپېدل او زرغونه، پهٔ معنی سرګ.

نـیر :- (۱) دنیا ځلق، تیزي
اور
(۲) سمندر، دریاب اوبنکي (ع ار)

نیرغ :- دنیرنګ، عرب
مکر، فریب، حیله.

نیږ :- سترګې.

## و

واش :- بې باکه (دب)

واړ :- دبوسو نه غنم اېستل.
غنم اړونه، مېده کونه

وبازه / باز :- (۱) کشوده
پرانستے دبسته، بند، ضد (ام ک)
وټ :- دیوکل نوم دے
وُحوش :- ځنګلي ځناور
وخط :- (۱) لوټے لوټے کاموته،
اوږده اوږده قدمونه
(۲) دپهٔ تجارت کښې
اونچ نیچ لیدل۔
کله فائده کله نقصان کول (الاعظم)
ورا :- دوستو، شاته۔
ورزېدل :- الوتل، (ڗپ)
وَرېت :- څرګند، ښکاره۔
وَزَر :- دننه، محفوظ ځائے
وضوح :- ظهور، واضح کېدل
پېدا کېدهٔ او روښانه کېدهٔ۔
وعص / وعث :- (۱) ریګ (حاشیه)
(۲) شګه۔ (الاعظم)
وفض :- (۱) شتاب (حاشیه)
(۲) زر زر تلل، پهٔ منډه
تلل۔ (الاعظم)
وَلث :- لږ باران

ونج :- بې یار
تجارت (ا ر پ)
ونجول :- بدلول (دب)
ونج : تجارت
سوداګري (ظفر)
وهق :- کمند
ویاسته :- بیاسته
دسے

## ها / ھ

هادر :- بې اعتباره
هارون :- سرکش، سرکش اس
هایل :- یرووونکے، هلاکوونکے
هبا :- (۱) حقیر، ذلیل
(۲) ګرد او غبار
هټ :- (ه) لار، دوکان
هېچ :- پهٔ زمکه کښې یو شے
ځخول، ښخ ودرول (س س)
هدا :- ښخه‌لار
هَدَم :- باطل، دروغ۔
هَدم : ویراني
بربادي

اپنډ :- په تلوار،
په منډه . (س س)

ہبض :- (۱) کوفتن (حاشیه)
(۲) ماتول، ټکول .
ټوټې ټوټې کول . (س س)

ہبج :- دکندکې ګونګټې

ہمذ :- تېزرفتار اوښ
یا اوښه . (ف غ)

ھمش :- دیو په بل کښې
داخلېدل . (س س)

ہموارہ :- ھمېشه (س س)

ہنډ :- (۱) لار، طریقه، دستور
(۲) هغه ارمان چې سره یې د
تکمیل دپاره دپرتن هڅه ږي . د
زړه غوښتنه . قصد، اراده .
(د ب)

ھوټ :- پیکر، جسد

ہوډ :- یو قسم مرغه (س س)

ہوېدا :- ښکاره، څرګند
ظاهر

ہیج :- اوچتونکے .

مراد الله تعالیٰ، دهغه ذات او
هستي .

هیر/ اهیر - (ه) څرووتکے
ګوار چې

ہیز :- هیجړا، مخنث
بزدل . (ع ا)

ہیم :- کج رو، دسمې لارې
نه په ده . (س س)

## ی

یرا : تهه، پرده

یرض :- اندک (لن) حاشیه

ین کا :-

یعضوض :- فرمانشدي . حاشیه

یلپح :- ددې اصل "یلیل" دے چې
معنې یې دي حقیر، ذلیل، دکمې درجې

یم :- سمندر

یوح :- نمر، افتاب

یوس/یوش :- ښکاره، تلاش
لټون . (س س)

یوز :- پړانګ (د ب)

# تصوفي اصطلاحات

**اثبات :-** (۱) د حق بنکاره کېدل او د خلق پټېدل اثبات بللے شي.
(۲) هغه کارونه کول چې بنده پرې د الله تعالیٰ سره یو ځائے کېږي.

**اَخیار :-** (۱) هغه اولیاء الله چې د سلوک منزلونه د شریعت د احکامو یعني د مونځ، روژې، زکوٰة، حج او جهاد په ذریعه سرته رسوي او د حق سره واصل کېږي.
(۲) د درې سوه شپېږ څلوېښتو رجال الغیب (د هستیو (مردان غیب) نه چې کومې اووه هستۍ پورته کړې شي هغوته هم اخیار وائي.

**افتاب :-** د روح دنیا ته روائي

**امهات صفات :-** د الله تعالیٰ کومې صفات دي خودې کښې دوه صفات داسې دي چې هغوته د ټولو صفاتو امهات ویلے شي دغه دوه صفات دادي.
حیات، علم، قدرت، ارادة سمع، بصر، کلام

**انزوا :-** د دنیا او د عقبیٰ پر ښبود ته انزوا وائي یعني کله چې د سالک زړه د دنیا د اسبابو او تعلقاتو نه صفا او د ثواب د طلب نه پاک شي نو انزوا حاصله شي.

**اوتاد :-** ظاهري او مستوري اولیاء دولس[۱۲] دي. په دوي کښې څلورمه درجه د اوتادو ده. اوتاد په شمار څلور دي
(۱) یو په نمر پرېوتلو اړخ وي چې نوم ئې عبدالودود دے
(۲) یو په نمرختلو اړخ وي چې نوم ئې عبدالرحمٰن دے
(۳) یو په سوېل اړخ وي چې نوم

ئې عبدالرحيم دے .

(۳) يو پۀ قطب ارخ وي چې نوم

ئې عبدالقدوس دے .

**بالغ** :- کله چې يو سالک د فنا مقام

ته ورسي او د ے د الٰهي جذبې

د صفت مظهر وګرځي او په دې

صفت سره دے بيا د نورو پۀ

باطن کښې د تصرف اهليت پيدا

کړي نو دغه وخت دۀ ته بالغ

وائي .

**برزخ** :- پۀ لغت کښې برزخ د دوو

څيزونو په مينځ کښې حائل څيز

ته وائي . د تصوف پۀ اصطلاح

کښې د دوو عالمونو يا حالتونو

ترمينځه حائل او قائم عالم ته

د طرفينو برزخ وائي .

**بسط** :- د سالک د زړۀ پرانېستو

او سرور ته بسط وئيلې شي . په

سالک د "سيرالی الله" حالت

کښې بعضې داسې واردات ورود

کوي چې د هغې نه د هغۀ پۀ

زړۀ کښې د عشق او محبت غلبه سرور

او شوق پيدا کيږي . پۀ

عبادت کښې ېې خوند پيدا کيږي

او ددې نه د سالک د باطن ترقي

کيږي .

"قبض" ددې ضد دے .

**بسيط** :- پۀ ټول کائنات کښې

صرف هغه يو ذات ليدل .

**بقا** :- وګورئ تعليقات

**تجلّي** :- د ذات د اسماء د صفاتو

او د الٰهي افعالو په چا ظاهرېدو ته

تجلّي وائي . د مطلق ذات ښکاره

کېدۀ د تعين پۀ لباس کښې کيږي .

پۀ دې وجه صوفيه حضرات د

مطلق ذات د تعين لباس ته

تجلي وائي .

د تجلی څلور قسمونه دي .

**تزکيه** :- نفس د بدو صفاتو

نه پاکول .

**تشبيه او تنزيه** :- وګورئ تعليقات

**تصفیه** :- زړهٔ د ما سوا ے اللّٰه نه پاکول .

**تلقین** :- د کامل له اړخه د طالب هستي او خودي ختمول او د حق په هستۍ کښي یې فنا کولو ته تلقین وائي .

**توحید** :- وګورئ تعلیقات

**توره شپه** : (شب) دکثرت عالم ته وائي . د ما بنام تصوفي اصطلاح هم دکثرت دعالم دپاره پکارولے شي .

**جبروت** :- د الٰهي اسماؤ او صفاتو عظمت او جلال ته جبروت وائي

- اوکله د وحدت مرتبې او دشیون مرتبې ته هم جبروت وائي .

(۲) دا د صفاتو عالم دے په دې دَ غیرت او دسوائیه اِسم اطلاق نهٔ کیږي . ددې برعکس په حادث عالم دغیرت او سوائیه اسم اطلاق کیږي .

- دا دَ جبروت عالم نه عین دے او نهٔ غیر

- دې ته په دې جبروت وائي چې ثابت اعیان دلته د وجود جبر اختیار کړو .

**جمال** :- د لطف او رحمت تجلّي

**حادث** :- مخلوقات چې پخپل ایجاد کښې د یو موجد محتاج وي . یو د حق ذات قدیم دے . باقي هر شے حادث دے .

**حجابونه** :- وګورئ تعلیقات

**حیات** :- اګاهي، شعور، ظهور، بُروز —

د یو شي شے کېدل دهغه حیات دے .

**خفي ذکر** :- پټ ذکر ته وائي . دې ذکر کښې دمطلوب حضوري دومره غالبه شي او په ذاکر یو داسې محویت خور شي چې د ذاکر

خودي ختمه شي او صرف د ذکر
لذت باقي پاتې شي

— دپیر روښان په تعلیماتو کښې
دې ذکر ته دایمي ذکر او مدامي
ذکر هم وائي .

دا مثالو تجدّد د وګورئ تعلیقات

د روان ذکر / روحي ذکر :-
د حق د اسماء او صفاتو له مخه
مشاهده کول د روحي ذکر بلل کیږي
شي . دې ذکر ته جبروتي ذکر
او مشاهده هم وائي .

دریا / دریاب :- د حق ذات
وجود او هستي ته د دریا / دریاب
سره تشبیه ورکولې شي .

د زړهٔ ذکر ( ذکرِ قلبي )
د مطلوب او مقصود تصوّر په زړهٔ
کښې کښېنول او د الفاظو د رعایت
او ترتیب نه بغیر دمعنٰی د اسم
مطالعه کول د زړهٔ ذکر بللے
شي . دې ذکر ته ملکوتي ذکر
او مراقبه هم وائي .

د ژبې ذکر ( ذکرِ لساني )
دې ذکر ته لفظي ذکر هم وائي
یعني د ژبې نه د الفاظو په
ادا کولو سره او د زړهٔ نه د دې
د معنٰی په فهم سره ذکر ته د ژبې
ذکر ( ذکرِ لساني ) وائي . د دې ذکر
دوه قسمه دي .
(۱) د جهر ذکر
(۲) پټ ذکر

دم :- ساه ، د باطن حرکت
د ذات حرکت .

د مثال عالم :- دا د ارواحو د
عالم او د اجسامو د عالم ترمینځه
یو برزخ دے .

د هو ذکر ( ذکرِ هو ) د هو نه
مراد بغیر د څهٔ صفت او ظهور نه
د بحت ذات مراد دے دا د خالص
ذات د نقطې اسم دے . د دې په
ذکر سره سالک د بشري صفاتو نه
ازاد شي او د حق سبحانه د هستۍ
نه سېوا هیڅ پاتې نهٔ شي .

**ذات** :- د ذات نه مراد بغیر د
څهٔ اعتباراتو، صفاتو او تعیناتو
خالص ذات دے .

**ذکر** :- هغه شے چې پهٔ توسل
سره یې خپل مطلوب یاد وي .

**روح** :- وګورئ تفصیل په
پاڼو باندې .

**زړهٔ** :- یوه روحاني او رباني لطیفه
ده هم دغه انساني حقیقت دے
چا چې زړهٔ وپېژندو هغهٔ خدائے
وموندلو . زړهٔ د جمال او جلال
مظهر دے . زړهٔ د ذات کور دے .

**زړهٔ او د زړهٔ قسمونه** .
وګورئ تعلیقات

**زنار** :- د زنار ډېرې معنې دي
(۱) یک رنګي او یو رخي ته وائي
یعنې حقیقي توحید حاصلېدل .
(۲) د معشوق خپل عاشق نمائل
(۳) د معشوق خدمت او اطاعت
ته تیار وسېدل .
(۴) د زنار نه زلفې هم مراد وے
شي .
(۵) د الله تعالی د ذاتي تجلي په
وسیله مد د غونښتل .

**سحر** :- (صبح)
د "وحدت" د مرتبې د پاره
پکاروے شي .

**شاهد** :- هغه چې د حق د
تجلو بغیر د حجابه مشاهده کوي .

**شپږ تنزلات** :- وګورئ تعلیقات

**شهود** :- د حق لیدهٔ پهٔ حق
سره یعنې ټول کائنات او موجودات
د حق الیقین پهٔ مرتبه کښې عین
حق ګڼل، هره ذره کښې یو ذات،
پهٔ ذات کښې ټول موجودات د
عینیت پهٔ صفت لیدهٔ .

**صفات** :- د ذات ظهور ته
صفت وائي .
د ذات ګڼ صفات دي خو دا
پهٔ غټه سره په څلورو قسمونو
کښې بیان شوي دي .

**ذاتي صفات :** داهغه صفات دي چې دی سره دحق ذات موصوف کېدے شي او دد ې صفاتو د ضد سره د حق ذات موصوف کېدے نشي - دمثال په توګه د قدرت ضد عجز دے دي ضد سره د حق ذات نهٔ شي موصوف کېدے -

یا لکه دعلم ضد جهل دے . جهل سره دحق ذات نهٔ شي موصوف کېدے -

**فعلیه صفات :-** داهغه صفات دي چې ددې ضد سره دحق ذات موصوف کېدے شي لکه دمثال پهٔ توګه د رحمت صفت ضد غضب دے دالله تعالیٰ په چا رحمت دے او پهٔ چا غضب دے -

**جمالیه صفات :-** داهغه صفات دي چې ددې تعلق د لطف او رحمت سره دے .

**جلالیه صفات :-** داهغه صفات دي چې ددې تعلق دجلال او قهر سره دے .

**ظهور :-** دتعیناتو په صورت کښې دحقیقت ملبوس کېدل ، ظهور بللے شي .

**غیر :-** ما سوائے الله ته غیر وائي یعني جمله موجودات د تعیّن او تقید پهٔ حواله غیر دي .

**فنا :-** وګورئ تعلیقات

**قبض :-** دسالک پهٔ زړهٔ دغیبي وارداتو بندېدلو ته وائي -ددې په وجه دسالک پهٔ زړهٔ کښې سرور او شوق کم شي او پهٔ عبادت کښې یې زړهٔ نهٔ لګي .

د قبض دوه قسمونه دي .

(۱) محموده قبض : دا د بسط د حالت د ختمېدلو دپاره دي - دا پهٔ دې چې دسالک ذوق او شوق او سرور دحد نه زیات نهٔ شي

اوالهي اسرار خلقو ته بيان نهٔ
کړي - دا د ضبط دپاره وي - دوی
نه په سالک کښې د برداشت ماده
پيدا کيږي .

(۲) مذمومه قبض :-
کله چې د سالک نه د بسط په
حالت کښې بې ادبي وشي او د محبت
په نشه کښې د تعلي نه کار واخلي
نو د قبض حالت پرې خدائے نازل
کړي - غيبي واردات پرې بند شي
دا د سالک دپاره يو تنبيه او سزا ده -

**قدم :-** د حق سبحانهٔ تعالیٰ
پهٔ علم کښې د هر شي دپاره
يو خاص قابليت او استعداد
ټاکلے شوے وي - دغې استعداد
او قابليت ته قدم وائي .

**کامل :-** هغه سالک چې د سلوک
ټولو مقامونو نه تېر شوے وي
او د حق سره وصل شوے وي -

**کثرت :-** د ذات د ظهور مرتبو
ته کثرت وائي -

صوفياء عموماً د ارواح عالم،
د مثال عالم او د اجسامو عالم ته
کثرت وائي .

**ملکوت :-** (۱) هغه عالم چې د ملائکو
روحونو او د نفسونو دپاره خاص دے
(۲) د ارواحو عالم بعضې يې د اسماءِ
مرتبې ته هم وائي .

## کم انسان - لوئے انسان

کم انسان نه مراد وړوکے يا تخم
او ميوه ده او د لوئے انسان نه
مراد سړے يا ونه ده .

**کمان :-** کمان د سالک هغه حالت
دے چې دے لا د دويمه او دماسبوا
د وجود قايل وي -

**لاهوت :-** د ذات د "احديت"
مرتبې ته لاهوت وائي .

**لطيف ، کثيف :-** د حادث عالم
دوه قسمونه دي
(۱) لطيف عالم يعني باطن ؛ دا د
مجرداتو عالم دے - دمادې نه
ازاد دے لکه ارواح عقل او فرښتې

(۲) کثیف عالم : یعنې ظاهر عالم ته وائي . د مادې او جسمونو عالم

**لوی برزخ** (برزخ کبریٰ)

ددې نه مراد (محمدیه حقیقت) دی کوم چې د ظهور او بطون ترمنځ دیوترون کار ورکوي - دې ته نور کې نومونه هم اخستلی شي . لکه (برزخونو برزخ (برزخ البرازخ) جامعه برزخ ، اولنی برزخ او داسې نور .

**مجهول النعت :-**

نعت هغه تعریف یا صفت ته وائي چې د هغه نه د ذات تمیز پیدا کیږي او مجهول النعت د ذات هغه مرتبه ده چرته چې د هیڅ قسمه ثبوتي وصف ، لغوي او اسمي اعتبار څه حقیقت نه لري .

**مخفي کنج :-** د وجود هغې مرتبې ته وائي چرته چې د الله تعالیٰ ذات د صفاتو او تعیناتو هیڅ اعتبار نهٔ نهٔ لري یعنې د ذات هغه سر او حقیقت چې سوا د حق ذات نه بل څوک د هغې علم نهٔ شي لرلی . دې حالت ته د هویت او د غیب الغیب تصوفي اصطلاح کانې هم پکارولی شي .

**معرفت :-** د حق تعالیٰ پېژندلو ته معرفت وائي . د معرفت درې قسمه دي .

(۱) عقلي معرفت :- پهٔ عقلي دلیلونو سره د حق تعالیٰ پېژندلو ته وائي .

(۲) علمي معرفت :- پهٔ عقلي او نقلي دلیلونو سره د حق پېژندلو ته وائي .

(۳) کشفي معرفت :- دا حقیقي معرفت دی دا د سلوک پهٔ لار د حق تعالیٰ پهٔ اثارو صفاتو او ذات کښې د فنا حاصلولو نه پس حاصلیږي .

**ممتنع الوجود :-** هغه چې پهٔ هیڅ شان ئې وجود نیول کیدی نهٔ شي یعنې د واجب الوجود ضد.

دمثال په توګه دحق ذات په ضد کښې دحق غیرخوکله د ممتنع الوجود نه د دوح مرتبه هم مرادولے شي ځکه چې روح هم بې کيفه وي -

ممكن الوجود :- هغه وجود چې دخپل موجوديت دپاره دغير محتاج وي - ماسوائے الله ته ممكن الوجود وائي - كله دمثال عالم ته هم وائي -

ناسوت :- دبشريت عالم

دامادي عالم ،

دشهادت عالم ،

نفس :- وګورئ تعليقات

نُقَباء :- دا داولياۓ کرامو ګوخاص ډله ده - ددوي درب په حکم سره دا کار دے چې د مخلوق باطني حالات معلوم کړي او دکوم مصلحت د پاره دا حالات ښکاره کړي - دوي ته دالله تعالی دا اسم باطن

فنائيت حاصل وي - په دې وجه په دوي د مخلوق حالات ښکاره وي - د دوي شمېر درې سوه (۳۰۰) دے -

واجب الوجود :- هغه ذات چې بخپله قائم او موجود وي بخپله بقا او وجود كښې دچا محتاج نه وي بلكې نور موجودات ئې محتاج وي -

وحدت :- دظهور اولنے تعين یا تجلی ته وائي - دا دمحمديه حقيقت دويم نوم دے - دې مرتبې ته رحماني علم ذاتي حب اوکبری برزخ هم وائي -

وړوکے برزخ :-

(برزخ صغرا)

مرشد -

كامل پير

ولايت او نبوت :-

وګورئ تعليقات

يقين :-

كله چې سالک ته ديو وجود

مشاهده او مکاشفه حاصله
شي نو دې ته د یقین حالت
ویل کیږي .
یکانګي :-
دا اصطلاح د خیرالبیان یوه
مخصوصه تصوفي اصطلاح

ده او هغه یې د سکونت د
مقام دپاره د متبادل په
توګه یکار وي . دغه رنګ د
"مسکین" دپاره یکانه نه
دی .

# تعلیقات

**بقاء:** کله چې د سالک خپله خودي او هستي فنا شي، د بشري صفتونو نه ازاد شي نو دده عروج نه پس ده ته حقاني وجود عطا شي او د الله تعالیٰ په روح سره بقاء ومومي - هم دې ته بقاء یا بقا بعد الفناء یا بقاء بالله وائي -

لاتعیّن - احدیت

اطلاق، احدیت، تلوین، سُکر، استغراق، بې خودي، فناء، فنا الفناء، سیر فی الله




( انساني تقید )

ابتدا: (۱) مبدا، بدایت، تقید، تعین، فرق، کثرت، بُعد

دوايسي مقام ب) نهایت، صحو، صحو بعد المحو، تمکین، تکمیل، عبدیت

عبودیت، انسان کامل، انسان، بقاء، بقاء بعد الفنا، بقا بالله

جمع الجمع، فرق بعد الجمع، فرق ثاني، صحو ثاني (النهایت رجوع

الى البدایت) تخلقوا باخلاق الله قیام بالله (استقامت)

دې لړ کښې د "رسالهٔ قدسیه" صاحب لیکي چې

" فنا عبارت است از نهایت سیر الی الله ، و بقا عبارت است از بدایت سیر فی الله — و سیر فی الله آنگاه تحقق شود که بنده را بعد فنا د مطلق که فناء صفات و فناء ذات است ـ وجود حقانی ارزانی دارند تا بدان وجود حقانی به عالم اتصاف با وصاف الٰہی و تخلق به اخلاق ربانی ترقی تواند نمود و این مرتبهٔ بی یَسْمَعُ و بی یَبْصِرُو و بی یَنْطِقُ و بی یَبْطِشُ و بی یمشی و بی یَعقِلُ است ؛"

ترجمه :

فنا د سیر الی الله انتها ده او بقا د سیر فی الله شروع ده ـ سیر فی الله هغه وخت ځیل ظهور وموي چې د مطلق فنا نه پس چې د صفاتو او ذات فنا ده سالک په یو "حقانی وجود" سره مشرف شي ـ بیا په دې حقاني وجود سره په الٰهي وصفونو او رباني اخلاقو سره ترقي دکړے شي او دا مرتبه په هغه سره داورېدو ، کتو ، وئیلو ، نیولو ، ګرځېدلو او عقل نه کار اخستلو ده ـ"

## تشبیه او تنزیه :-

**تشبیه :-** په ظاهري اشیاؤ کښې د ذات ظهور ته وائي یعنې په تعیناتو او تنزلاتو کښې د مشبه په اعتبار د ذات ظهور او شهود تشبیه ده او خارجي عالمونه یعنې د ارواح عالم د مثال عالم او مادي عالم د

---

له محمد اقبال ـ رساله قدسیه مخ ۱۸

ذات د تشبیه مرتبې دي.

## تنزیــه :-

د ذات په ظاهــري اشیاو تعیناتو، تنزلاتو، مختلفو شانونو او پخپلو صفاتو او اسماو کښې د ظاهرېدو باوجود د دې هر څه نه مبرّا او منزه ګڼـل تنزیه ده او "لیس کمثله شئ" ده. د تنزیې نه مراد د ذات د احدیت او د "لا تعین" مرتبه ده.

نو صرف تنزیه منل په حق تعالی قید لګول دي او صرف تشبیه منل په ذات حد لګول دي. د دواړه بیل بیل منل ناقصه عقیده ده. کامل هغه دے چې د دواړو قایل وي. په تنزیــه کښې تشبیه او عین تشبیه کښې تنزیه مشاهــده کوي. د قران شریف دا ایت په دې اختلاط غټ دلیل دے. لیس کمثله شئ وهو السمیع البصیره لیس کمثله شئ په تنزیه او وَهُوَالسَّمِیْعُ الْبَصِیْر په تشبیه دلالت کوي.

لکه څنګه چې د صوفیاو مقوله ده چې "الان کما کان یعني اوس هم هغه شان دے لکه څنګه چې و. یعني د یو ذات نه سوا بله هستي نشته او صفات عین ذات دے. په دې وجه هغه ذات باوجود د دې کثرت د ظهور د مرتبو او تعیناتو هغه پخپل احدیت باندې دے. دا معنیٰ د کثرت په عالم کښې مشاهده کول او کل عالم یو لید ل او ګڼل تنزیه ده.

## توحیــد : ( وحدت الوجود )

د ټولو علمونو نه لوے علم او د ټولو حقیقتونو نه اعلیٰ حقیقت الٰهی توحید دے چې د حقیقتونو حقیقت دے. او د حق سبحانه د وجود په وحدت دلیل دے یعني وجود صرف یو دے او دغه وجود صرف

او صرف ذات حق سبحانهٗ دے ، دې ته وحدت الوجود هم وائي -

وحدت الوجود حقیقي توحید دے - دې ته ذاتي توحید هم وائي - دا ذاتي توحید د افعالي توحید او صفاتي توحید اصل دے - ځکه چې صفات ، افعال او کمالات د وجود دي او وجود صرف یو دے او هغه د حق سبحانهٗ دے - دا معنیٰ د توحید د کلمې یعنې کلمه طیبه لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰه هم ده ، نشته هیڅوک معبود ( د عبادت لایق ) مګر الله - نو د عبادت لائق صرف هغه څوک کیدے شي چې د ځا د پاره وجود وي او حقیقي وجود صرف د ذاتِ حق سبحانهٗ دے - ولې چې د حق ذات فی نفسه موجود دے د موجوداتو خپل وجود نشته دوي د ذاتِ حق سبحانه په وجود سره موجود دي - په دې وجه چې څه موجود دي په اعتبار د خپل وجود عین حق دے یعنې حق تعالیٰ په اعتبار د خپل وجود د موجوداتو عین دے - دې ته " محدثات " هم وائي - ځکه چې د حق سبحانه د وجود حدوث یعنې ظهور په موجوداتو سره دے - یعنې د وجود په حواله هر شے عین حق دے او د تقید او تعین په حالت کښې هر شے غیر حق دے - پس له حقیقت لهٗ روېه بغیر د الله تعالیٰ هیڅ موجود نشته - دې ته " همه اوست " او وحدت الوجود وائي . ( ترجمه له تحقیق الامم فی شرح فصوص الحکم ز ډاکټر محمد عطاء الله قادري جلوي ص ۱۲ )

## حجابونه :-

هر هغه څیز چې د بنده او خدائے ترمینځه پرده شي . حجاب بللے شي - د ټولو نه لوئے حجاب د بنده هستي ده -

(۱) ظلماتي حجابونه :-

طبیعي لذتونه ، ګناهونه ذمیمه صفات او غیظ وغضب ظلماتي حجابونه دي . دې ته ناسوتي حجابونه هم وائي .

(۲) نوراني حجابونه :-

د ظلماتي حجابونونه د تېرېدو نه پس سالک ته نوراني حجابونه مخې ته راځي . رسمي حجابونه ، عادتي عبادتونه او ملکوتي انوار ، نوراني حجابونه دي . دې ته ملکوتي حجابونه هم وائي . د دې حجابونو لرې کول د ظلماتي حجابونو نه زیات سخت وي ولې چې د نوراني حجابونو خوند د ظلماتي حجابونونه زیات دي .

(۳) کیفي حجابونه :-

بره ذکر شوو حجابونو نه پس د کیفي حجابونو وار راځي دا حجابونه لرې کول د نورو په مقابله زیات ګران دي . د کیفي حجابونو د پورته کولو نه پس یو سالک د بې کیفه ذات رسائي حاصلولے شي .

## د امثالو تجدد (تجدد امثال)

د صوفیاؤ په نزد ، الله تعالیٰ هره ګړی کښې موجوداتو کښې یو نوے تخلیق کوي . یعني یو موجود شے په یوه ګړی کښې فنا هم شي او هم په دغه ګړی کښې بیا په یو نوي تخلیقي لباس کښې موجود شي یعني یو موجود شے هره ګړی په یو نوے ان او شان کښې وي . هر نوے تخلیق هوبهو د زوړ تخلیق په شان وي یعني د نوي د زوړ EXACT COPY وي —— یو شے یوه ګړی کښې فنا شي او هم هغه ګړی کښې بیا د یو نوي شان سره موجود شي . داسې نهٔ وي چې یوه ګړی

کښې فناشي او بلهٔ کړه کښې موجود شي يعني په دې کښې د دوو کړيو يا زمانو اتحاد نهٔ وي . د تجديد داعمل د حق تعالیٰ د جلالي او جمالي رسمونو او صفتونو يعني د مميت اسم او محي اسم د اثر د لاندې کيږي . د دې حقيقت دپاره صوفياء حضرات د قرآن شريف د دې ايت نه تاويل کوي .

بَلْ هُمْ فِیْ لَبْسٍ مِّنْ خَلْقٍ جَدِیْدٍ ہ

( بلکې دوي د نوي تخليق په لړ کښې په شک کښې دي )[له]

## زړهٔ او د زړهٔ قسمونه :-

پهٔ سلوک او طريقت کښې زړهٔ ته خاص اهميت حاصل دے . بايزيد هم پخپلو کتابونو کښې د زړهٔ په اهميت رڼا اچولې ده او زړهٔ ته لکه د نورو صوفياؤ " عرش الله " وائي . عامو صوفياؤ د زړهٔ درې قسمونه بيان کړي دي .

(۱) قلب منيب (۲) قلب سليم (۳) قلب شهيد

خو بايزيد روښان د قران په دليل د زړهٔ نههٔ قسمونه بيان کړي دي . چې دا دي :-

(۱) مړ زړهٔ (۲) رنځور زړهٔ (۳) غافل زړهٔ (۴) ترسکار زړهٔ (۵) جاروتلے زړهٔ ( قلب منيب ) (۶) سالم زړهٔ (۷) ذاکر زړهٔ (۸) شهيد زړهٔ (۹) مخلص زړهٔ .

---

له ډاکټر محمد عطاء الله قادري جلوي
تحقيق الامم في شرح فصوص الحکم مخ ۱۹

روح :-

لکه دنورو صوفیاؤ او دانشورانو پیر روښان د روح په‌حقله هم خپل یو علمي نظر لري - دے د روح ګن قسمونه بیانوي ورومبے د قران په بنیاد د روح دوه قسمه بیانوي - یو ته "روح حیات" او بل ته "روح تمیز" وائي -

په مقصود المومنین کښې د "روح حیات" د پاره د "روحِ مقیم" او د "روح تمیز" د پاره د "روح جاري" اصطلاح پکاروي - روح مقیم هغه دے چې د مرګ په وخت د بدن نه جدا کیږي - دا روح فاني کیږي نه لازواله وي "روح جاري" د خوب په وخت کښې د بدن نه جدا شي او کله چې سړے بېدار شي نو دا روح ورله واپس راشي -

د دیو نه علاوه یو بل روح هم یادوي چې "روح الامین" ورته وائي - د دې روح د پاره د "روح اضافي" اصطلاح هم پکاروي - دا روح د "صاحب زمان" سره دائماً وي "صاحب زمان" په دې روح ژوندے دے -

د دیو نه علاوه پیر روښان د روح نور څلور قسمونه هم بیان کړي دي -

(۱) ناطق روح (ویونکے روح) (۲) صامت روح (چپ روح)

(۳) جسمي روح (بدني روح) (۴) رسمي روح (نوم واله روح)

ناطق روح دانسان د پاره دے - صامت روح د حیوان د پاره دے - جسمي روح د نباتاتو د پاره دے او رسمي روح جماداتو د پاره دے -

# شپږ تنزله (تنزلات ستّه)

د حق تعالیٰ د ذات په تعیناتو کښې ظاهرېدو ته تنزل وائي. د ذات د تعینات په شپږو مرتبو کښې وېشلي شوي دي -

(۱) د احدیت یا د لا تعیّن مرتبه:

دې مرتبه کښې ذات د هر قسمه ادراک او تشبیه نه ازاد دے هیڅ لفظ هیڅ خیال او هیڅ ادراک د دهٔ تصوّر نهٔ شي وړاندې کولے -

(۲) د وحدت مرتبه:-

دا د ذات وړومبے تنزل دے - دې تنزل ته ځکه "اول تعین" وائي - دې نه علاوه دې مرتبې ته د ذات د "مجمل علم" "ذاتي علم" او "محمدیه حقیقت" هم وئیلي شي - په دې مرتبه کښې ذات خپل ځان په انا سره تعبیر کړو -

(۳) د واحدیت مرتبه:-

دا د ذات د تنزل دویمه مرتبه ده - دې ته دویم "تعین" هم وائي - دې نه علاوه دې مرتبې ته د ذات د تفصیلي علم "رحماني نفس" او "ادم حقیقت" هم وئیلے شي - په دې مرتبه کښې ذات د خپلو اسمونو او صفتونو تفصیلي علم حاصل وي - بره ذکر شویو دریو وارو مرتبو ته داخلي یا باطني مرتبې وائي -

(۴) د ارواح عالم:-

دې مرتبې ته یو بې غاړې بحر وئیلے شي - د دې عالم تعلق یو خوا د بې چونه ذات سره وي او بل خوا د اجسامو د عالم سره وي -

"مقیمي روح" هم دهٔ ته وائي .

د "روحونو روح" (روح الروح) او "لوئے روح" (روح اعظم) هم دده نومونه دي . دا عالم یو شور ور ، خالص (بسیط) او لطیف ترین (الطف) بې کیفه او شپږو اطرافو نه ازاد دے . د نزدې (اقرب) او لرې (ابعد) نه پاک دے . په مادي یا د جسمي عالم په هر فرد کښې د هغه د استعداد مطابق متصرف دے . په جماداتو کښې جمادي روح ، په نباتاتو کښې نباتي روح په حیواناتو کښې حیواني روح او په انسان کښې انساني روح دده نومونه دي . کله چې دده روح د یو جسم سره تعلق وي نو دې دده په ظاهر او باطن کښې تصرف کوي او هم دې ته حیات وائي او په دې وجه دده نوم د حیات روح (روحِ حیات) وائي .

(۵) د مثال عالم : دلته د هر څیز صورتونه وي او دد غې صورتونو مطابق د اجسامو په عالم کښې د څیزونو خپل خپل ظهور کیږي . دلته دا صورتونه یو لطیف جسم لري . سیل او الوت کوي په خوب او مشاهده کښې هم په نظر راځي . دې عالم ته جاري روح هم ویلے شي .

(۶) د اجسامو عالم :-

دې عالم او کائنات ته د اجسامو او د شهادت عالم وائي . کوم چې مونږ وینو اورو او محسوسوو . دې باقي دریو مرتبو ته یعنې د روح عالم ، د مثال عالم او د شهادت عالم ته د ذات خارجي مرتبې وائي .

## فنا :-

فنا د شعور نیشت والي ته وائي - په یو ذات کښې تر دې حده استغراق حاصلول چې د خپل ځان هوش ئې پاتې نهٔ شي - او کله چې سالک ته د هوش هم هوش پاتې نهٔ شي نو دې ته بیا فناء الفنا وائي - خو د فنا مطلب دا نهٔ دے چې ګني دوه وجودونو ته قرب حاصل شي یا سره وصل شي یا یو په بل سره بدل شي - یا یو داسې کمال نهٔ دے چې دیو وجود نه بل وجود ته حاصل شي بلکې دا د عارف په صورت باندې د هغې حقیقي وجود او واحد وجود د ظهور علم دے - د فنا مطلب د بشري حیواني صفتونو نه خلاصون دے - د حقیقي انسان ظاهر بدل دې او د واحد وجود ظهور هم په دغه حقیقي انسان باندې کیږي او دغه انسان د حق تعالیٰ د عرفان اهلیت لري شي -

د "رساله قدسیه" صاحب لیکي چې

"فنا عبارت است از نهایت سیر الی الله ــــ سیر الی الله وقتی منتهی شود که سالک از وطن مالوف و خطوطِ بشریت به کلّی بیرون آید و در راهِ طلب، توجه راست بحق بیارد و بادیه هستی به قدم صدق یکبارگی قطع کند تا به کعبهٔ وصال رسد[۱]"

ترجمه :- فنا د سیرِ الی الله انتها ته وائي ــــ سیر الی الله هغه وخت انتها ته رسي چې سالک د جسمي او نفسي دائرې او د بشري لذتونو نه بالکل بهر ووځي او د طلب په لاره خپله توجه د حق سره قائمه کړي او د خپلې هستۍ صحرا د صدق په

---

[۱] ملک محمد اقبال، رساله قدسیه - مخ ۱۷۹ ، ۱۸۰

[۲] با مقدمه و تحشیه و تصحیح و تعلیقات

قدم سره پهٔ مخه تېره کړي، چې د وصال کعبې ته ورسي."

د فناء الفنا پهٔ باره کښې هم دغه صاحب ليکي چې.

وفناء فنا که درميان اہل اللہ متعارف است، ان بود که چنانکه ازوجود جسمانيت فانی گشت از وجود روحانيت نيز فانی گردد .... وازفنا نيز فانی گردد اندرعين فنا زبانش بحق ناطق شود ..... ودرعين اين فنا بهمه حيرت وبی نشانی بود [۱]"

ترجمه :- دالله ددوستانو پهٔ نزد دفناء الفنا مطلب دا دے چې سالک دجسماني وجود نه فاني شوے وي بلکې د روحاني وجود نه هم فاني شوے وي ..... او د فنا نه هم فاني شوے وي او دهغهٔ ژبه دعين فنا دننه پهٔ حق سره خبرې کوي او ددې فنا دننه ټول حيرت او بې نشاني وي ."

د فنا قسمونه :-

د فنا درې قسمه وي .

(۱) افعالي فنا :- خپل فعل او دخلق فعل دحق پهٔ فعل کښې فنا کول .

(۲) صفاتي فنا :- خپل صفات او دخلق صفات دحق پهٔ صفاتو کښې فنا کول .

---

[۱] ملک محمد اقبال . رساله قدسيه ص ۱۸۳

(۳) ذاتي فنا : خپل ذات او د خلق ذات د الله په ذات کښې فنا کول ؏

د فنا حالتونه :-

(۱) فنا في الشيخ :- خپله هستي او خودي د شيخ په هستۍ او خودۍ کښې فنا کول -

(۲) فنا في الرسول :- خپل وجود د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَآلِهِ وَسَلَّم په وجود کښې فنا کول - د دې درجې وړومبۍ پوړۍ د فنا في الشيخ ده -

(۳) فنا في الله :- خپله هستي او وجود د الله تعالىٰ په وجود کښې فنا کول - د دې وړومبۍ پوړۍ فنا في الرسول ده ؏

## نفس :-

نکه څنګه چې په لوئے عالم (عالم کبير) يعنې کائنات کښې ډېر مظهرونه او اسمونه دي نکه د مثال په توګه اول عقل ، اعلیٰ قلم ، نور ، کلي نفس او لوح محفوظ د غه شان په وړوکي عالم (عالم صغير) يعنې انسان کښې هم ډېر مظهرونه او اسمونه دي - د مرتبو له مخه د دوئ کښې قسمونه دي چې نومونه ئې (۱۰) دي -

(۱) سِرّ (۲) خفي (۳) روح (۴) قلب (۵) کلمه (۶) فواد (۷) صدر (۸) روع (۹) عقل (۱۰) نفس

---

؏ سيد محمد شاه صاحب ذوقي سر دلبران مخ ۳۰۳

؏ محمد عبد الصمد - حضرت خواجه شاه - اصطلاحات صوفيه مخ ۱۰۷

نفس :-

دېره ذکر شوُو باطني حقيقتونو څېل څپل کا روونه دي - دنفس هرکله چې د بدن سره تعلق دے او د بدن تد بیر کوي - ددې لهٔ مخه دهٔ ته نفس وائي - دنفس چې پهٔ کومه حواله څپل کارکوي هم پهٔ هغه حواله د هغهٔ يو څېل نوم وي لکه د مثال پهٔ توګه دنفس نه چې کله نباتي فعل څرګندیږي نو دغلته نفس ته نباتي نفس وائي او چې کله ترې حيواني فعل څرګندیږي نو بيا ورته حيواني نفس وائي -

حيواني نفس :-

دا يو مادي لطيف جوهر دے - ژوند ، حس او حرکت ددهٔ نه دے - حيواني نفس د قلب چې ناطقه نفس هم ورته وائي او دبدن ترمينځه يو برزخ دے - حيواني نفس دلطافت لهٔ وجې د قلب سره مناسبت لري او دکثافت لهٔ وجې دبدن سره -

ناطقه نفس :-

دا يو نوراني جوهر دے او دمادې نه ازاد دي - دا د روح او حيواني نفس ترمينځه يو برزخ دے چې دخالص لطافت لهٔ مخې روح سره قربت لري او دجوهر له کثافت لهٔ وجې حيواني نفس ته مخه لري - دې نفس ته "انساني حقيقت" او "قلب" هم وائي - دناطقه نفس څلور قسمه دي -

(۱) اماره نفس :-

ددې نفس ټول رجحان دسفلي جذباتو ، لذتونو او شهوتونو اړخ ته وي - دا د ټولو بدو اخلاقو او ګناهونو سرچينه ده - قرآن شريف

کښې دي نفس ته داسې اشاره شوې ده .

إِنَّ النَّفْسَ لَأَمَّارَةٌ بِالسُّوءِ ۵ یوسف - ایت ۵۳

(بېشکه نفس په مخه د بدۍ په لور مخه ورکوي)

جهل ، غصه ، کینه ، حسد ، بغض ، نفاق ، کبر ، بخل ، حرص ، دروغ حرام ، غیبت ، مکر ، طمع ، ریا ، کفر او شرک وغیره ددې اماره نفس صفتونه دي .

(۲) لوامه نفس :-

کله چې په نفس کښې د خپلو بدو احساس پیدا شي - د بدۍ نه کرکه او د نیکۍ سره مینه پیدا شي د عباداتونو او ښو عملونو خوند یې تر خوله شي نو د نفس ددې ترقۍ له وجې دے په "لوامه نفس" سره وبللے شي . دا نفس د ډېرو کثافتونو نه پاک شوے وي - د هدایت په نور باندې منور شوے وي خو دده دا حالت لا کچه وي او پوخوالے پکښې نه وي پیدا شوے . الله تعالی ددې په سر داسې قسم خوري

وَلَا أُقْسِمُ بِالنَّفْسِ اللَّوَّامَةِ ۵ القیمه - ایت ۲

(او زه په لوامه نفس قسم خورم)

(۳) مطمئنه نفس :-

کله چې په لوامه نفس کښې پوخوالے پیدا شي د بدو او ګناهونو نه بالکل کرکه ژن شي طبیعت یې د عباداتونو ، نیکو او ښو اخلاقو سره یو شي . ذوق ، شوق یې د الٰهی اطاعت محرک شي او دې ته یو اطمینان په لاس ورشي نو دې نفس ته بیا مطمئنه نفس وائي - قران شریف کښې دې نفس ته داسې اشاره شوې ده .

يَاَيَّتُهَا النَّفْسُ الْمُطْمَئِنَّةُ ٥ ارْجِعِيْ إِلٰى رَبِّكِ رَاضِيَةً مَّرْضِيَّةً ٥ فَادْخُلِيْ فِيْ عِبٰدِيْ ٥ وَادْخُلِيْ جَنَّتِيْ ٥

( الفجر - ايت ۳۰ )

(اے مطمئنه نفسه ، دخپل رب په لور رجوع وکړه ته دهغه نه راضي او هغه ستا نه راضي - زما په (خاص) بنديګانو کښې شامل شه او زما په جنت کښې داخل شه)

دا نفس دالله تعالیٰ اولياؤ ته حاصل وي -

(۷) ملهمه نفس :-

کله چې دنفس ترقي کمال ته ورسي او دالٰهي تجلّو اٴينه شي نو دغه ته دحق سبحانه دکمال درجې قرب تر لاسه شي - دمعرفت دعلم نه پوره پوره خبردار شي - دحقيقت داسرار او رموزنه اګاه شي - دالٰهي خطاب سره مخاطب او الٰهي کلام نه مشرف شي - دغيبي الهام اهل شي - داملهمه نفس انبياۓ کرامو او اکمل اولياۓ کرامو ته حاصل وي -

## ولايت او نبوّت :-

ولايت دتوحيد داسرارو يو فيضان وي - دا د ولي او حق سبحانه ترمينځه يو باطني تعلق وي يو نبي هم ددې باطني تعلق په بنيا د بغير دجبرائيل د واسطې د حق سبحانه نه اخذ کوي - په نبوت کښې يو نبي د جبرائيل عليه السّلام په ذريعه احکام حاصلوي او دخداۓ مخلوق ته يې رسوي - دنبي دنبوت قوت د هغه د ولايت په قوت اړه لري - ادم عليه السّلام چې په جنت کښې وُ نو ولي وُ او کله چې دنيا ته راغلو نو نبوّت ورته عطا شو دهر ظاهر بنيـاد په

باطن وي - ولايت باطن دے او نبوّت ظاهر - پهٔ صوفيانه ادب کښې چې کله دا خبره کيږي چې ولايت د نبوت نه افضل دے نو هغه د يو نبي ولايت يادوي - هر نبي ولي وي خو هر ولي نبي نهٔ وي -

د نبوت او رسالت سلسله اګر چې ختمه ده خو د نبوّت فيض جاري دے د نبوت علوم يعني تشريعي علوم جاري دي - د نبوّت دا فيض او نور د اوليائے کرامو پهٔ صورت کښې جاري دے دوي ته دانبياؤ وارثان او نائبان وائي -

دې لړ کښې حضرت شاه ولی اللهؒ ليکي چې د کبري ولايت ومقام نه پس دويم مقام د "مفهميت" دے - او دې مفهميت ته د نبوت نور او د نبوت وراثت وائي - ترکومه چې د نبوّت د اصل تعلق دے نو د دې حقيقت دا دے چې دا د دوو اړخونو يا شرطونو نه پهٔ وجود کښې راځي - يو اړخ يا يو شرط د نبوت د قبلولو کي وي يعني د نبي ناطقه نفس او دويم اړخ يا شرط ئې د الله تعالیٰ د طرف نه د نبي مبعوث کيدهٔ وي - زمونږ پيغمبر صلی الله عَلَيْهِ وَآله وَسَلَّم نه پس نبوت اګر چې ختم دے خو د نبوت دا جزاؤ سلسله جاري ده - د نبوت دې اجزاؤ نه مراد "مفهميت" دے - د نبي نه پس پهٔ دې مقام هغه بزرګان تهٔ ګلے کيږي چې پهٔ سلوک او طريقت کښې د ارشاد او هدايت پهٔ منصب نماځلے شوے وي او د حضرت محمّد صلی الله عَلَيْهِ وَآلِهِ وَسَلَّم د نائب پهٔ حيث د دين تجديد کوي او هم دا مفهمين دي چې د نبوت انوار، صورتونه او تمثيلونه دي ئې

---

ئه شاه ولی الله - ہمعات مترجم محمد سرور مخ ۲۱۴، ۲۱۵

کهٔ چرې یو ولي د شریعت د احکام نه بهر څهٔ بیانوي نو ددې وجه دهغهٔ ولایت وي ولې چې یو ولي د خپلې زمانې د استعداد مطابق د شریعت احکام پهٔ یو نوي انداز کښې بیانوي ـ داهر کله کهٔ پهٔ ظاهره د شریعت د احکامو خلاف ښکاري خو حقیقت کښې دا خلاف نهٔ وي ځکه دا هر څهٔ هغه د قرآن او حدیث پهٔ بنیاد باندې کوي او د خدائے د مخلوق د هدایت دپاره یې کوي[1]

---



---

[1] ډاکټر محمد عطاء الله قادري جلوي

تحقیق الامم فی شرح فصوص الحکم، مخ ٨٨ - ٣٨٧

# DIWAN-E-MUKHLES

## Collection of the Poems

Editing & Research:

Dr. Pervaiz Mahjoor Kheshky

Foreword:

Prof. Dr. Raj Wali Shah Khattak

Pashto Academy
University of Peshawar

ISBN 969-418-016-3